# تفسیر ایوبی حنفی

تالیف

علامۂ عصر وحید الدہر ابو الفضل مولانا محمد عبد الشہید الایوبی

القندھاری السلیمانخیلی الحنفی النقشبندی عفی عنہ

ناشر

مکتبۃ القراءۃ والتجوید

کانسی روڈ شالدرہ کوئٹہ

بسم الله الرحمن الرحيم

په پښتو ژبه کښې اولنۍ او په افغانيه تاريخ کښې بې سارې

په زرګونو جديدو مسئلو باندې مشتمل

# تفسير ايوبي حنفي

يعتذرون *** وما من دابة

نهم توک ٩

تاليف او تصنيف

د علامة العصر ابو الفضل شيخ التفسير والحديث فقيه دوران مفسر الزمان

## حضرت مولانا محمد عبيد الله الايوبي

الكندهاري السليمانخيلي الحنفي النقشبندي حفظه الله تعالى

مكتبة القراءة والتجويد

کانسي روډ شالدره کوټه

# د کتاب پېژندنه

د کتاب نوم ........ تفسیر ایوبي پښتو نهم ټوک
مؤلف ........ الحاج مولنا محمد عبید الله الایوبي الکندهاري
السلیمانخیلي الحنفي حفظه الله تعالی بفضله الوهبي
کمپوزر ........ حبیب الحق حقاني (مینګل)
ټایپ ........ حقاني کمپیوټر اداره
نشر کوونکې اداره ........ مکتبة القراء ت والتجوید کانسي روډ کوټه
د چاپ ځای ........ لاهور پاکستان

# یو نظر دې خوا

هیڅ یو مسلمان هم په قرآن مجید، احادیثو یا د فقهي په کتابو کې په قصده سره غلطي نه کوي، زموږ اداره تر خپله وسه پورې د کتابو تر لیکلو وروسته تصحیح ته زیاته پاملرنه کوي، چې ددې په وجه زموږ کتابونه معیاري دي، خو بیا هم بنده بنده دی، یو نه یو ځای څه ناڅه غلطي په املاء کې یا په یوه جمله کې څنې صادره سي، نو زموږ د ټولو ناظرینو څخه دا خواست دی چې که ستاسي تر نظر داسي غلطي تېره سي لطفاً زموږ سره تماس ونیسئ، تر څو د کتاب د دوهم وار په چاپ کې د هغې تېروتنې اصلاح وسي

په درناوي ستاسي ورور شمس الحق شمس

بسم الله الرحمن الرحيم



الطبعة الاولى

١٤٢٩ هجري - ٢٠٠٨ ميلادي

مكتبة القراءة و التجويد
شارع كانسي كوئته - پاكستان

MAKTABTUL-QIRRAT
WALTAJWEED
KANSI ROAD QUETTA
PAKISTAN

ISBN 2-7451-3148-0



الحمدلله وحده والصلوة والسلام على من لا نبي بعده.

وبعد: محترمو لوستونكو!

قرآن مجيد د الله تعالى هغه سپيڅلى كتاب دى، كوم چي د خپل اختصار سره سره د دنيا د ټولو مشكلاتو، مصائبو او كړاوونو حل ور كښي موجود دى.

او د دي خبري اعتراف او تصديق د دنيا كفارو او لا دينو مذهبونو هم كولي او هم يې كوي، دوى به ويل "مالهذا الكتاب لايغادر صغيرة ولا كبيرة الا احصاها" دا څرنګه كتاب دى چي د دنيا د هيڅ وړوكيو او لويو شيانو تذكره يې نه ده پرې اينې بلكې هر څه يې ذكر كړي دي او دا هغه كتاب دى چي خپل په نوي والي كښي زوړ سوى نه دى علما كرام له ده څخه نوي نوي مسائل او نوي نوي احكام راباسي، او دى د دنيا يو واحد كتاب دى چي لا تر اوسه يې خپل انتهى ته څوك نه دى پرې اينى، ځكه نو علامه شاطبي په خپل تصنيف "الشاطبية" چي اصل نوم يې "حرز الاماني ووجه التهاني" دى داسي وايي:

واخلق به اذ ليس يخلق جدةً
جديداً مواليه على الجد مقبلاً

او لا تر اوسه هم بې شمېره داسي آيتونه لري چي زمونږ له ذهنو څخه پورته او په پوهه کښي يې مونږ د مشاهدې ضرورت لرو، ولي انسان څرنګه چي عقل يې محدود دی.

نو د هم هغو شيانو په تفصيل پوهېږي کوم چي دده ومخي ته راغلي وي، خو قرآن مجيد داسي بې شمېره آيتونه لري چي تر اوسه پوري د هغو ظهور ته لا وخت سته.

زما محترم استاذ حضرت علامه فضيلة الشيخ مولانا محمد عبيدالله الايوبي القندهاري ته دي الله تعالى صحت کامله ورکړي چي د قرآن مجيد او نورو علومو اسلاميه وو په خدمت کښي يې خپل قلم په کار اچولی دی.

**له محترمو لوستونکو څخه هيله!**

محترمو لوستونکو! مکتبة القرائت والتجويد ستاسو خپله مکتبه ده په ښوو مشورو سره مونږ ونازوئ، او د قرآن مجيد د علومو په خپرولو کښي مو له دعا څخه مه هېروئ. هيله ده چي خپرونکې اداره او حضرت ايوبي صاحب مدظله العالي به له دعا څخه هېر نه کړئ.

د دعاؤ په هيله

(قاري) فضل الحق حقاني
خادم التجويد والقراءة کوئټه

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا
سکين او pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ
۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله الذي لا شريک له متوحداً بجلال ذاته وجمال صفاته والصلوة والسلام على سيد البرية وخير الخليفة محمد وآله وصحبه اخيار امته اجمعين.

**اما بعد**: د يوولسم جزء تفسير په ورځ د يکشنبې پر يوولس بجې من اول شهر ذوالقعدة من سنه ۱۴۲۸ هـ ق. خدايه ته يې راته آسانه کړې او توفيق راکړې او ستا په لوى دربار کښيې يې راښخه قبول کړې.

يَعْتَذِرُوْنَ اِلَيْكُمْ اِذَا رَجَعْتُمْ اِلَيْهِمْ

دوى يعنې منافقين هغه کسان دي چې دوى د تبوک له غزا څخه تخلف کړى ؤ چې له اتيا کمانو څخه بالا وه. يعنې عذر باطل د تخلف درڅخه کوي (اليکم) "ايها النبي والمؤمنون" چې تاسي رجوع وکړى له غزا څخه د تبوک ومدينې منورې ته.

**درويش وايي**: چې په دې آيت کې معجزه باهره ده د رسول کريم ﷺ، ولې چې دوى بعد نزول هذه الآية عذر کولو ته راغله او پوچ عذرونه يې بيانول.

قُلْ لَّا تَعْتَذِرُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ لَكُمْ

ته ورته ووايه ايها النبي چې د درواغو عذرونه مه کوئ هرگز مونږ ستاسي د عذر تصديق نه کوو.

**يوه سه**: چې دا جمله علت ده د نهي له عذر څخه. ولې چې د عذر کونکي خو دا غرض وي چې زما تصديق دي وکړل سي فيما يعتذر به.

**يوه سه**: چې علت د عدم تصديق يې دا قول دى.

قَدْ نَبَّاَنَا اللّٰهُ مِنْ اَخْبَارِكُمْ وَسَيَرَى اللّٰهُ عَمَلَكُمْ وَرَسُوْلُهٗ

ولې چې مونږ خبر کړو خداى ﷻ په ذريعه د وحي الى رسوله ﷺ ستاسي د بعض اخبار او حالاتو څخه من الشر والفساد او د اعتذاراتو کاذبه وو. او ژر دى چې خداى ﷻ او رسول ﷺ به ووينې عمل ستاسي په وروسته زمانه کې تاسي

توبه له نفاق ځخه کارئ او که نفاق ته دوام ورکوئ.. ددې آیت معنا داده چې هنوز هم دروازه د توبې وتاسي ته خلاصه کړل سوې ده ان اردتم التوبة. مثنوي.

از منافق عذر رد آمد نه خوب ........... زانکه درلب بود آن نی درقلوب

**ثُمَّ تُرَدُّونَ إِلَىٰ عَالِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ**

بیا به تاسي رد کړل سئ یعني وروسته تر مرگ و هغه ذات ته چي دی په پټو عملو ستاسي خبر دی. چي له مؤمنانو ځخه مو پټ ساتل من النفاق القلبي او په حاضرو او ښکاره کارو ستاسي چي د مسلمانانو سره به مو لمونځ کاوه او اظهار د ایمان به مو کاوه.

**پوښتنه**: د خدای پاک نوم خو د مخه ذکر ؤ. نو ولي یې په وصف سره ذکر کړی یعني عالم الغیب آه. او داسي به کافي نه وای "ثم تردون الیه بارجاع الضمیر"؟

**ځواب**: د وصف په راوړلو کي تنبیه پر دې ده چي د علم شامل ځخه نه ددوی سر خلاص دی او نه یې علانیه فلا فائدة لهم في اظهار الایمان واضمار الکفر. نو به خبر کړي خدای ﷻ تاسي په هغو شیانو چي تاسي یې عمل کاوه یعني په دنیا کي من النفاق مراد له خبرتیا ځخه تعذیب بالنار دی.

**پوښتنه**: که کلمه د ما موصوله سي. نو عائد و ماته محذوف دی والتقدیر بما کنتم تعملونه. او که کلمه د ما مصدریه سي نو معنا یې داده بعملکم في الدنیا.

**سَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ لَكُمْ إِذَا انقَلَبْتُمْ إِلَيْهِمْ لِتُعْرِضُوا عَنْهُمْ**

ژر دی چي قسمونه به واخلي دوی په خدای ﷻ وتاسي ته. یعني ستاسي د اطمنان لپاره او لپاره د دفع د توهم د نفاق لپاره چي تاسي رجوع وکړئ له غزا ځخه د تبوک ودوی ته. چي تاسي ددوی ځخه یعني ددوی له ملامتیا او عتاب ځخه مخ واړوئ.

**تنبیه**: داسي یې نه وویل "اذا انقلبتم الی المدینة" ولي چي بعض ماهره منافقان د علیه الصلوٰة والسلام او مؤمنانو مخ ته وروتلي وه یعني د مدینې تر رسېدلو دمخه او اظهار د عذر یې کاوه. وهذا سانح عزیز.

فَأَعْرِضُوا عَنْهُمْ ۖ إِنَّهُمْ رِجْسٌ ۖ

نو تاسي اعراض وکړی له دوی څخه يعني مه عتاب ور ته کوئ او مه ور سره کښيني. ولي چي دوی نجس دي يعني په نجاست باطنه سره چي نفاق دی، نو نه ددوی سره الفت روا دی او نه مصاحبت او معاتبه ددوی فائده نه لري. ولي چي دوی لکه خنازير له نجاست باطن څخه توبه نه کاږي فما الفائدة في المعاتبة.

وَمَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ جَزَاءً بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ۝

او ځای ددوی يعني په قيامت کي دوږخ دی چي دا جزاً ده د هغه څه چي دوی يې کسب کاوه من النفاق والتخلف عن تبوک.

**پوه سه:** چي "جزاً" يا مفعول مطلق د فعل محذوف ده. والتقدير يجزون جزاً او يا علت دی د "مأواهم جهنم" بغوي رحمه الله په خپل سند سره له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت کړی دی چي ده وويل چي دا آيت په جد بن قيس او په معتب بن قشر او په ملگرو کي ددوی چي اتيا کسان وه نازل سوی دی. چي عليه الصلوٰة والسلام چي مدينې منورې ته راغلی امر يې وکړی چي د دغو کسانو سره دوستي مه کوئ او مه وسره کښيني. دا وروسته آيت په قول د مقاتل رحمه الله په عبد الله بن ابی کي نازل سوی دی چي ده و عليه الصلوٰة والسلام ته وويل بالله الذي لا اله الا هو چي تر دې وروسته به بيا زه له تا څخه تخلف نه کوم يعني پر هره خوا چي ته غزا ته ځې او د عليه الصلوٰة والسلام څخه يې طلب وکړی چي ته زما څخه راضي سه.

يَحْلِفُونَ لَكُمْ لِتَرْضَوْا عَنْهُمْ ۖ

دوی قسم بالله اخلي و تاسي ته چي تاسي راضي سئ.

**پوښتنه:** "يحلفون" صيغه د جمع ده او سره ددې چي مخالفت خو يوازي ابن ابی وکړی؟

**ځواب:** چونکه ابن ابی د ټولو منافقينو رئيس و. نو دده قسم گويا د ټولو قسم دی.

**سوال:** ابن ابی خو يوازي د عليه الصلوٰة والسلام رضا غوښتله، نو د

"لترضوا" په لفظ د جمع څه معنی ده؟

**ځواب**: چونکه د عليه الصلوة والسلام رضا مستلزمه راضي والي لره د ټولو مسلمانانو ده. نو يې ځکه لفظ د جمع راوړی:

فَإِن تَرْضَوْا عَنْهُمْ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يَرْضَىٰ عَنِ الْقَوْمِ الْفَاسِقِينَ ﴿٩٦﴾

که چېري تاسي راضي هم سئ ددوی څخه په تحقيق خدای ﷻ نه راضي کېږي له هغه قوم څخه چي فاسقان وي. والمعنی چي منافقانو که څه هم د دروغو په قسمو تاسي راضي کړلاست لکن پر خدای ﷻ چي عالم الغيب والشهادة دی د دروغو قسم دوی نه سي تېرولای چي خدای ﷻ به هم راضي کړي په دغو دروغو په دې کي اشاره ودې ته ده چي دوی دغه قسمونه د توبې پر ډول نه اخستي بلکې نفاق يې باقي دی صرف دوی تقيه کوي يعني ځان ساتنه ستاسي څخه. او دوی فائده نه کوي رضا ستاسي سره د غضب الهي بلکې خدای پاک پر دوی سپکاوی بې عزتي مسلطه وي په دې دنيا او عذاب النار في دار القرار نعوذ بالله من غضب الجبار. وفي المثنوي.

عذر احمق بدتر از جرمش بود ............ عذر نادان زهرير دانش بود -
بروی وريا خرقه سهلست دوخت ............ وگر باخدا درفروشی نکوست

**مسئله**: د درغو او قسم په معاملاتو يعني په بيع وشرا کي هم حرام دی، ورد في الحديث الصحيح "ان اليمين الكاذبة منفقة للسلعة ومحقة للبركة" يعني او په دروغو قسم اخستل تېر به کړي مبيعه پر مشتري لکن محو کونکی د برکت د بيع دی.

**حکايت**: شبلي نعماني قدس سره وايي:

زنی راميگريد وميگويد واويلا من فراق ولدی يعني چي زوی يې مړ ؤ او دې د واويلا بغاري پر وهلې "شبلي وژړل او داسي يې وويل واويلاه من فراق الاخدان (جمع د خدن يعني دوست اندروني وقلبي چي خدای ﷻ دی) بنځي ورته وويل چي تا ولي دا خبره وکړه؟ شبلي رحمه الله ورته وويل چي ته پر مخلوق ژاړې چي حتماً به يو وخت فاني کېږي. نو زه ولي پر فراق د خالق چي باقي دی نه وه ژاړم.

## اَلْاَعْرَابُ اَشَدُّ كُفْرًا وَّنِفَاقًا

صحرا نشینان ډېر سخت دي په كفر او په نفاق كښې تر اهل البلد. يو خو دوی وحشي طبعيته دي او بل يې زړونه سخت دي او د علماً سره ناسته او ولاړه نه لري. او بل قرآن مجيد او احاديث نبويه نه اوري.

## وَّاَجْدَرُ اَلَّا يَعْلَمُوْا حُدُوْدَ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ ۝

ای احق په دې دي چي دوی دي نه پوهېږي په احکامو د ما انزل الله تعالی پر رسول خپل من الفرائض والواجبات وسننها. او په مباحاتو او محرماتو هم نه دي خبر په سبب د جهل ددوی. او خدای ﷻ د مخلوقاتو په ټولو حالاتو خبر دی که باديه نشين دي او كه اهل البلد دي. او په هر شي كي حكمت لري.

## وَمِنَ الْاَعْرَابِ مَنْ يَّتَّخِذُ مَا يُنْفِقُ مَغْرَمًا وَّيَتَرَبَّصُ بِكُمُ الدَّوَآئِرَ ؕ

او بعض له اعرابو څخه داسي كسان دي چي بولي او ګڼي او ګمان لري پر ماينفق في سبيل الله صرف تاوان. ولي چي دوی په سبب د كفر هغه څه چي دوی يې نفقه كوي د ثواب طمع نه لري او پر وركړه د عذاب نه ېرېږي لانكارهم من يوم القيامة بلكې دوی كه څه انفاقاً رياءً يا خوفاً منكم يې كوي. او دوی انتظار باسي د حوادثو د زمانې چي پر تاسي به راسي يعني چي عليه الصلوٰة والسلام به مړ سي او مشركان به پر مسلمانانو غالب سي او موږ به له انفاق څخه نفاقاً رياءً او خوفاً منكم هم خلاص سو.

## عَلَيْهِمْ دَآئِرَةُ السَّوْءِ ؕ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ۝

پر تاسي دوی دائرة السوء يعني العذاب.

**پوه سه**: چي دا ښېرا ده ددوی ته په مثل د هغه څه چي دوی يې انتظار كاوه د مسلمانانو لپاره من نزول البلاً على المؤمنين. او يا اخبار دی چي پر تاسي باندي دائرة السوء يعني عذاب نازل سي لكه تاسي چي د مؤمنانو لپاره غوښتونكي واست.

**فائده**: د "دائرة" لفظ اسم فاعل دی من دار يدور هغو حوادثو ته وايي چي په مرور د زماني منخ ته راځي من الخير والشر ولهذا قيد بالسوء (والله سميع

عليم) او خداى ﷻ او پوهونكى دى د هغو خبرو چي منافقان يې د خپلو شيطانانو يعني مجاهرو كافرانو سره كوي. او علم لري پر هغه نفاق چي دوى يې په زړو كي ساتي. بغوي رحمه الله وايي چي آيت مذكوره په اعرابو كي او بني تميم او اسد او غطفان نازل سوى دى. د اعرابو په باره كي.

ده مرو ده مرد را احمق كند ............ عقل را بى نور وبى رونق كند

**پوه سه**: چي مراد له اعرابو څخه يا د لفظ د اعرابو څخه هغه قريب دي چي د امصارو څخه چي مجمع د اهل علم دي ډېري لېري واقع وي لا الملتصقة بالبلاد فانها في حكمها كما لايخفى.

## وَمِنَ الْأَعْرَابِ مَنْ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ

او بعض له اعرابو څخه هغه كسان دي چي پر خداى ﷻ ايمان لري. يعني په وحدانيت سره او پر ورځ د اخيرت چي راتلونكې ده.

**درويش وايي**: چي په دې آيت كي تنبيه ده پر دې باندي چي ټول اعراب دغسي نه دي يعني اشد كفراً ونفاقاً. بغوي رحمه الله وايي چي دا آيت نازل دى په بني مقرن كي چي د مزينه د قوم يو ښاخ دى. او هغه دمخه آيت هم په دوى كي نازل سوى و يعني قوله تعالى ولا على الذين اذا ما اتوك لتحملهم الآية. او عبد الرحمن بن معقل وايي كنا عشرة ولد مقرن.

**درويش وايي**: چي بعض مفسرين په مراد كي ددې ډلي د اعرابو متناقض بيان كړي دي والله اعلم.

## وَيَتَّخِذُ مَا يُنْفِقُ قُرُبَاتٍ عِنْدَ اللَّهِ وَصَلَوَاتِ الرَّسُولِ

او دوى ګرځوي يعني عقيده لري پر ما ينفق في سبيل الله سبب د ثوابو په نېز د خداى ﷻ او سبب د قرب وخداى ﷻ ته. او سبب د دعاګانو د رسول الله ﷺ او د استغفار د عليه الصلوٰة والسلام ددوى لپاره په دربار كي د رب العزت ﷻ، ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي څه وخت چي ابن ابي اوفى خپله صدقه راوړه، عليه الصلوٰة والسلام داسي دعا ورته وكړه اللهم صل على آل ابى اوفى، ټولو صحاح سته وو دا حديث راوړى دى الا الترمذي.

**درویش وایي:** چي روح البيان او مظهري دغه دعا د عليه الصلوة والسلام اللهم صل آل له صحيح كتابو څخه رانقل کړې ده لکن نور تفصيل يې نه دی ليکلی کړی. لکن روح المعاني د يوولسمي پارې په شپږمه صفحه کې ډېر تفصيل ليکلی کړی دی. دی وايي چي اوس هم که يو فقير يا يو عالم ته څوک صدقه ورکړه بايد د خير دعا او د برکت دعا او طلب د بخښې ورته وکړي. لکن داسي به نه وايي اللهم صل على فلان اى المتصدق. ولي چي علما، فقها او محدثين ټول وايي چي صلوة ويل پر غير د انبيا او ملائكه عليهم السلام نه دی روا الا بالتبع نحو صلى الله تعالى على سيدنا محمد وعلى آله واصحابه وعلى ابى حنيفة واحبابه وعلى امته ﷺ لان في الصلوة تعظيم ماليس في غيرها من الادعية. او صلوة لپاره د زيادت رحمت او قرب دی وخدای ﷻ ته. فلا بد ان يتصور منه الذنوب والخطايا والنبي معصوم منها. او تبعاً په دې روا دی چي په هغه کې تعظيم د متبوع دی او دی وايي چي په دې کي اختلاف دی چي مکروه تحريمي دی او که تنزيهي. او که خلاف الاولى دی. نووي رحمه الله په خپل کتاب الاذکار کي دويم مذهب مختاره کړی دی يعني چي مکروه تنزيهي دی. روح المعاني وايي وهو الصحيح.

**پوښتنه**: په حديث کي د صحاح پر ته له ترمذي داسي راغلي دي اللهم صل على آل ابى اوفى. نو وغير ته د نبي ﷺ ولي نه ده روا داسي وينا؟

**ځواب**: په مستصفى کي وايي چي دا د عليه الصلوة والسلام حق ده فله ان يتفضل به من يشاء ابتداً وليس غيره عليه الصلوة والسلام كذلك فلا يقوم حجة على المانع. بيا آلوسي رحمه الله د سلام مسئله پسي څېړلې ده او وايي چي لقاني رحمه الله په شرح کي د جوهرة التوحيد په نقل د امام جويني رحمه الله وايي چي سلام په معنی د صلوة دی په دې معنى چي پر غائب يوازي په غير کي د انبيا او ملائكه عليهم السلام يې انفراداً ويل جواز نه لري مگر تبعاً كما مر في الصلوة فلا يقال علي ﷺ كما يقوله الشيعة بل يقال علي رضي الله عنه وسواء في ذالك الاحيا والاموات الا الاموات الحاضرين فيقال السلام عليكم ايها الاموات الحاضرين وهذا مجمع عليه مثلاً يقول سلام عليكم دار قوم مؤمنين والظاهر في منع السلام

على غير الانبياً والملائكة علیهم السلام اصالة ماقال النووي ان ذالک من شعار اهل البدع كالشيعة فانهم يقولون علي علیه السلام وقد يكتفون بالسلام. وهذا كما يقال الله عزوجل وامثاله ولا يجوز ان يقول محمد عزوجل وان كان محمد عزيزاً جليلاً. حاصل دا چي تحقيق د معنى لغوي په صلاة او سلام او عزوجل په مدعوله کي کافي نه دی بلکې اذن شرعي شرط دی.

**درویش وایي**: چي صاحب د روح المعاني نور بحث اورد کړی دی او د نورو امامانو مذهب یې رانقل کړی دی وفيما نقلته كفاية لمن القى السمع وهو شهيد والله الموفق والمعين.

أَلَآ إِنَّهَا قُرْبَةٌ لَّهُمْ

آگاه اوسه چي دا نفقه او صدقه ددوی قربت او ثواب دی ددوی لپاره ده یعني ددوی ظن پر خدای پاک صحیح دی چي خدای پاک په اول کي ددې جملې حرف تنبیه راوړی او کلمه د "ان" د تحقیق یې راوړه او جمله یې په ډول او ترتیب د جمله استینافیه بیانیه راوړه فافهم لانه دقيق.

سَيُدْخِلُهُمُ اللَّهُ فِي رَحْمَتِهِ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٩٩﴾

ژر دی چي خدای پاک به دوی داخل کړي په خپل رحمت چي جنت دی او خدای غفور او رحیم دی.

وَالسَّابِقُونَ الْأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنصَارِ

او هغه کسان چي سبقت او اولیت د مهاجرینو له ډلي څخه یعني د خپل قوم او خپل وطن او د خپلو اوطانو او اموالو څخه په سبب د ظلم د کفارو د مکې او هغه کسان چي کومک یې کړی دی د علیه الصلوٰة والسلام او د مهاجرینو سره او ځای یې دوی ته ورکړی په خپل ښار مدینه کښي چي انصار یې بولي ، مظهري رحمه الله وایي چي په دې کښي اختلاف دی چي سابقین د دواړو ډلو مهاجرين او انصار څوک مراد دي بعض علماً رحمهم الله وایي چي سابقین د دواړو دلو هغه کسان دي چي دواړو قبلو ته یې لمونځ کړی دی یعني بیت المقدس والكعبة، او

بعض وايي چې هغه كسان دي چې بيعة الرضوان يې د عليه الصلوٰة والسلام سره كړې وُ په حديبيه كې چې عليه الصلوٰة والسلام د عمرې لپاره تخميناً د پينځلسو سوو (١٥٠٠) صحابه كرامو ﷺ سره راروان سوى وُ له مديني منورې څخه د ذو العقدې په مياشت كې او قريش يې مانع سوه وروسته صلح سره وسوه. او بعض وايي چې له مهاجرينو څخه اته كسه دغه دي (١) ابوبكر (٢) عثمان بن عفان (٣) علي (۴) زبير بن العوام (۵) عبدالرحمن بن عوف (٦) سعد بن ابي وقاص (٧) زبير بن الحارثه (٨) طلحة بن عبيد الله ﷺ. بغوي ﷫ وايي چې تو له فرق پر دې متفق دي چې اول چې پر عليه الصلوٰة والسلام يې ايمان راوړى ام المؤمنين حضرت خديجة الكبرى ﷝ وه. وروسته تر هغې جابر بن عبد الله ﷛ وايي چې علي بن ابي طالب ﷛ وُ. ويدل عليه:

سبقتكم الى الاسلام طراً ............... غلاماً مابلغت اوان حلم

ابن اسحاق ﷫ وايي چې حضرت علي ﷛ د لسو كالو وُ چې ايمان يې راوړى. او ابن عباس ﷛ او ابراهيم نخعي او شعبي وايي چې وروسته تر خديجې ﷝ اول حضرت ابوبكر ﷛ ايمان راوړى. او بعض وايي چې اول زيد بن حارثه ﷛ وُ. وهو قول الزهري وعروة بن الزبير ﷛. اسحاق بن ابراهيم حنظلي ﷫ ددې اقوالو جمع په دې ډول كړې ده چې اول من النساء خديجة الكبرى ﷝ وه. او اول د رجالو ابوبكر ﷛ وُ. او اول د كوچنيانو علي ﷛ وُ. او اول د مريانو زيد بن حارثه ﷛ وُ. د تاريخ په پاڼو كښې وايي چې ابوبكر ﷛ چې ايمان راوړى نو خپل ايمان يې ښكاره كړى او خلگو ته د اسلام دعوت شروع كړى. چونكه ابوبكر ﷛ په مكه كښې يو تجار وُ او د خلق حسن خاوند وُ او د خلگو سره يې لوى لوى احسانونه كول او خلگو ته ډير محبوب وُ. او په قريشو كې د لوړ نسب صاحب وُ، نو دده د قوم خلگ به ده ته راتلله لحسن مجالسته ده به تبليغ ورته كاوه. لكن هغه چاته به يې تبليغ كاوه چې دده به پر هغه اعتماد وُ. نو حضرت عثمان ﷛ دده پر لاس ايمان راوړى او زبير بن العوام او عبدالرحمن بن عوف او سعد بن ابي وقاص او طلحة بن عبيد الله ﷺ. نو



Scanned by CamScanner

ابوبکر رضی الله عنه دوی راوستل و علیه الصلوٰة والسلام ته حین اسلموا وصلوا ثم اسلم غیرهم حتی چي مسلمانان تر او بنځي نهه دېرش ته ورسېدل په اووه کاله کښې، وروسته عمر رضی الله عنه ایمان راوړی چي څلوېښت پوره سوه، حتی چي بعض مفسران رحمهم الله وايي مسلمانان چي څلوېښت ته ورسېدل دا آیت نازل سو "یاایها النبي حسبک الله ومن اتبعک من المؤمنین" عمر رضی الله عنه چي اسلام راوړی د مکې مشرکانو وویل چي نیمایي برخه زموږ ولاړه، دا ؤ بیان د سابقینو د مهاجرینو.

او سابقین د انصارو هغه کسان دي چي په نیز د جمرة العقبة یې د علیه الصلوٰة والسلام سره بیعت وکړی چي په دې وخت کي علیه الصلوٰة والسلام په مکه کي ؤ چي په عقبة اولی سره مشهوره ده، او بعض وايي چي شپږ کسه وه او بعض وايي چي اووه کسه وه او بعض وايي چي په عقبه ثاني کي دوولس کسه وه او اوویا کسه په عقبه ثالثه کي وه. او هغه کسان هم په سابقینو کي حساب دي چي علیه الصلوٰة والسلام ابو الدردا او مصعب بن عمیر رضی الله عنهما مدینې ته واستول لپاره د تعلیم القرآن فاسلم في المدینة خلق کثیر من الرجال والنسآ والصبیان.

وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُمْ بِإِحْسَانٍ

او هغه کسان چي د سابقینو متابعت یې کړی په اسلام راوړلو کي په اخلاص سره یعني دون النفاق.

**پوه سه:** چي اکثره مفسرین رحمهم الله وايي چي دا تابعین بالاحسان نور مهاجرین او انصار دي پرته له سابقینو اولینو څخه، او بعض مفسرین رحمهم الله وايي چي دا ټوله هغو کسانو ته وايي چي د سابقینو پر لار روان وي په ایمان او په هجرت کي له کفارو څخه او د دین اسلام نصرت کوي الی یوم القیامة.

**درویش وايي:** چي پر دې تفسیر هغه مسلمانان چي د افغانستان څخه یې هجرت کړی دی په سبب د تسلط د روسانو پر افغانستان همسایه ممالکو لکه پاکستان او ایران ته نو دوی هم په مهاجرینو کي حساب دي، او دا ممالک حتی سعودي عربستان چي ددوی سره یې امداد کړی دی په انصارو کي حساب دي، عطأ رحمه الله وايي چي "الذین اتبعوهم آه" هغه کسان دي چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم

اصحاب ﷺ یې په ترضي او ترحم او دعاسره ذکر کوي. او حميد بن زياد رحمه الله
وايي چې زه محمد بن کعب القرظي ته ورغلم ما ورته وويل "ماقولک في
اصحاب رسول الله ﷺ"؟ ده راته وويل چې د رسول الله ﷺ ټوله اصحاب ﷺ به په
جنت کې وي محسنهم ومسيئهم، ما ورته وويل من اين تقول هذا؟ دا خبره ته د
څه د ركه كوې؟ ده راته وويل اقرأ والسابقون الاولون من المهاجرين الى ان قال
الله رضي الله عنهم ورضوا عنه" په دوی کې خدای پاک شرط نه دوايه "والذين
اتبعوا باحسان" يعني په تابعينو کې یې شرط ووايه چې دوی متابعت د اصحابو
کوي په افعال حسنه وو کې دون السيئة. حميد بن زياد رحمه الله وايي لکه ما چې دا
آيت هيڅ کله نه ؤ ويلی او زه یې په تفسير نه وم خبر حتى قرأ على محمد بن
كعب وفسرهالي. بل دليل ددې چې اصحاب د عليه الصلوة والسلام به ټوله په
جنت کې وي دا قول د خدای ﷻ دی "لا يستوي منكم من انفق قبل الفتح وقاتل
اولئک اعظم درجة من الذين انفقوا من بعد وقاتلوا كلا وعد الله الحسنى اى
الجنة فانه صريح بان جميع الصحابة اولهم وآخرهم وعدهم الله الحسنى اى
الجنة. فضائلهم: قال رسول الله ﷺ اصحابي كالنجوم بايهم اقتديتم اهتديتم،
رواه رزين من عمر بن الخطاب رضي الله عنه. وقال رسول الله ﷺ ما من احد من اصحابي
يموت بارض الا بعثه الله قائداً ونوراً لهم يوم القيامة رواه الترمذي من حديث
بريدة. وقال رسول الله ﷺ لاتمس النار من رأني اوري من رأني (وهم التابعون)
رواه الترمذي عن جابر وقال رسول الله ﷺ لاتسبوا اصحابي تاسي بنکنځل مه
کوئ زما و اصحابو ته يعني اجتماعاً او انفراداً.

**درويش وايي:** چې په دې حديث کې سخت ګذار دی پر شيعه ګانو چې
ابوبكر او عمر رضي الله عنهما ته بد وايي او پر روافضو چې علي رضي الله عنه ته بد وايي "فوالذي
نفسي بيده لو ان احدكم انفق مثل احد ذهباً ما ادرک مد احدهم ولانصيفه،
بخاري مسلم (زما دې قسم په خدای ﷻ وي چې زما روح د هغه په قدرت کې
دی که يو ستاسې څخه نفقه په مثل د احد سره زر يعني في سبيل الله نه سې
پيدا كولای ثواب د يوه مد د اصحابو د انفاق او نه د نيمايي د هغه.

رَّضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ

خدای ﷻ راضي دی له دوی څخه چې د رضاٴ الهي نتيجه داده چې ددوی اعمال به تول له قبول وي په دربار کي د خدای ﷻ او خدای پاک به ددوی اعمال خوښوي. او دوی به راضي وي له خدای ﷻ څخه په حسن ثواب سره پرلې عبادت او دوی به وايي نرضى بالله رباً وبالاسلام ديناً وبمحمد نبياً ﷺ وبالقرآن اماماً وصراطاً مستقيماً.

وَأَعَدَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي تَحْتَهَا الْأَنْهَارُ

او جوړ کړي خدای پاک ودوی ته جنتونه چې بهيږي لاندي تر درختو د جنتو ددوی او تر قصورو د دوی، ولې چې څلور دي اوبه، شراب، شيدې او عسل.

خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ذَٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ۝ وَمِمَّنْ حَوْلَكُم مِّنَ الْأَعْرَابِ مُنَافِقُونَ

همېشه ابدي به وي دوی په دغو جنتو کي او دا هم لويه کاميابي ده. بعض د شاوخوا څخه ستاسي اعراب سته چې منافقان دي چې دا منافقان د دغو قومو څخه وه مزنيه، جهنيه، اشجع، اسلم وغفار چې ددوی کورونه د مدينې پر اطرافو وه.

**پوه سه:** چې "منافقون" مبتدأ ده او "ممن آه" يې خبر دی او مصحح د ابتدائيه د نکره والي د مبتدأ دی او من الاعراب بيان دی د من حولکم.

**پوښتنه:** په مناقبو کي د غفار، اسلم او اشجع د قبيلې د پر احاديث صحيحه راغلي دي، نو دلته د نفاق حکم څرنګه دی؟

**ځواب:** دلته خدای پاک من تبعيضي راوړی دی. نو بعض منافقين په دوی کي منافي د مدح او منقبت سره ددوی منافات نه لري.

وَمِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ مَرَدُوا عَلَى النِّفَاقِ

او بعض د اهل مدينې چې د قبيله اوس او خزرج بعض نفر وه، چې اهل نفاق دي.

**پوه سه:** چې دا "من" تبعيضي عطف دی پر "ممن قبله" باندې "مردوا على النفاق" صفت دی د منافقينو چې دوی ثابت دي پر نفاق يقال فلان مرد على معصية ای مرن وثبت عليها. ابن زيد رحمه الله وايي معنا يې داده اقاموا عليه ولم

يتوبوا. په قاموس کي وايي چي تمرد غاية او نهاية ته د هري گناه وايي، والمعنى هم بلغوا غاية النفاق.

لَا تَعْلَمُهُمْ نَحْنُ نَعْلَمُهُمْ سَنُعَذِّبُهُم مَّرَّتَيْنِ ثُمَّ يُرَدُّونَ إِلَىٰ عَذَابٍ عَظِيمٍ

يعني ته يې اې محمده نه پېژني په صفت د نفاق سره د كمال عقل او فطنه ستا او د فراست ستا. ولي چي دوی په فن كي د نفاق دومره ماهره دي چي د تهمت له ځايه ځان ساتي "نحن نعلمهم" موږ يې پېژنو، ولي دوی كه هر څو د ځان په پټولو كي سعي وكړي له تا سره لكن زما څخه نه سي پټېدلای لانه تعالى يعلم سرائر قلوبهم "سنعذبهم مرتين" خدای پاک وايي چي موږ به عذاب وركړو دوی ته دوه واره.

**يوه سه**: چي له "عذاب عظيم" څخه چي دوی ورته ردېږي مراد عذاب د جهنم دی هم فيها خالدون وهذا هو عذاب الآخرة نجي الله المؤمنون منه.

**درويش وايي**: چي له يوه عذاب څخه عذاب القبر مراد دی په اتفاق د مفسرينو. او بل عذاب څوک رسوا كول دي د دوی چي سدي او كلبي روايت كړی دی چي عليه الصلوة والسلام د جمعې پر خطبه ناست ؤ ږغ يې وكړی اخرج يا فلان فانک منافق، اخرج يا فلان فانک منافق اخرج يا فلان فانک منافق اخرج ناساً من المسجد دا شپږ دېرش نفره وه رسوا يې كړه وهذا هو العذاب الاول.

**سوال**: په دمخه ايت كښي داسي وويل سوه "لاتعلمهم" نو څرنگه عليه الصلوة والسلام نامه په نامه دوی ولاړه كړل سره ددې چي د عليه الصلوة والسلام څخه يې نفي د علم غيب كړې وه؟

**ځواب**: په تعليم د خدای ﷻ عليه الصلوة والسلام دوی نامه په نامه وپېژندل او له مسجد څخه يې وه شړل، وقال مجاهد رحمه الله الاول القتل والسبي وفيه ان هذا لم يثبت في الاحاديث الصحيحة وقال ابن زيد رحمه الله اول عذاب يې مصائب په اولادو او په اموال كي، او د مجاهد رحمه الله په بل روايت كي راغلي دي عذبوا بالجوع مرتين في كل سنة، او له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی اقامة الحدود عليهم في الدنيا وفيه مافيه. ابن اسحاق رحمه الله وايي چي عذاب الدنيا

دخول ددوی دی په اسلام کي مع غيضهم للاسلام، او بعض وايي چي اول عذاب ددوی احراق د مسجد ضرار ددوی ؤ په اور سره وقيل غير ذالک.

**وَاٰخَرُوْنَ اعْتَرَفُوْا بِذُنُوْبِهِمْ خَلَطُوْا عَمَلًا صَالِحًا وَّاٰخَرَ سَيِّئًا**

معطوف دی پر منافقون باندي يعني وممن حولكم من الاعراب آخرون او من اهل المدينة آخرون ليسوا بمنافقين بل حالهم هكذا، چي دوی اقرار وکړی په گنهو سره خپل يعني تخلف من غزوة تبوک بلا عذر، يعني وقوم آخرون غير منافقين چي دوی سره گډ کړی دی عمل صالح من الايمان والصلوة والجهاد مع رسول الله ﷺ دېر وارونه واظهار الندم والاعتراف "وآخر سيئا" وهو التخلف عن تبوک کاهل النفاق.

**عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّتُوْبَ عَلَيْهِمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ**

شايد خدای ﷻ به ددوی توبه قبوله کړي چي ددوی د اعتراف بالذنب څخه معلومېږي لان الاعتراف بالذنب ينبئ عن الندم وقد ورد في الحديث الصحيح الندم هو التوبة، چي وتائب ته مغفرت د گناه کوي او علاوه پر هغه نور احسان هم ورسره کوي کمايدل عليه اقتران الرحيم بالغفور.

**پوه سه:** چي اطماع د کريم مثل الوعد المحتوم يعني لفظ د "عسى" چي ذکر سو.

**پوه سه:** چي ددې آيت په شان نزول کي بيهقي او نورو راويانو له ابن عباس ﵄ څخه داسي روايت کړی دی چي لس کسه (يعني مخلص مسلمانان بېله کوم عذره) په غزوه تبوک کي يې له عليه الصلوٰة والسلام څخه تخلف کړی ؤ چي په هغو کښې ابو لبابه بن عبد المنذر ﵁ ؤ، څخه وخت چي عليه الصلوٰة والسلام له تبوک څخه راوگرځېدی او مدينې ته نژدې سو، نو اوو کسانو ددوی څخه ځانونه د مسجد نبوي په تنبو پوري وتړل (يعني هر سړي يا زوی يا ماينه يا بل قريب راوغوښتی چي ما په دغه تنبه پوري په رسی ټينگ وتړه او هم دغو قريبانو به د لمانځه پر وخت دوی خلاصول يا د دوی د خوړلو پر وخت يا د اودس مات لپاره يا د اودس تازه کولو په وخت کښې به يې خلاصول چي دا ضروريات به دوی پر ځای کړل بېرته يې تړل) عليه الصلوٰة والسلام چي به له مسجده وتی دغه تړلي کسان يې په لار کښې وه عليه الصلوٰة والسلام چي دوی وليدل داسي يې وويل "من هولاء الملحوق انفسهم.



Scanned by CamScanner

**درویش وایي**: چي دغه کسان خو علیه الصلوٰة والسلام پېژندل. استفهام یې په حقیقت کښي راجع وسبب ته د ترلو ؤ. خلګو ورته وویل چي دا کسان ابو لبابه او دده نور ملګري دي چي دوی ستا څخه په غزا کي د تبوک تخلف کړی ؤ او دوی دا معاهده سره کړې وه چي موږ به خپل ځانونه خلاص نه کړو تر څو چي علیه الصلوٰة والسلام په خپل لاس مبارک موږ خلاص نه کړي، علیه الصلوٰة والسلام وویل وانا اقسم بالله لا اطلقهم ولا اعذرهم (زه قسم په خدای اخلم چي زه نه دوی خلاصوم نه یې زه عذر قبلوم) حتی یکون الله هو الذي یطلقوهم "ای یحکم الله لي باطلاقهم" رغبوا عني وتخلفوا عن الغزو مع المسلمین. نو دوی چي دا خبره د علیه الصلوٰة والسلام واورېدل او یا چا وررورسول دوی وویل لانطلق انفسنا حتی یکون الله یطلقنا (یعني چي خدای ﷻ حکم په ایله کولو کښي ونه کړي) فانزل الله تعالی هذه الآیة. نو دا آیت چي نازل سو نو علیه الصلوٰة والسلام دوی ته سړی ورواستاوه چي ستاسي عذر خدای پاک قبول کړی ځانونه خلاص کړئ. هغه نورو ملګرو خو ځانونه خلاص کړه، مګر ابو لبابه رضي الله عنه وویل چي زما دي قسم په خدای ﷻ وي چي علیه الصلوٰة والسلام مي په خپل لاس خلاص نه کړي که بل څوک ما خلاص کړي. نو علیه الصلوٰة والسلام ورته راغلی او دی یې خلاص کړی بیده المبارکة.

**پوښتنه**: ددې کسانو عذر ولي قبول سو او د منافقانو عذرونه نه سول قبول؟

**ځواب**: دا کسان مخلص مسلمانان وه او په ګناه یې اعتراف وکړی او پر ګناه یې د زړه له کومي توبه وکښل ولهذا قبل عذرهم بخلاف المنافقین. راوي وایي چي دوی ورغله خپل مالونه یې راوړه وقالوا یا رسول الله هذه اموالنا فتصدق بها عنا واستغفرلنا. علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل ما امرت ان اخذ من اموالکم فانزل الله تعالی هذه الآیة.

**خُذْ مِنْ أَمْوَالِهِمْ صَدَقَةً تُطَهِّرُهُمْ وَتُزَكِّيهِم بِهَا**

واخلـه بعض اموال ددوی پـه صدقه کښي یعني دا کفاره ده ددوی د ګنهو یعني ګناه د تخلف او بعض مفسران وایي چي د زکوٰة په توګه.

**بوه سه:** چي په "تطهرهم بها" کښي تا ياد خطاب ده او مخاطب عليه الصلوٰة والسلام دی يا صفت د صدقة دی. او صيغه غائبه موئث ده للتانيث الصدقة.

"وتزکيهم بها" ته دوی پاک کړه په دغه صدقه سره دا صيغه حتماً مخاطب ده يعني دوی پورته کړه په سبب د تصدق د اموالو د دليل ومنازلو ته د مخلصينو.

**درويش وايي:** چي په عدد کښي د دغو کسانو اختلاف دی دمخه تيره سوه چي لس کسان وه. دا روايت د سعيد بن جبير او ضحاک ورزين بن اسلم وغيره رحمهم الله دی. لکن بغوي رحمه الله وايي چي عطيه له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي پينځه کسه وه، ابو لبابه او سعيد بن جبير رضي الله عنهما. زيد بن اسلم وايي اته کسه وه، او ضحاک وايي چي اووه کسه وه.

**درويش وايي:** چي د ابو سفيان او د جابر رضي الله عنه په روايت کښي دغه نومان ذکر سوي دي (١) ابو لبابه (٢) اوس بن حذام (٣) ثعلبه بن وديعه (۴) کعب بن مالک (۵) مرارة بن الربيع (٦) هلال ابن اميه او په دې روايت کښي راغلي دي چي دوو کسانو ځان په تنبو (ستنو) پوري تړلي ؤ ابو لبابه او ثعلبه، او بعض روات وايي چي يوازې ابو لبابه رضي الله عنه ځان په تنبه پوري تړلي ؤ که څه هم مخلصان د غزا څخه د تبوک تخلف کونکي ډېر وه والله اعلم.

وَصَلِّ عَلَيْهِمْ ط

او دعا د مغفرت وکړه ودوی ته. بغوي رحمه الله وايي چي په وجوب کښي د دعا پر امام باندې په نيز د اخذ د صدقه. بعض علما وايي چي واجبه ده بعض وايي مستحب ده بعض وايي چي په صيغه مفروضه يعني الزکوة واجبه کښي واجبه ده پر امام. او په صدقه نافله کښي مستحب ده او فقير ته مستحب ده ان يدعوا للمعطي في المفروضة والنافلة.

**فائده:** صلوة په لغت کښي دعا. رحمت او استغفار ته وايي وحسن الثنا من الله علی رسوله کما في القاموس چي معتبر کتاب دی په تفسير او بيان کښي د عربي الفاظو. نو چي اسناد يې وسي وبندګانو ته کما في هذه الآية وصل عليهم فالمراد بها الدعا والاستغفار، او چي اسناد يې وخدای جل جلاله ته وسي مراد څندي

رحمت دی لکه په دې قول کښې د علیه الصلوٰة والسلام اللهم صل علی آل ابي اوفی یا په دې قول د علیه الصلوٰة والسلام اللهم اجعل صلوتک ورحمتک علی آل سعد بن عبادة رواه ابو داؤد والنسائي.

**درویش وایي**: چې مظهري رحمه الله په هغه صلوة کښې چې اسناد یې وخدای جل جلاله ته وسي داسي ویلي دي یراد به الرحمة والثنا الحسن انتهی. د ثنا حسن د خدای ویلو د یو چا نازیبا دی.

**درویش وایي**: چې د صلوة ویلو مسئله په تحقیق سره ناقلاً عن روح المعاني بلکې د سلام پر غائب یې هم تفصیلاً ذکر کړی.

**اِنَّ صَلٰوتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ**

په تحقیق ستا دعا ددوی د زړه ارام، اطمنان او رحمت دی، او خدای پاک اورېدونکی دی د اقرار ددوی په خپلو ګنهو سره او په دعا د علیه الصلوٰة والسلام ودوی ته او علم کامل لري پر احوالو ددوی.

**درویش وایي**: چې صاحب د روح المعاني په صفحه څورلس کښې وایي چې له صلوة څخه معنی لغوي مراد ده ای ادع لهم واستغفرلهم والحمل علی صلوة المیت بعید انتهی، او بغوي او مظهري هم دغه معنی لغوي راوړي ده، لکن روح البیان د یوولسم جزء په تفسیر کښې په صفحه ۴۹۶ صلوة الجنازة څنډي اخستی دی او د سړي د غسل او صلوة الجنازة د آدم علیه السلام څخه د علیه الصلوٰة والسلام تر زمانې پورې څېړلی دی او تخمیناً څلور صفحې ته یې تفصیل او بیان اوږد کړی دی نه پوهېږم چې په مذکوره آیتو کښې بېله دعا او استغفار وصلوة الجنازة هیڅ اشاره نسته او نه هیڅ یوه مفسر بېله روح البیان دغه آیتونه پر صلوة الجنازة حمل کړی دی بلکې په قیل یا ویحتمل یې هم نه دی راوړی والله اعلم بالصواب، بغوي رحمه الله وایي چې څه وخت چې توبه قبوله سول له مذکوره متخلفینو څخه نو هغو کسانو چې توبه یې نه وه کښلې له تخلف څخه ان هؤلاء یعني المتخلفین التائبین کانوا معنا بالامس پرون دغه کسان خو زموږ له ډلې څخه وه یعني نه چا خبري ورسره کولې او نه ورسره کښېنستل نن بیا څه

پښېمانه سوه چي د دوی خبري او ناسته ولاړه شروع سوله فنزل هذه الآية.

أَلَمْ يَعْلَمُوٓا أَنَّ ٱللَّهَ هُوَ يَقْبَلُ ٱلتَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهِۦ وَيَأْخُذُ ٱلصَّدَقَٰتِ

آیا نه دي خبر دغه متخلفین الغیر التائبین چي خدای ﷻ توبه قبلوي د خپلو بندګانو څخه وحاصل الجواب لسؤال هؤلاء المذکورین قد تابوا عن التخلف او اقرار یې وکړی په خپل ګناه سره او پښېماني یې ښکاره کړه له صدق قلب څخه او خدای پاک توبه قبلوي د خپلو بندګانو یعني دغه پښېمانه سوه. او اخلي صدقات له مؤمنانو څخه یعني قبلوي یې.

**پوه سه**: چي اخذ قبول د شي په ورکړه سره د عوض لکه مشتري چي مبیعه قبوله کړي په ورکړه سره د ثمن. نو خدای ﷻ چي تعبیر په اخذ سره وکړی ددي لپاره چي پر ورکړي د صدقې اجر او ثواب موعود سته.

**درویش وایي**: چي علامه بغداد السید محمود الآلوسي رحمه الله د یوولسم جزء په تفسیر کښې په صفحه ۱۵ کښې ددې آیت پوره تحقیق کړی دی (۱) اخذ استعاره ده و قبول ته (۲) خدای پاک اول نسبت د اخذ ورسول ﷺ ته کړی دی خذ من اموالهم صدقة آه او دلته یې نسبت وځان ته وکړی "ویأخذ الصدقات" اشاره ودې ته ده چي اخذ د رسول ﷺ قائم مقام د اخذ الله دی تعظیماً لشانه نبیه ﷺ کما في قوله تعالی "ان الذین یبایعون انما یبایعون الله" نو پر دې تقدیر اخذ محمول پر حقیقت دی وقال هو معنی حسن (۳) امام آلوسي وایي چي عبدالرزاق له ابي هریرة رضي الله عنه روایت کړی دی ان الله یأخذ الصدقات اذا کانت من طیب ویأخذها بیمینه (یعني په رښته لاس) وان الرجل لیتصدق بمثل اللقمة فیربیها کما یربی احدکم فیصله او مهره فتربو في کف الله تعالی حتی تکون مثل احد.

**درویش وایي**: چي داسي حدیثونه له متشابهاتو څخه دي چي د هغو په باره کښې د سلف رأیه داده چي ایمان بما اراد الله تعالی به سړی کوي او تفویض د علم به یې وخدای پاک ته کوي، او متأخرین دا حدیث پر تمثیل حمل کوي یعني لکه یو سړی چي د یوه شي په اخستلو سره د بل چا څخه اعتنا کوي نو رښته لاس وروغخوي را وایې خلي. قالوا رأی السلف احکم لاحتمال الخطأ في

التاويـل ورأى المتـأخرين مسـلم لـدفع توهمات الـزائغين (۴) وروستـه دا بـل حديث په روايت د دار قطني له ابن عباس ﷺ څخه ده وويـل چي رسـول الله ﷺ وويل تصدقوا فان يعطى اللقمة او الشيئ فيقع في يد الله قبل ان يقع في يد الســائل ثم تلا ابن عباس ﷺ هذه الآية.

**درویش وایـي:** چـي دا حـديث هـم د متشـابهاتو څخـه دی مثـل الاول وقـد مربيانه آنفاً.

(۵) آلوسي ﷫ وايي چي په بعض رواياتو كښي د حديث داسي راغلي دي چي د خدای ﷻ له خوا اخذ حقيقةً نسته. ده له ابن منـذر څخـه دا حديث را نقل كړی دی "عن ابي هريرة ﷺ قال رسول الله ﷺ والذي نفسي بيده ما من عبد يتصدق بصدقة طيبة من كسب طيب ولا يقبل الله الا طيباً ولا يصعد الا طيب ويضعها في حق الا كانت كانما يضعها في يد الرحمن الى اخير الحديث.

**درویش وایي:** چي آلوسي ﷫ دا حديث پر دې دعوی چي اخذ حقيقة من الله نسته په دې ډول گرځولی دی چي په دې حديث كي حرف تشبيه راغلی دی يعني لفظ د كانما يضعها الحديث.

**درویش وایي:** چي مظهري ﷫ د ابو هريره ﷺ حديث دا ډول راوړی دی كانما يضعها في يد الرحمن الحديث. يعني حرف تشبيه يې راوړی نور تفصيل يې نه دی كړی دا هم ډېره ښه توجيه ده چي په دې توجيه د متشابهاتو گرځول د احاديث مذكوره موږ. كم عمره ملايان خلاصېږو او دا حديث چي مجسمه وو پر جسميت د خدای ﷻ دليل گرځولی دی نجات زموږ په برخه سو او د دوی دلائل ناكامه سوه والله اعلم بالصواب.

وَأَنَّ اللَّهَ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ ﴿١٠٤﴾

او په تحقيق سره خدای پاک توبه قبلونكی دی د تائبينو او نور تفضل او احسان هم ورسره كوي كماهو معني الرحيم.

**درویش وایي:** چي بعض مفسرين د "تواب" ترجمه په توفيق وركونكي د توبې كوي بلطفه وكرمه دی وايي ولولا توفيقه ماتاب مذنب قط كما لا يتوب

ابلیس، وایده مافي المثنوي:

جزعنایت که کشاید چشم را ........ جز محبت که نشاند خشم را

جهد بی توفیق خود کس رامباد ........ درجهان و الله اعلم بالرشاد

وَقُلِ اعْمَلُوا فَسَيَرَى اللَّهُ عَمَلَكُمْ وَرَسُولُهُ وَالْمُؤْمِنُونَ

ووایه اې محمد ﷺ ودغو تخلف کونکو ته او یا ټولو خلګو ته چې تاسې عمل کوئ هرڅه چې کوئ ژر دی چې خدای ﷻ به ووینې عمل ستاسې، ولې خدای ﷻ د بندګانو په خیر او شر د عمل خبر دی او رسول د خدای ﷻ او مؤمنان یعني چې خدای ﷻ ستاسې پټ حالات به رسول او مؤمنانو ته ظاهر کړي. مجاهد رحمه الله وایې چې دا لوی وعید دی متخلفینو لره.

وَسَتُرَدُّونَ إِلَىٰ عَالِمِ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿۱۰۵﴾

او بیا به تاسې رد کړل سئ یعنې په ورځ د قیامت و هغه ذات ته چې عالم الغیب والشهادة دی، یعني غیب او شهادت د خلګو لانه لاغیب عند الله. نو هغه خدای ﷻ به تاسې خبر کړي په عملو ستاسې.

وَآخَرُونَ مُرْجَوْنَ لِأَمْرِ اللَّهِ إِمَّا يُعَذِّبُهُمْ وَإِمَّا يَتُوبُ عَلَيْهِمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿۱۰۶﴾

او نور کسان له مدینې والاو څخه چې تخلف یې له غزا څخه د تبوک کړی ؤ هغه ځنډول سوي دي لپاره د امر د خدای ﷻ ددوی په باره کښې یا به عذاب ورکړي خدای ﷻ دوی ته او یا به توبه قبوله کړي ددوی، ولې چې پر خدای ﷻ کوم کار واجب نه دی که یې مشیت سي پر صغیره ګناه به چاته عذاب ورکړي وان شاء یغفر الکبائر بلا توبة، نو بنده ګان باید همېشه د خوف او رجاء تر منځ ژوند وکړي یعنې نه د ګناه په سبب د خدای ﷻ له مغفرت څخه ناامید کېږي او نه دي پر عبادت تکیه کوي، او خدای ﷻ علم لري پر ظاهر اعمال د بندګانو او پر قلبي پټو احوالو ددوی او هیڅ کار یې له حکمته خالي نه دی. مظهري رحمه الله وایې چې د دغو کسانو څخه کعب بن مالک، هلال بن امیه او مرارة بن الربیع مراد دي د هغه لسو کسانو څخه چې تخلف یې کړی ؤ له غزا څخه د تبوک او

خانونه یې په سواري پوري د مسجد نه وه ترلي، نو رسول الله ﷺ امر وکړی چې دغو کسانو ته مه سلام وراچوئ او مه خبري ورسره کوئ وفوضوا امرهم الی الله فرحم الله. راوي وايي چې پينځوس ورځي وروسته ددوی توبه قبوله سوه او دا آیت نازل سو "لقد تاب الله علی النبي الی قوله وعلی الثلاثة الذین خلفوا".
سعید شیرازي رحمه الله وايي:

بسانام نیکوی پنجاه سال ......... که یک نام زشتش کند پای مال

**درویش وايي:** چې اسلامي تاريخ خبري کوي چې پښتنو ژباړه يې داده چې مدينه والو مهاجرينو او انصارو رضي الله عنهم ته د عليه الصلوٰة والسلام د هجرت او له روانګي څخه له مکې څخه دمخه خبر رارسېدلی ؤ حتی چې مهاجرين او انصار رضي الله عنهم به هره ورځ ثنية الوداع چې د يوې غونډۍ غونډي ځای نوم دی وتل به.
**وجه التسمية:** د مدينې والو دا عادت ؤ چې د يوه محترم ميلمه د رخصتۍ چې وداع يې بولي تر دغه ځای ورسره راتله نو چې غرمه به سوه لمر به تود سو کور ته به ولاړه. څرنګه چې به ماپښين سو بيا به ثنية الوداع ته د استقبال لپاره راغله نر خو لاڅه کوي ښځي چې تر حجاب به نه وې لاندي او پېغلاني نجوني به هم ثنية الوداع ته راوتلې. تاريخ وايي په ورځ د دوشنبې پر دوولسمه د ربيع الاول ثنية الوداع ته راورسېدی نرانو به دا شعر وايه.

طلع البدر علینا من ثنیات الوداع .... وجب الشکر علینا ما دعی لله داع

او نجنو او ښځو به دا شعر وايه

نحن جوار من بني النجار .......... یاحبذا محمداً من جار

د عليه الصلوٰة والسلام مور د مدينې د بني النجار له قوم څخه وه. نو اول يې په قبا کښې پر بني عمر بن عوف واړول چې يوه کوچنۍ قبيله د انصارو د قبيلې وه. او پر کور کلثوم بن الهدم چې سپين ږيری د بني عمر بن عوف ؤ بعض راويان وايي چې دا شيخ دمخه مسلمان سوی ؤ او بعض وايي چې په وخت کښې د رسېدلو د عليه الصلوٰة والسلام مسلمان سو.
**يوه سه:** چې قبا نژدې ومدينې منورې ته تخميناً پر نصف فرسخ واقع ده. نو

عمار بن یاسر رضی الله عنه وبني عمر ته وویل چي علیه الصلوٰة والسلام چاره نه لري د یو سايي له ځايه او د لمانځه له ځايه څخه. نو دغه ځکه چي مسجد قبا په هغه وخت کښې پر جوړ سو يوه خالي ځمکه وه چي دوی به له باغو څخه خورما رائستله. نو پر دغه اوار ځای باندي به يې اېښوول. بني عمر دا خبر د عمار بن یاسر ومنل او د مسجد د جوړېدلو رايه په اتفاق ومنل سوه، نو علیه الصلوٰة والسلام امر وکړی چي د نژدې غره څخه دي پر بودګانو باندي ډبري راوچلول سي او ځيني خلګ دي خښتي وموړي او د چا په باغ کي چي د خورما زاړه تیران وي هغه دي راوباسي او د خورما د درختو پاڼي چي دوی به هر کال پرې کول هغه دي راوباسي نو ډبري وغیره مذکوره شیان سره جمع سوه، نو علیه الصلوٰة والسلام په خپل مبارک لاس د مسجد قبا نقشه و عمار رضی الله عنه ته تسلیم کړه او دبادب کار شروع سو او په څو ورو ځو کښې مسجد قبا په ساده ډول پای ته ورسېدی، نو مسجد قبا اول مسجد دی چي د مسلمانانو په لاس جوړ سو ، او اول مسجد دی چي علیه الصلوٰة والسلام په جماعت خپلو اصحابو رضی الله عنهم ته لمونځ ورکړی په امن او امان کښې، د بخاري په روایت سره چي تر لس ورځو بالا علیه الصلوٰة والسلام په قبا کښې تېري کړې و المنقول عن مسلم چي څلورلس ورځي يې تېري کړې، وروسته چي علیه الصلوٰة والسلام مدينې ته ولاړی هره د شنبې ورځ به يا راکباً يا ماشياً راتلی د ځانښت په وخت کښې او په مسجد قبا کښې بې یو څو رکعته نفل وکړه بیرته به مدینې ته ستانه کېدی. په سیرة الحلبیة کي وايي چي علیه الصلوٰة والسلام وویل که چا اودس په ښه ډول تازه کړی او بیا ورغلی په مسجد قبا کښې لمونځ وکړی، نو ده لره د يوې عمرې ثواب لري.

**درویش وايي**: چي حاصل دادی چي د مسجد قبا واضع رسول الله ﷺ دی او معمار يې عمار رضی الله عنه دی او کومکیان يې بني عوف دي، په حدیث شریف کښې راغلي دي "من بنی مسجداً لا یرید به ریاً ولا سمعة بني له بیتاً في الجنة".

**درویش وايي**: چي ددې حدیث معنا دا نه ده چي بیت الجنة به په طول او عرض کښې دومره وي لکه مسجد لان الحسنة بعشر امثالها ادنی درجه د ثواب

د او په حدیث کښې راغلي دي چې د یوې خورما ثواب لکه د غره دی بلکې معنا یې داده چې ملکې به جوړه کړي د مسجد د باني لپاره بنا اشرف واعظم وارفع في الجنة. امام قرطبي رحمه الله په خپل تفسیر کښې وايي انما هو بما يفترن بالفعل من الاخلاص فان بنى على غير الاخلاص يعني للريا والسمعة او اضرار المسجد القديم فلا ثواب للباني ولا يحيا لذنبه.

**پوښتنه**: وکافر ته دا امکان ورکول کېږي چې مسجد د مسلمانانو لپاره جوړ کړي دا به څرنګه وي؟

**ځواب**: بعض علما وايي چې صحيح داده چې امکان دي ورکړل سي بدلیل قوله عليه الصلوة والسلام ان الله قد يؤيد هذا الدين بالرجل الفاجر كذا في تفسير البغوي. لکن واحدي رحمه الله په تفسیر ددې قول د خدای جل جلاله ماكان للمشركين ان يعمروا مساجد الله الآية" داسې وايي چې کفار ممنوعون دي د تعمیر د مساجدو د مسلمانانو انتهى.

**مسئله**: کافر په بنا د مسجد مسلمان نه ګرځي حتى چې شهادتين په خوله ونه وايي بخلاف المسلم. ولي مسلمان که عبادتګاه ته نصارى چې کنائس یې بولي په قصد او نیت د تعظیم د کنائسو ورغلی کافر ګرځي لان الكفر يحصل بمجرد نية التعظيم للكنائس. والاسلام لايحصل بمجرد النية بل لابد من الشهادتين يعني اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمداً رسول الله.

**درويش وايي**: چې د قصې سر ته درځه. نو یوه سه! چې بني عمر بن عوف چې مسجد قبا تعمیر کړی. نو ددوی د اکا زامنو يعني بني غنم بن عوف ددوی سره حسد پیدا سو او دوی به ویله چې موږ به په د خرو د تړلو په ځای کښې لمونځ کوو. دا ددې سببه دوی ویله چې یوه ښځه وه د بني عمر بن عوف چې دې به په دغه ځای کښې کله کله خر تاره پر کوم ځای چې مسجد قبا تعمیر سو. او دا ددوی نهایت حماقت و چې موږ دمخه وویل چې د مسجد قبا ځای هغه و چې بني عوف به دمخه دلته خورما وي وچولې او دا ځای د کلثوم بن حدم رضي الله عنه و. الغرض چې بنو غنم بل مسجد جوړ کړی و مسجد قبا ته نژدې على قصد الفساد

وتفريق المؤمنين الذين كانوا يصلون في مسجد قبا اوامام به يې ابو عامر راهب چي د شام څخه راسي.

قصة ابي عامر الراهب: دی د اشرافو د قبيلې د خزرج ؤ او دين د نصاری وو يې دين خپل گرځولی ؤ او د کراستي کالي به يې اغوستل وكان ماهراً في التوراة والانجيل، حسين کاشفي مصنف د تفسير حسيني د ابو عامر په شان کې داسي وايي، او پيوسته نعت وصفت سيد عالمﷺ بر اهل مدينه ميخواند ونهايت معتقد آنحضرتﷺ بود چون آنحضرت بمدينه هجرت کرد اهل آن خطه شيفته جمال وکمال وی شده و ازصحبت ابو عامر راهب برميدند وپروای او نکردند آری، چرا نمی کردند ، بيت:

باوجود لب جان بخش تو ای آب حيات
حيفم ايد سخن از چشمه حيوان گفتن

نو د ابو عامر د عليه الصلوٰة والسلام سره حسد پيدا سو ، ولي چي ابو عامر رياست پر قوم باندي له لاسه ورکړی په سبب د ذات انور د عليه الصلوٰة والسلام نو ابو عامر راغلی و عليه الصلوٰة والسلام ته او ورته وه يې ويل چي هر قوم چي ستا سره جنگ کوي زه په هغو کښي شامل ستاسره جنگ کوم ، نو دغه ابو عامر همېشه د عليه الصلوٰة والسلام سره په جنگ اخته ؤ حتی په جنگ کي د هوازن ابو عامر د هوازنو په صف کښي ولاړ ؤ حتی هوازنو شکست وخوړی ابو عامر وتښتېدی شام ته ولاړی، او د شام باچا ته ورغلی چي ماته فوج راکړه زه د مسلمانانو سره جنگ کوم او په عين حال کښي يې خط نوشته کړی وه منافقانو ته چي دده اتباع وه لکه ثعلبه بن حاطب وامثاله چي تاسي په خپله مځکه کښي ماته مسجد جوړ کړئ په مقابل کي د مسجد قبأ چي زه مديني ته درسم هوري به زه تعليم او بنوونه د لاړو چارو درته کوم، هغو يعني بنو غنم هم مسجد ضرار آباد کړی او هغه وخت چي عليه الصلوٰة والسلام په تياری د غزوة التبوک بخت ؤ هغه د مسجد بانيان منافقان ورته راغله وه يې ويل چي موږ د ضعيفه خلگو او د بې چاره گانو لپاره چي مسجد قبأ ته يې رسېدل نه سي کېدای په وخت کښي د باران يا د يخ يو مسجد



Scanned by CamScanner

جوړ کړی دی او د علیه الصلوٰة والسلام څخه یې التماس وکړی چې دا زموږ په مسجد کښې یو لمونځ وکړئ د تبرک لپاره اصلاً ددوی غرض دا و چې د علیه الصلوٰة والسلام د لمانځه په سبب به زموږ مسجد محکمه سي او رواج به پیدا کړي، په سیرت حلبیه کښې وایې چې منافقان په دغه مسجد کښې سره جمع کېدل او د علیه الصلوٰة والسلام عیبونه به یې بیانول او په علیه الصلوٰة والسلام به یې پسخند واهه، نو علیه الصلوٰة والسلام دوی ته داسې وویل "اني علی جناح سفر وحال شغل ولو قدمنا لصلینا لکم فیه" القصه: علیه الصلوٰة والسلام چې له سفره څخه د تبوک راستون سو دوی بیا ورغله چې حسب الموعود زموږ په مسجد کښې لمونځ وکړه. علیه الصلوٰة والسلام ښه قمیص راواخستی چې وایې غوښتل دي او ددوی سره ولاړ سي او ددوی په مسجد کښې لمونځ وکړي انزل الله تعالی هذه الآیة والذین اتخذوا مسجداً. نو چې خدای ﷻ حقیقت حال ددوی منافقانو په دغو آیتو کښې علیه الصلوٰة والسلام ته ښکاره کړی. نو علیه الصلوٰة والسلام په منځ کښې د مغرب او عشا وحشي قاتل حمزة، او نور څو کسان راوغوښتل چې ورسئ ودې مسجد الظالم اهله ته رنګ یې کړئ او وه یې سوځئ او د مځکې سره یې برابر کړئ. نو دې جماعت په ډېر تلوار سره د خورما وچ لرګي ورسره واخستل نو مسجد ته یې اور واچاوه او تر مځکې پورې یې ونړاوه، او علیه الصلوٰة والسلام امر وکړی چې ددغه مسجد پر ځای دې کناسه جوړه کړې چې په اصطلاح د پاکستان یې تپ بولي او په اصطلاح د افغانستان یې خاک انداز بولي یعنې چې جارو کښې او مردار شیان پکښې غورځوي، راوي وایې چې وروسته تر ډېرې زمانې دغه مسجد ضرار ځای وه ثابت بن ارقم رضی الله عنه ته ورکړی چې هغه ورته ویلي وه چې زه سرای نه لرم زه په سرای پکښې جوړ کړم. په دې سرای کښې هیڅ مولود نه وزېږېدی او یو وخت په دې سرای کښې یو ځاه ثابت رضی الله عنه کېندی چې دود ځنې راووتی او ابو عامر په شام کښې مړ سو غریباً وحیداً. راوي وایې علیه الصلوٰة والسلام چې مدینې منورې ته تشریف راوړی او د ابو عامر حسد ورسره پیدا سو کما مر، نو ابو عامر یوه ورځ د علیه الصلوٰة والسلام ته وویل ما هذا الذي جئت به؟

دا څه دين دی چي تا تګ په کړی دی؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل جئت بالحنيفية دين ابراهيم! ابو عامر ورته وويل چي زه پر ملت حنيفيه دين ابراهيم يم؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل انک لست عليها! ابو عامر ورته وويل چي بلکي زه پر حنيفيت دين ابراهيم يم لکن تا په حنيفيت نور شيان ګډ کړي دي؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل ما داسي نه دي کړي لکن جئت بها بيضاً نقية فقال ابو عامر امات الله الكاذب منا طريداً وحيداً غريباً، عليه الصلوة والسلام ورته وويل آمين، نو عليه الصلوة والسلام پر ده د ابوعامر فاسق نوم کښېښو، نو ابو عامر فاسق مړ سو په قنسرين کي کافراً. قنسرين د يو ښار نوم دی ، د تعجب وړ خبره سره د دومره خيانته د ابو عامر دده يو صالح زوی وُ چي ابو حنظله ﷺ يې باله چي په غزا کښي د احد شهيد سو او ملکو عليهم السلام غسل ور کړی........ سعدي

هنر بنمای اگر داری گوهر ....... گل از خارست ابراهيم ز آذر

**پوښتنه**: ابو حنظله چي شهيد سو، نو غسل ته د ملکو يې څه ضرورت و؟

**ځواب**: هغه وخت چي د احد د غزا اعلان وسو ابو حنظله د خپلي ښځي سره د جماع په حال کښي و، نو له دېره تلواره قبل الغسل غزا ته ولاړی.

## وَالَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مَسْجِدًا ضِرَارًا

اې د متخلفينو څخه د غزوه تبوک چي منافقين وه هغه کسان دي چي بنا کړی يې وُ مسجد ، او کلمه د واو عاطفه ده ای منهم الذين اتخذوا الآية "ضراراً" مفعول له دی لاتخذوا يعني لپاره د ضرر د مؤمنانو د مسجد قبا . ابن اسحاق صاحب المغازي وايي چي دا بانيان د مسجد ضرار دوولس نفره وه (۱) حذام بن خالد (۲) ثعلبه بن حاطب من بنی اميه بن زيد (۳) معتب بن قشير من بني صبيعه (۴) ابو حبيبة بن الاذعر من بني صبيعه (۵) عباد بن حنيف من بني عمرو بن عوف (٦) حارثه بن عامر (۷) مجمع بن حارثه (۸) زيد بن حارثه (۹) بنتل بن الحارث من بني صبيعة (۱۰) نجاد بن عثمان من بني صبيعه (۱۱) وديعة بن ثابت (۱۲) رجل يقال له نجرج ، دوی چي دا مسجد بناه کړی لپاره د ضرر د مسجد قبا وكفراً بالله ورسوله انتهى.

وَكُفْرًا وَتَفْرِيقًا بَيْنَ الْمُؤْمِنِينَ

او لپاره د جلا کولو یو له بله د مؤمنانو، ولې چې دوی به تولو دمخه لمونځ په مسجد قبا کښې کاوه ددوی غرض چې بعض اهل قبا به دې مسجد ته مخ راروي.

**یوه سه:** چې د مسجد ضرار امام مجمع بن حارثه ؤ.

وَإِرْصَادًا لِّمَنْ حَارَبَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ مِن قَبْلُ ۚ وَلَيَحْلِفُنَّ إِنْ أَرَدْنَا إِلَّا الْحُسْنَىٰ

او دوی انتظار کوي د هغه چا چې محارب د خدای او د رسول د خدای ﷺ دي، بغوي رحمه الله وایي چې دا ابو عامر الراهب ؤ "من قبل" ای قبل بناء المسجد الضرار "وليحلفن" او قسم اخلي دغه منافقان چې مسجد ضرار یې تعمیر کړی ؤ، زموږ اراده نه وه په بناء سره ددې مسجد مگر خصلت ښه چې د مسلمانانو به کومک سي د ضعیف خلگو چې مسجد قبا ته نه سي تلای او د باران له کبله ومسجد ته د رسول الله ﷺ نه سي تلای کمامر من قبل تفصیلاً نو په دې مسجد کې به لمونځونه کوي.

وَاللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ

او خدای ﷻ شاهدي ادا کوي چې دوی درواغ وایي په دې قول کښې "ان اردنا الا الحسنى".

لَا تَقُمْ فِيهِ أَبَدًا

ته اې محمد ﷺ مه دریږه یعني د لمانځه لپاره په دغه مسجد ضرار کښې د همېشه لپاره، بغوي رحمه الله چې بني عمرو بن عوف چې مسجد قبا جوړ سو نو عمر بن الخطاب رضي الله عنه ته راغله چې مجمع بن حارثه ته دې اجازه ورکړي چې زموږ سره دې په مسجد قبا کښې لمونځونه کوي، عمر رضي الله عنه ورته وویل لا اليس بامام مسجد الضرار، نو مجمع بن حارثه وویل لا تعجل علي فو الله لقد صليت فيه واني لا اعلم ما اضمروا عليه ولو علمت ماصليت معهم فيه كنت غلاماً قارياً للقرآن وكانوا شيوخاً لا يقرئون القرآن فصليت اماماً لهم ولا احسب الا انهم يتقربون الى الله ولا اعلم مافي انفسهم، نو عمر رضي الله عنه دی معذور وباله او د

لمانځه اجازه يې په مسجد قبا کښې ورکړه.

**تمهيل:** درويش وايي چې علما تول متفق دي "ضراراً وتفريقاً وارصاداً" هر يو علت مستقل دی لکون المسجد مسجد ضرار، واذا تمهد هذا، پوښتنه اوس داده چې پر يو مسجد حکم د ضرار اوس روا دی په دې معنا چې لمونځ دې نه وي پکښې روا؟

**ځواب:** په دې معنا خو مسجد ضرار نسته چې باني يې منافق دی. ولې باني د هر مسجد صحيح مسلمان دی، او په دې معنا هم مسجد ضرار نسته چې د مثل د ابو عامر راهب فاسق کافر بالله ورسوله لپاره د انتظار دی مسلمان جوړوي، البته ددې احتمال موجود دی چې مسلمان په نيت د تفريق المؤمنين عن المسجد القديم دې مسجد جوړ کړي.

**سوال:** د مسجد جديد د باني نيت خو پټ شی دی، نو د سړي به څرنګه اطلاع پر راسي؟

**ځواب:** هو! نيت خو پټ دی لکن بعض قرائن سته چې پر دې دلالت کوي چې د مسجد جديد د باني غرض د مسلمانانو تفريق دی له قديم مسجد څخه. لکه بعض اعمال يا اقوال چې د مسجد جديد د باني به شرط شی وي معنا دا چې زما په جوړ کړي مسجد کې به لمونځ نه کوئ نو زه زکوة او کومک درسره کوم، يا يې شرط لا شئ وي معنا چې په قديم مسجد کې به لمونځ نه کوئ، او که دده اعمال او اقوال لا بشرط شيئ وه چې مرتبه د اطلاق ده، نو دده نيت صحيح دی تفريق المؤمنين عن المسجد القديم يې غرض نه دی فافهم والله جل شانه اعلم بما في صدور عباده، دا و مجمل بيان.

**درويش وايي:** چې د مسجد بنا لپاره د ريا او سمعه خو مسجد ضرار نه ګرځوي بالمعنى المذكور لكن باني لره هيڅ ثواب نسته كما في سائر الاعمال المندوبة يعني غير الفرائض كما ثبت في الاحاديث الصحيحة.

لَمَسْجِدٌ أُسِّسَ عَلَى التَّقْوٰى مِنْ أَوَّلِ يَوْمٍ أَحَقُّ أَنْ تَقُوْمَ فِيْهِ

**پوه سه:** چې کلمه د لام يا د ابتدا ده او يا لپاره د قسم دی.

**درويش وايي:** چې عطيه له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت کړی دی چې مراد

له دې مسجد څخه مسجد قبا دی وهو قول عروة بن الزبير وسعيد بن جبير وقتادة رحمهم الله ځکه وايم چې سابق کلام د خدای ﷻ په مسجد قبا کښې ؤ، نو دا وروسته کلام هم په مسجد قبا کښې دی يعني فيه رجال يحبون الآية بالاجماع كما سيأتي چې اساس يې عليه الصلوٰة والسلام ايښی دی کمامر ايضاً قد مر فضائل مسجد القبا فمعنى الآية هر آئينه او قسم په خدای ﷻ چې هغه مسجد چې اساس يې پر تقوی ايښوول سوی دی ډېر حقداره دی چې ته پکښې ودرېږې يعني لمونځ پکښې وکړې واليه ذهب جمع من المفسرين رحمهم الله.

**پوښتنه**: احق خو اسم تفضيل دی، نو مفضل عليه خو يې مسجد ضرار دی، نو په هغه کښې خو د عليه الصلوٰة والسلام لمونځ نه دی روا للمفاسد الاربعة المذكورة؟

**ځواب**: تفضيل بنا دی پر تنزل يعني لو فرضنا جواب قيامه في مسجد الضرار لكان الصلوة في مسجد التقوى وهو مسجد قبا احق و اولى. فكيف والقيام فيه لايجوز.

**درويش وايي**: چې اولی جواب د مولی ابو مسعود رحمه الله دی هغه وايي چې احق دلته په معنی د حقيق دی اذ لا اشتراک لمسجد القبا والمسجد الضرار في نفس الفضيلة كما يقيضه صيغة اسم التفضيل وجواز الفرض تكلف كما لا يخفى.

**سوال**: د اساس معنی خو تادای دی يعني اول دای د بنا چې وروسته نو د بوالونه پر وهل کېږي. نو تقوی خو معنا ده، نو اساس د مسجد قبا څرنګه کېدای سي؟

**ځواب**: واجاب عنه اللآلوسي رحمه الله في روح المعاني انه مبني على المبالغة په دې معنی چې غايت تقوی چې د بنا سره د مسجد قبا يعني تقوی د عليه الصلوٰة والسلام چونکه ملګرې وه فجعل التقوى كانه اساس مسجد القبا مبالغة.

**درويش وايي**: چې د افكارو سره د مبتديانو دا ځواب مناسب دی چې على په معنی د مع دی ای مع التقوى، وبالجملة فمسجد مبتدا ده او وروسته جمله يې صفت دی او احق يې خبر دی، او "من اول يوم" متعلق دی په اسس سره، نو کلمه د من د ابتدا د زماني لپاره ده لکه د کوفيانو نحاتو مذهب چې دی يعني چې من جاره په مکان پوري

خاص نه دی، او بصریان نحات وایي چي من په مکان پوري خاص دي هغه په دې آیت کي من په معنی في بولي، او في په ظرف زمان او مکان دواړو کي مستعملیږي.

**درویش وایي:** چي ابن عمر، زید بن ثابت او ابو سعید خدري رضي الله عنهم وایي چي دا مسجد چي په آیت مذکوره کښي ذکر سوی دی مسجد نبوي ﷺ په مدینه منوره کي دی، ولي چي مسلم، احمد، ابن ابي شیبه، ترمذي او نسائي او نورو ګڼو شمیرو راویانو رحمهم الله له ابو سعید خدري رضي الله عنه څخه روایت کړی دی، دی وایي چي زه ورغلم علیه الصلوٰة والسلام د بعضي ازواجو په کور کښي تشریف درلودی فقلت یا رسول الله ﷺ ای المسجد الذي اسس علی التقوی یعني المذکور في الآیة المذکورة ده مبارک یو موټ شګي د مسجد نبوي پر مځکه د مسجد نبوي وښېندلې ثم قال هو مسجدکم هذا المسجد للمدنیة. او طبراني هم د زید بن ثابت رضي الله عنه روایت کړی دی ان النبي ﷺ سئل عن المسجد الذي اسس علی التقوی قال علیه الصلوٰة والسلام هو مسجدي هذا. او له ابن عمر رضي الله عنهما څخه ابن ابي شیبة رحمه الله رایت کړی دی چي المسجد الذي اسس علی التقوی هو مسجد النبي ﷺ، او د مسجد نبوي په فضیلت کښي بې شمېره احادیث مبارکه صحیحه راغلي دي منها ماروا‌ه البخاري ومسلم عن ابي هریرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ مابین بیتي ومنبري روضة من ریاض الجنة ومنبري علی حوض (یعني یوم القیامة علی الحوض الکوثر) او بغوي رحمه الله داسي ویلي دي مابین قبري ومنبري، دا دوه حدیثونه په معنی کي فرق نه سره لري، ولي قبر د علیه الصلوٰة والسلام په بیت کي د عائشې رضي الله عنها دی.

**درویش وایي:** چي دغه دوهم حدیث یعني مابین قبري ومنبري آه معجزه د علیه الصلوٰة والسلام ده یعني چي اخبار په دې سره چي زما قبر به زما په بیت کي وي، او ترمذي د علي او ابو هریرة رضي الله عنهما څخه روایت کړی دی چي علیه الصلوٰة والسلام وویل صلوة في مسجدي هذا خیر من الف صلوة فیما سواه من المساجد الا المسجد الحرام.

**درویش وایي:** چي په ظاهر کي د تفضیل د مسجد قبا وکونه اسس علی

التقوى او د تفضيل د مسجد نبوي وكونه اسس على التقوى چي د دوارو په باره كښې احاديث ثاسي واورېدل، تعارض دى. لكن داودي، سهيلي او شريف السمهودي رحمهم الله دا قدر ويلي دي كل من المسجدين مراد لان كل منهما اسس على التقوى من اول يوم تاسيسه انتهى.

**درويش وايي**: چي دا جواب او وجه د جمع الاحاديث المروية كافي نه ده، ولې چي وجه د اوليت د دوارو مسجدو يې نه ده بيان كړې، نو فقير په توفيق د قدير وايي چي مسجد قبا په كومک د بني عمر بن عوف او په معماري د عمار بن ياسر رضي الله عنه تاسيس كړل سوى دى. او اوليت د مسجد نبوي له دې جهته دى چي څه وخت چي عليه الصلوٰة والسلام له مسجد قبا څخه دار الهجرة مديني منورې ته داخل سو اول يې مسجد نبوي تاسس كړى، وقصة هكذا چي عليه الصلوٰة والسلام چي د مسجد قبا له تعمير څخه فارغه سو او عمار بن ياسر رضي الله عنه يې د لمونځو د امامت لپاره وټاكى، نو قصد يې دار الهجرة المدينة المنورة ته وكړى، بني نجار ته يې سړى ورواستاوه چي تاسي مقلدين السيوف راسئ زه مديني ته درځم، نو د بني نجار ځوانان توري په غاړه راغله او پر رسته اړه او پر چپه لاس د عليه الصلوٰة والسلام د مديني پر خوا رهي سوه، راوي وايي چي عليه الصلوٰة والسلام د ثابت په وخت كښې له قبا څخه ووتى د جمعې په ورځ لكن د ماپښين لمونځ يې پر لاري مديني ته نارسيده ادا كړى بالجماعة پر يو خالي ځاى باندې چي وروسته پر هغه ځاى باندې محبت ورزانو دده مبارک يو كوچنى مسجد په نامه د مسجد الجمعة بنا كړى تبركاً چي درويش په هغه ومسجد كښې دوه ركعته نفل هم ادا كړي دي. لكن په اوسني زمانه كښې چي لاري وقبا ته پاخه د امبري سړكان سوي دي هغه مسجد مي نه كړى پيدا والله اعلم.

**سوال**: د مديني پوري ځو د پياده سري د دوو ساعتو او پينځه ويشت دقيقو لار ده، نو ولي عليه الصلوٰة والسلام ومديني منورې ته د ماپښين لمونځ نه ورساوه؟

**ځواب**: د لاري پر دواړو غاړو كورونه وه د مسلمانانو عقيدت مندان پر دواړو غاړو نران او ښځي حتى نابلغه نجوني ولاړ وه، نو عليه الصلوٰة والسلام د خپلو كريمانه اخلاقو په سبب د دغو عقيدت مندانو سره خوش آمديد او جور پرسان ورسره كاوه حتى چي بعضي نجونو به دا شعر هم وايه كمامر:

نحن جوار من بني النجار ............. یا حبذا محمداً من جار

خیر علیه الصلوٰة والسلام چې مدینې منورې ته ورداخل سو. نو یې داسې وویل چې زما اوښه مأموره ده یعني من عند الله د هر چا کور ته چې په خپله چوکه سوه علیه الصلوٰة والسلام د اوښې مهار ایله کړی اوښه تله تله د ابو ایوب انصاري ﷺ وکور ته چوکه سوه، نو علیه الصلوٰة والسلام خندي تاسو او دا یې وویل هذا المنزل ان شآء الله یعني دغه به زما کور وي. راویان وایي چې پر اهل مدینه باندې په تاریخ کښې دغسې روښانه او د خوشالۍ بله ورځ نه وه راغلې لکه ورځ د قدوم د ذات انور د علیه الصلوٰة والسلام ددوی ښار ته او داغه رنګه پر مدینې والو داسې تاریکه ورځ او د غم په تاریخ کښې د مدینې نه وه راغلې ورځ د وفات د علیه الصلوٰة والسلام.

**درویش وایي**: چې دواړه حالته د مدینې والو رښتیا او برجا دي. تاریخ وایي چې د ابو ایوب انصاري ﷺ وکور ته نژدې یو باغ ؤ د بني النجار چې په هغه باغ کې یو څو زاړه قبرونه وه د مشرکینو او یو څو زړې د خورما درختې وې چې خورما یې نه کوله او یو څو کنډوالې د پخوانې کورو پکښې وې. نو علیه الصلوٰة والسلام و بني النجار ته وویل "ثامنوني بحائطکم هذا یعني" یعني دا باغ ستاسې ماته په بیعه راکړئ چې زه مسجد پکښې جوړ کړم. بني نجار ورته وویل "لانطلب ثمنه الا من الله" یعني زموږ له خوا دا باغ وقف دی د مسجد نبوي لپاره. نو علیه الصلوٰة والسلام خلګ امر کړه چې دغه د خورما درختې قطع کړئ او د مشرکانو قبرونه وشنئ هډوکې یې دباندې وغورځوئ او کنډوالې د مځکې سره یو کړئ، او خلګ یې امر کړه چې له نژدې غورو څخه ډېرې پر خرو وغیره راوړئ. او بعض خلګ دي خښتې موړې او بعض خلګ دي خپل د خورما د درختو وچ لرګي او د خورما د درختو بلګونه دي راوړي، نو دا کارونه چې خلګو ترسره کړه، نو علیه الصلوٰة والسلام د مسجد نبوي تاداې په خپلو لاسونو مبارکو کښېښود د مسجد قبا په رنګه په ساده ډول مسجد نبوي پایه تکمیل ته ورسېدی چې نه په مسجد نبوي کښې بوریا وه او نه سترنجې بلکې پر خاورو یې سجدې کولې. ددې مسجد نبوي اندازه معلومه ده چې خلګ او مسلمانان یې د جنت د مځکې په نامه

يادوي اللهم ارزقني زيارة مسجد النبي ﷺ وزيارة قبره ﷺ في العام الجاري يعني في اوائل سنه ۱۴۲۹ هـ دا و مختصر بيان د مسجد نبوي ﷺ.

فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا

"فيه" اى في المسجد المؤسس على التقوى من اول يوم والمراد به مسجد القبا "رجال" يعني الانصار من بني عمر بن عوف. ددوی خوښه ده چي د نجاساتو او اخباثو څخه که بدني وي او که عملي وي. که معاصي وي او که خصال ذميه وي ځانونه پاک وساتي.

**پوه سه**: چي "فيه رجال" جمله مستأنفه ده. مبين ددې ده چي قيام او لمونځ دي عليه الصلوٰة والسلام وکړي په دې مسجد کښي.

وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِينَ ﴿١٠٨﴾

او الله تعالى راضي دی له مطهرينو څخه.

**پوه سه**: چي دا آيت چي نازل سو عليه الصلوٰة والسلام راهي سو ومعه المهاجرون حتى وقف على باب مسجد قبا. نو انصار په مسجد کښي ناست وه. عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل امؤمنون انتم. فسکت القوم بيا عليه الصلوٰة والسلام دمخه خبره ورته تکرار کړه فقال عمر ﷺ انهم المؤمنون وانا معهم. په تحقيق دوی مؤمنان دي او زه هم ددوی ملګری يم. فقال عليه الصلوٰة والسلام اترضون بالقضا. يعني تاسي راضي یاست په قضا د خدای ﷻ. قالوا نعم! قال عليه الصلوٰة والسلام اتصبرون على البلا. تاسي صبر کوئ پر بلا له طرفه څخه د خدای ﷻ قالوا نعم. قال عليه الصلوٰة والسلام اتشکرون في الرخا؟ آيا تاسي شکر واياست د نعمت په وخت کښي؟ قالوا نعم! قال عليه الصلوٰة والسلام مؤمنون ورب الکعبة. نو عليه الصلوٰة والسلام وروسته کښېنستی بيا يې ورته وويل يا معشر الانصار. په تحقيق خدای ﷻ ستاسي صفت کړی دی په آيت کښي. نو تاسي څرنګه فعل کوئ په اوداسه کښي و عند الغائط يعني چي چکر وهئ. فقالوا يا رسول الله نتبع الغائط الاحجار الثلثة ثم نتبع الاحجار الما. نو عليه الصلوٰة والسلام دا آيت ورته تلاوت کړی "فيه رجال يحبون ان يتطهروا" وفي

روایة هو ذالک فعلیکموه، دوی ورته وویل چي تر غائط وروسته موږ پاکي حاصلوو په درو ډبرو سره او تر ډبرو وروسته موږ په اوبو سره استنجاً وهو. نو علیه الصلوٰة والسلام آیت مذکوره ورته تلاوت کړی. او ورته وه یې ویل چي هم دغه ستاسي تطهر دی دوام پر وکړئ.

**درویش وایي**: چي په اوسني زمانه کښي په ښارو کښي ډبري یا لوټي د دبري د پاکېدلو لپاره نه دستیاب کېږي او خلگ استنجاً د دوارو طرفو یعني ذکر او دبري په اوبو سره وهي نو حکم به یې څه وي؟

**جواب**: قال الفقهاً رحمهم الله الضرورات تبیح المحذورات، نو د ضرورت په لحاظ دا استنجاً روا ده ان شاً الله تعالی لکه تیمم په وخت کښي د عدم الماً او یا مسح پر جبیره باندي. او ځیني بې ځایه صوفیان وایي چي باید چي سړی لوټي په جېب کښي ورسره گرځوي. درویش وایي چي دا خو لوی حرج دی. والحرج مدفوع في الدین. البته په صحراو کښي د لوټو یا د ډبرو د استنجاً امکانات سته. والله اعلم. ځیني راویان رحمهم الله وایي چي اول سړی چي د ډبرو تر استنجاً وروسته یې په اوبو سره استنجاً وهلې ده حضرت ابراهیم علیه السلام دی.

**مسئله**: له خوبه چي څوک راویښ سي او یا یې باد ووځي وهغه سړي ته استنجاً وهل بدعت دی.

**درویش وایي**: چي د طهارت لپاره یعني اودس یا غسل د جنابت یا د حیض او یا د نفاس د فقیر کتابونه چي په پښتو ژبه دي، یعني قدوري اول ټوک او یا د نکاح دوه جلده هم ورسره، او نور الایضاح په پښتو دري جلده، او شروط الصلوٰة پښتو د مطالعې وړ دي د عوامو لپاره بلکې د ځیني امامانو لپاره هم ضروري دي، او داغه رنگه کنز الدقائق پښتو له نظره څخه مه باسئ دغه کتابونه ان شاً الله کورني استاذان دي، والله الموفق.

أَفَمَنْ أَسَّسَ بُنْيَانَهُ عَلَىٰ تَقْوَىٰ مِنَ اللَّهِ وَرِضْوَانٍ

آیا هغه څوک چي تادای یې د بنیان د دین اېښی دی او اساس یې ابادي د مسجد قباً او د مسجد المدینة المنورة اېښی دی پر کامل تقوی له خدای جل جلاله څخه او پر طلب د رضاً د خدای جل جلاله.

**پوه سه**: چي ددې سوال جواب محذوف دی لکونه بیناً، یعني الاول خیر من الثاني لان الاول بناه رسول الله ﷺ واصحابه، والثاني بناه اعدأ الله المنافقون کماهر.

**پوه سه**: چي افمن آه" جمله مستأنفه ده لپاره د بیان د خبریه د بانیانو د مسجد قبأ او مسجد نبوي چي علیه الصلوٰة والسلام او اصحاب کرام رضي الله عنهم دي پر بانیانو د مسجد ضرار.

قانون نحوي: همزه چي د استفهام لپاره دی چي پر حرف عطف داخل سي که واو وي او که فأ او که ثم وي، نو حرف عطف پر ماقبل د حرف استفهام خو نه سي عطف کېدای لفوات صدارت حرف الاستفهام، نو پر هر ځای کښي هر حرف عطف چي وي عطف پر محذوف دی، نو دلته یې تقدیر داسي دی ابعد ما علمت حالهم فمن اسس آه.

**درویش وایي**: چي مظهري رحمه الله وایي چي دا استفهام لپاره د تقریر دی ای حمل المخاطب علی الاقرار بکون الاول خیر من الثاني، او روح البیان وایي وهمزة الاستفهام للانکار ای لانکار کون الثاني کالاول والمآل واحد فافهم.

**خَيْرٌ أَم مَّنْ أَسَّسَ بُنْيَانَهُ عَلَىٰ شَفَا جُرُفٍ هَارٍ فَانْهَارَ بِهِ فِي نَارِ جَهَنَّمَ**

یعني اول خیر دی که هغه چي تادای د بنای خپل چي مسجد ضرار دی.

**پوه سه**: چي "شفا" طرف ته د شي وایي او "جرف" بضم الحرف الاول والثاني او بضم الاول واسکان الثاني لغتان هغه مځکي ته وایي چي بېخ یې سیلو بارانو کښلی وي او سر یې تکیه وي، او "هار" چي اصل د هاري دی په قرآن کښي حرف یا یې له جهته د التقأ الساکنین حذف سوې ده معنی یې نژدې ونړېدلو ته ده، ولي خو بېخ یې گوگ دی.

**پوه سه**: چي د "فانهار" ضمیر د فاعل راجع دی وبنیان ته، او ضمیر د "به" راجع دی وبانې ته یعني ونړېدی دا بنیان چي مسجد ضرار دی سره د صاحب البنیان چي منافقان دي په اور کښي د جهنم.

حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه وایي چي ما دود ولیدی چي له مسجد ضرار څخه راوتی.

**فائده:** د هار دمخه اعلان چي دروېش وکړی بنا پر مذهب ده او قول د روح البيان چي روح المعاني هم راوړی دی. او مظهري رحمه الله وايي چي اصل د هار هور دی واو يې په سبب د فتح د ماقبل په الف سره واړاوه فلا حذف فيه لشيئ او دا قول روح المعاني هم را نقل کړی دی. فلغاته هاور هاير هور.

وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ

او خدای جل جلاله هدايت موصله نه کوي و هغه قوم ته چي ظالمان وي وحق لاره چي سبب د نجات ددوی لانهم لايطلبون الهداية والا لما تبعوا ابو عامر الراهب الفاسق الكافر، بل اتبعوا محمداً الصادق المصدوق المؤيد بالمعجزات.

لَا يَزَالُ بُنْيَانُهُمُ الَّذِي بَنَوْا

همېشه به وي مسجد ضرار چي دوی يعني يعني منافقانو بنا کړی ؤ په مقابل کښي د مسجد قبا يعني د ابو عامر الراهب الفاسق الفاجر لپاره کمامر حاله.

**پوه سه:** چي مفسرين په اتفاق سره وايي چي "بنيان" مصدر دی په معنی د مفعول ای المبني او جمع د بنا نه ده. مظهري رحمه الله په دليل د افراد دا ويلي دي چي ځکه يې وصف مفرد راوړی دی يعني الذي. او بل دليل يې دا ويلی دی چي اخبار يې په ريبة څني وکړی آه چي هغه هم مفرد دی آه. روح المعاني وايي والاخبار بريبة لا دليل فيه على عدم الجمعية لانه يقال الحيطان (جمع د حائط) منهدمة (يعني بوصف المفرد) والجبال راسية (يعني جبال خو جمع د جبل ده او وصف يې راسية مفرد دی)

رِيبَةً فِي قُلُوبِهِمْ

شک او نفاق ؤ په زړو کښي ددوی.

**سوال:** حمل د ريبة پر بنيان په معنی د مبنی کمامر څرنګه صحيح دی؟

جواب: په حذف د مضاف ای سبب ريبة. والحاصل چي بنيان ددوی چي مسجد ضرار ؤ چي د عليه الصلوٰة والسلام په امر منهدم او د مڅکي سره سم سو سبب د دوی د شک ؤ په نبوت کښي د عليه الصلوٰة والسلام او د زياتوالي د

نفاق ددوی. ولې دوی چې دا مسجد ضرار بنا کړی په توهم ددې چې دا مسجد به زموږ کار وکړی لکه د قوم د موسی ﷺ په زړو عبادة العجل ښکاره ورغلی ؤ قاله ابن عباس رضي الله عنه او کلبي رحمه الله د ریبة معنی په حسرت او پښېماني سره کړې ده یعني دوی په زړو کښې پښېمانه وه چې کاشکې موږ دا مسجد نه وای جوړ کړی نو د دومره مصیبت سره به نه مخامخ کېدای.

**درویش وایي:** چې دا معنی د لغوي معنی سره د ریبة مطابقت نه لري الا بتکلف. او سدي رحمه الله وایي لا یزال هدم بنیانهم ریبة ای غیضاً وغصة في قلوبهم مع رسول الله ﷺ. والحاصل چې دوی دمخه تر بنیان په نبوت کې د علیه الصلوٰة والسلام شکمن وه بلکې منکر وه او دمخه یې هم د علیه الصلوٰة والسلام بغض او عداوت درلودی په هدم سره د مسجد ددوی یې نور شک او انکار او بغض وعداوت زیات سو لانهم یحسبون انهم یحسنون صنعاً.

## إِلَّآ أَن تَقَطَّعَ قُلُوبُهُمۡۚ

مگر نه تر هغه وخته پوري چې ددوی زړونه ټوټ ټوټ کېږي یعني مري، دا ریبه به یې په زړونو کښې پاته وي، یعني مرگ به دا ریبه ددوی له زړونو څخه باسي.

**پوه سه:** چې "تقطع" باب د تفعل دی او یوه تا یې څښي حذف کړې ده والاصل تتقطع، والاستثنا مفرغ من اعم الازمان او اعم الاحوال ای لا یزال بنیانهم ریبة في قلوبهم في کل وقت من الاوقات او في کل حال من الاحوال الا وقت تقطع قلوبهم، نو له زړونو څخه به یې ریبة ووځي او حق به ورته ظاهر سي، او خپل کفر او نفاق به هم ور معلوم سي حین لا ینفع علمهم، سعدي میگوید:

تو پیش از عقوبت دری عفو کوب ....... که سودی ندارد فغان زیر چوب

## وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ۝١١٠

او خدای ﷻ خبر دی په نیتو ددوی او حکمت لري في الامر بهدم بنائهم.

**زیری:** د اهل سیرو د عربي حکایت پښتو ژباړه: رسول الله ﷺ په یوولس کال دده د نبوت په موسم کې د حج د مکې مکرمې څخه ووتی وقبائلو ته د عربو په پیغام

د توحید او خپل د نبوت د رسیدلو په نیت، نو جمرة العقبة یو څه ناشناخته عرب یې ولیدل چې د خزرج د قبیلې وه علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل من انتم؟ تاسې څوک یاست، دوی ورته وویل نفر من الخزرج، علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چې تاسې نه کښېنئ چې زه یو څو خبرې درته وکړم، دوی ورته وویل چې هو کښېنو، یې سره کښېنستل. نو علیه الصلوٰة والسلام د توحید دعوت ورکړی یعني لا اله الا الله. او د قرآن مجید یو څو آیته یې ورته تلاوت کړه او اسلام ته یې راوبلل. او د خدای ﷻ حکمت وُ چې ددوی په بلاد کښې یهودان هم وه چې اهل کتاب وه. او د اوس او خزرج دوې قبیلې اکثریت بت پرستان وه. نو کله چې په د اوس یا د خزرج د قبیلې د یهودانو سره څه جګړه پېښه سوه، نو یهودانو به ویل چې ژر دی چې په عربو کښې به یو نبي مبعوث سي، چې د علاماتو له لارې یې زمانه ډېره نژدې ده که هغه مبعوث سي مونږ به د هغه مبایعت وکړو او له تاسې یعني الاوس والخزرج سره به د هغه نبي په فوج کښې جنګ وکړو او تاسې به له منځه ورک کړو، علیه الصلوٰة والسلام چې دا خبرې ودوی ته وکړې یعني د خزرج د قبیلې خلګو ته، دوی په هغه نعت چې له یهودانو څخه یې اورېدلی ؤ پوه سوه، نو بعضو ددوی نورو ته وویل چې دا سړی نبي دی، باید یهودان له مونږ څخه سبقت وه اسلام ته ونه کړي لکه یهودانو چې به ویل، نو دې کسان قبول د اسلام وکړی اووه نفره وه ټول له د خزرج د قبیلې وه چې نومان یې دادي (۱) سعد بن زرارة رضی الله عنه (۲) عوف بن الحارث رضی الله عنه. او دده مور (۳) عفرا رضی الله عنها (۴) رافع بن مالک رضی الله عنه (۵) قطبة بن عامر بن جدیدة رضی الله عنه (٦) عقبة بن عامر بن زابي رضی الله عنه (۷) جابر بن عبد الله رضی الله عنه. وقیل عبادة بن الصامت مقام جابر رضی الله عنه، علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چې تاسې زما شا نسئ یعني زه ستاسې قوم ته د تبلیغ اسلام لپاره درسم؟ دوی ورته وویل چې زمونږ د خزرج او د اوس قبیلې تر منځ د بعاث جنګ پېښ سوی دی چې په سلګونو کسان د دواړو قبیلو پکښې وژل سوي دي او هغه بدي مو تر اوسه پورې پاته ده، نو که ته اوس راسې او زمونږ بدي سره پاته وي مونږ پر تا اجتماع نه سوو کولای، نو اوس مونږ پر پرېږده مونږ به خپلو قبائلو ته ورسو شاید خدای پاک زمونږ او د اوس تر منځ یوه صلحه راولي مونږ به

دوی ته دعوت د هغه دین وکړو چې تا موږ ته دعوت راکړی "فعسى الله ان يجمعهم عليك" نو که خدای پاک دغسي وکړه فلا احد اعز منك، وموعدك الموسم من العام القابل. نو دوی ولاړه په مدینه کي یو سرای له سرایو څخه د انصارو داسي نه ؤ چې د عليه الصلوٰة والسلام د نبوت بیان به نه پکښي کېدی. نو دا بل موسم حج چې راغلی چې دوولسم کال د عليه الصلوٰة والسلام د نبوت ؤ. ځیني راویان وایي چې دوولس کسه ځيني وايي یوولس کسه په عقبه ثانيه کي د عليه الصلوٰة والسلام سره یو ځای سوه چې په هغو کي پینځه کسه د تېر کال وه غیر له جابر ﷺ څخه اووه کسه نور وه (۱) معاذ بن الحارث اخو عوف مذکور ﷺ (۲) ذکوان ﷺ (۳) عبادة بن الصامت (۴) یزید بن ثعلبة ﷺ (۵) عباس بن العبادة ﷺ من الخزرج. او دوه کسه د اوس وه (۶) ابو الهيثم بن التيهان ﷺ (۷) عويمر بن ساعدة ﷺ فاسلموا وبايعوا ورجعوا الى المدينة. او اسعد بن زرارة ﷺ به مسلمانان په مدینه منوره کښي سره یو ځای کول، وروسته اوس او خزرج په متفق ډول و عليه الصلوٰة والسلام ته مکتوب نوشته کړی چې موږ ته یو څوک راواستوه چې موږ ته قرآن عظیم الشان تعلیم کوي، نو عليه الصلوٰة والسلام مصعب بن عمیر ﷺ ورواستاوه. نو د مصعب ﷺ پر لاس ډېرو خلګو ایمان راوړی، داغه رنګه اسلام راوړی سعد بن معاذ ﷺ او اسید بن حضیر ﷺ او د دغو دوو کسانو په اسلام سره تولـه بني عبد الاشهل په یوه ورځ نر او ښځي تولـه مسلمانان سوه، وروسته په کال دیارلس کي د نبوت د عليه الصلوٰة والسلام په اوسط کي د ایام تشریق له مدینې څخه په اختلاف د روایاتو اوویا نران او درې ښځي او یا درو اوویا نر او دوې ښځي راغلي او د عليه الصلوٰة والسلام سره یې بیعت وکړی. بغوي رحمه الله وايي چې عبد الله بن رواحة ﷺ په وخت کي د بیعت عليه الصلوٰة والسلام ته وویل یا رسول الله ﷺ ته پر موږ شرط کښېږده د خدای لپاره او د ځان لپاره چې ستا خوښه وي، عليه الصلوٰة والسلام ورته وویل اشترط لربي ان تعبدوه فلا تشركوا به شيئاً (یعني من الوثن والملائكة والنار وغيرها) واشترط لنفسي چې تاسي په ما ساتئ چې تاسي خپل ځانونه او اموال ځندي ساتئ، دوی ورته وویـل په مشری د عبد الله بن رواحة ﷺ چې موږ دغسي

وکړو نو موږ لره به څه شی وي؟ قال عليه الصلوة والسلام الجنة. دوی ورته وویل چي زموږ سودا ګټوره ده يعني موږ په ګټه کښي يو "لانقيل" موږ فسخ ددې سودا نه کوو "ولا نستقيل" او نه د بل چا فسخ د عقد قبله وو" فنزلت هذه الآية.

**درويش وايي:** چي د اهل مکې د مشرکانو او د مدينې د مسلمانانو چي تاسي واورېدی مثال داسي دی لکه چي يو کلی د لوی غره په لمن کښي وي. نو لمر چي راوخېژي اول يې نور او رڼا پر لېري ځايو او باندو باندي وي. د ډېر وروسته د کلي چي د غره په لمن کښي پراته وي، نور د لمر راځي، نو عليه الصلوة والسلام لکه شمس الهي ؤ اوله رڼا يې پر مدينې والو واقع سوه. او اهل مکه په سايه کښي د شپې پاته وه يعني پر کفر او شرک ډېره زمانه. وروسته پر اهل مکه باندي دا نور الهي تابان سو يعني څه وخت چي د بدر غزا او فتح د مکې وسوه.

إِنَّ اللَّهَ اشْتَرَىٰ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ ۚ

په تحقيق خدای پاک رانيول د له مسلمانانو څخه ځانونه او مالونه ددوی يعني چي في سبيل الله او لپاره د اعلاء د کلمة الله به يې قربانوي که ځانونه وي او که مالونه په دې سره چي دوی لره به جنت وي يعني په ورځ د قيامت يعني دا يې ثمن ورته کښېښو.

**پوه سه:** چي "اشتری" په دې آيت کښي استعاره تبعيه ده يعني خدای پاک مشابه کړی بذل د اموالو او انفسو د مؤمنانو في سبيل الله په معاوضه د شرا د شي او په عوض ثمن ورکول چي جنت دی. نو په شرا سره يې تعبير وکړی، او قانون د شرا دادی چي چونکه سړی د يو چا شي ورکړه د ثمن د مشتري له خوا وبائع ته ضروري ده چي مبيعه، دغه رنګه که مؤمنان بذل د انفس او اموال في سبيل الله وکړي ثمن چي جنت دی په فضل د خدای ﷻ او په قرار د وعدې د خدای ﷻ ودوی ته لازم دی فلا يرد انه لاوجوب على الله بشيئ. اهل السيرة وايي چي اول سړی چي لاس يې پر لاس د عليه الصلوة والسلام کښېښود لپاره د بيعت براء بن معرور رضی الله عنه ؤ. او ابو الهيثم رضی الله عنه او اسعد رضی الله عنه ؤ، چي دوی به ساتی عليه الصلوة والسلام لکه دوی چي ساتي خپلي ښځي او زامن، او دوی به جنګ کوي د احمر او اسود سره. نو د اول آيت د

قتال په باره کښې دا بیعت چي پای ته ورسېدی له لیلة العقبة کي په پټه د قریشو د مکې امر وکړی مسلمانانو ته چي دده سره په مکه کي وه په هجرت سره ومدينې ته او عليه الصلوٰة والسلام په خپله په مکه کي پاته سو واجازې ته د خدای ﷻ منتظر ؤ په هجرت کي. نو اول چي هجرت وکړی ابو سلمه بن عبدالاسد رضي الله عنه قبل بیعة العقبة الثالثة يو کال. او بعض مسلمانان چي حبشې ته تللي وه مکې ته بيرته راغله لکن کفارو د مکې دوی زهیرول نو دا کسان هم مهاجر د مدینې سوه. وروسته عامر بن ربیعه رضي الله عنه د خپلې ماينې سره چي ليلى یې نوم ؤ هجرت وکړی. وروسته عبدالله بن جحش رضي الله عنه هجرت وکړی وروسته مسلمانان ډله ډله مدينې ته روان سول. وروسته عمر بن الخطاب رضي الله عنه او دده وروزید او عباس بن ربیعه رضي الله عنه چي مجموعه شل نفره وه په اطرافو کي د مدينې واړول وروسته عثمان بن عفان رضي الله عنه هجرت ته ځان تيار کړی او ولاړی. او ابو بکر صديق رضي الله عنه هم عليه الصلوٰة والسلام ته وويل چي زه به هم هجرت وکړم. نو عليه الصلوٰة والسلام به ورته ويل لاتعجل لعل الله ان يجعل لک صاحباً. نو ابوبکر رضي الله عنه پـه دې پوه سو چي د عليه الصلوٰة والسلام خپل ځان مراد دی له صاحب څخه. بیا قریشو یوه جلسه جوړه کړه په دار الندوة کي چي عليه الصلوٰة والسلام ووژني نو خدای ﷻ و عليه الصلوٰة والسلام ته امر د هجرت وکړی او ابوبکر رضي الله عنه یې هم ملګری ؤ په هجرت کي.

**درویش وايي:** چي د دار الندوة د جلسې تر له جریانات او د عليه الصلوٰة والسلام او ابوبکر رضي الله عنه د هجرت قصه په تفصيل سره درویش په تفسیر کي د سورة الانفال پر لوی میدان د کاغذ د قلم په نوک بیان کړي دي ولله الحمد.

**یوه سه:** چي بعض اوهامو ته دا اعتراض په زړونو کي ورګرځي چي بنده او دده مال ټول له مِلک د مولی عزوجل دی، نو خدای پاک څرنګه خپل ملک په خپل ملک چي جنت دی رانسي؟

**ځواب:** دا لفظ د اشترا چي یې ذکر کړی لپاره د باعثه کولو د بندګانو پر غذا باندي کما في آية اخرى من يقرض الله قرضاً حسناً الآية. وبالفارسية كما قال الحسين الكاشفي رحمه الله، ای بنده از تو بذل کردن نفس ومال واز من عطا دادن بهشت بی زوال. قال جعفر الصادق رضي الله عنه یا ابن آدم اعرف قدر نفسک فان

الله عرفک قدرک لم يرض ان تکون لک ثمن غير الجنة، قال المولوي جلال الدين الرومي في المثنوي:

خويشتن نشناخت مسکين آدمی ...... از فزونی آمد وشد درکمی
خويشتن را آدمی ارزان فروخت ...... بود اطلس خويش را بردلق دوخت

امام همام فخر الدين الرازي رحمه الله په تفسير کبير کي وايي چي په حديث شريف کي راغلي دي چي ابليس په دغه آيت سره احتجاج کوي، او دا مسئله شرعي خدای جل جلاله ته پېښوي چي يو مشتري چي متاع معيوب رانسي بېرته يې بائع ته ردوي، نو دی ووايي نفوس او اموال د بندګانو خو ټوله معيوبه ده تا ځني رانيول بېرته يې ور رد کړه ستا شريعت په حکم سره تا چي دوی زما ملګري سي حيث اکون، خدای پاک ورته ووايي چي ته جاهل يې زما په شرعه او عدل سره يو مشتري چي يو متاع رانسي بکل عيب فيه بفضله وکرمه لا يجوز رده في شرعي في مذهب من المذاهب، نو شيطان مخ توری سي.

**درويش وايي:** چي والله يعلم بصحة الخبر المذكور لان الرازي رحمه الله لم يذكر ناقله عن النبي ﷺ ولا سنده.

## يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيَقْتُلُونَ وَيُقْتَلُونَ

دوی به جنګ کوي په لاره کي د خدای جل جلاله، نو به يا دوئ کافران وژني او يا به دوی وژل کېږي د کافرانو له خوا.

**فائده:** په اول صورت کښي دوی غازيان دي فلهم الجنة او په دوهم صورت کښي دوی شهداً دي فلهم الجنة ايضاً.

**پوښتنه:** مسلمانان چي غزا ته ولاړ سي بعض داسي کسان په فوج کي البته سته چي نه يو کافر قتل کړي او نه دی قتل کړل سي، نو دې مسلمان ته هم ثواب د جنت سته؟

**ځواب:** هو! په غزا کي فعل د بعض فوجيانو يعني چي يا کافر قتل کړي او يا دی شهيد سي، ټولو فوجيانو ته منسوب کېږي، ولي چي هر غازي وهر يوه ته ددې فعلو اماده ؤ، نو دی ته خدای پاک جنت ورکوي پر مجرد نيت صادقه

دده. ولو لم يوجد منه واحد من الفعلين.

**سوال:** حمزه او كسائي له قرأ سبعه رحمهم الله څخه مجهول فعل دمخه راوړی دی، او معلوم يې وروسته فكيف يتصور القتل من المقتول؟

**ځواب:** په نحو كې وايي چې كلمه د واو عاطفه ترتيب نه غواړي فلا يرد السوال المذكور فافهم.

## وَعْدًا عَلَيْهِ حَقًّا فِي التَّوْرٰىةِ وَالْاِنْجِيْلِ وَالْقُرْاٰنِ

**پوه سه:** چې ضمير د "وعداً" راجع دی وشرا ته او "وعداً" مفعول مطلق دی د فعل محذوف ای وعدالله لهم وعداً "حقاً" صفت دی د "وعداً" او يا مصدر دی د فعل محذوف ای حقه حقاً.

**درويش وايي:** چې له دې آيت څخه يعني "في التورٰة آه" دا وفهميده چې اهل التوراة او اهل انجيل چې يهود او نصاری دي لکه مسلمانان چې اهل قرآن دي، ټول له مأمور به په جهاد سره وه او د ټولو سره وعده د جنت كړل سوې وه على الجهاد، پوه سه! حرف جر چې في د متعلق دی په فعل محذوف پورې د "وعداً سره كمامر آنفاً.

## وَمَنْ اَوْفٰى بِعَهْدِهٖ مِنَ اللّٰهِ

الاستفهام للانكار ای لا احد اوفى آه ولې چې په عقائدو كې وايي چې خلف الوعد بد كار دی او پر خدای جل جلاله محال دی، او وفاً بالوعد كرم ولا احد اكرم منه تعالى والمقصود المبالغة في انجاز الوعد.

## فَاسْتَبْشِرُوْا بِبَيْعِكُمُ الَّذِيْ بَايَعْتُمْ بِهٖ وَذٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿۱۱۱﴾

خوشحاله اوسئ. غاية الفرح ايها المؤمنون المجاهدون په بيع سره چې تاسي د خدای جل جلاله سره وكړه هغه يعني انفس او اموال پر خدای جل جلاله خرڅ كړه په جنت سره ولې دا ډېره ګټوره سودا ده ستاسي چې حقير فاني چې انفس او اموال دي په شريف باقي سره چې جنت سودا كړي.

**فائده:** په دې آيت كې التفات دی له غيبت څخه په يقاتلون كې، وه خطاب ته د فاستبشروا.

**فائده سنیه:** پوه سه! چي په حدیث شریف کي راغلي دي ان الجنة تحت ظلال السیوف "جنت د تورو تر سایو لاندي دی" وان من اغبرت قدماه في سبیل الله حرمه الله علی النار "که د چا پښي سپرې سوې په لار کي د خدای ﷻ یعني په جهاد کي هغه سړی به خدای پاک حرام وګرځوي پر اور باندي یعني د دوږخ اور ورته حرام دی" ومن انفق دیناراً في سبیل الله کتب بسبعمائة دینار وفي روایة سبعمائة الف دینار" او که چا مصرف کړی یو دینار په لار کي د خدای ﷻ ورته وبه لیکل سي په اووه سوه دیناره سره او په بل روایت کي په اووه لکه دیناره سره" وان الشهدا احقاً عند الله من الاحیا وان ارواحهم في جوف طیور خضر تتبوء من الجنة حیث تشا" او هغه کسان چي شهیدان وي په حق سره یعني في سبیل الله ژوندي دي په نیز د خدای ﷻ یعني حیوةً روحیةً وان کانت ابدانهم في القبور او روحان ددوی په نسو کي (وفي روایة في حواصل جمع د حوصلة ده چي په پښتو کي جوجری ورته وایي) د زرغونو مرغانو دي چي ګرځي دا مرغان په جنت کي هغه چي اراده وي د شهیدانو. علماً او شارحان د حدیث نبوي ﷺ وایي چي دا اجواف یا حواصل د شهدا لپاره لکه صدف د ملغلرو لپاره" وان الشهید یغفر له جمیع ذنوبه وخطایاه وانه یشفع له في سبعین من اهل بیته و اولاده "او شهید ته وربخښل کېږي ټول له ګناه کبائر او صغائر دده او د شهید شفاعت قبلول کېږي په اوویا کسانو کي د اهل بیت دده او د اولاد دده" وانه امن یوم القیامة انضرع الاکبر "او شهید به په امن کي وي په ورځ د قیامت له لوی بېري څخه "وانه لایجد کرب ولا هول المحشر "او شهید نه پیدا کوي د مرګ درد یعني د زکندن او نه بېره د ورځي د محشر" وان الطاعم النائم في الجهاد افضل من الصائم القائم في سواه "او هغه سړی چي په ډوډۍ بې ځان موړ کړی وي او په خوب بیده وي د جهاد په صحنه کي افضل یعني په نیز د خدای ﷻ تر هغه چا چي د ورځي بې روژه وي او شپه په قیام کي د تهجد تېره کړي ماسوا له جهاد څخه" ومن حرس في سبیل الله لاتبصر النار عیناه "او هغه څوک چي پهېره وکړي یعني چوکیداري وکړي في سبیل الله یعني د غازیانو چي هغه بېغمه خوب وکړي نه به ووینې سترګي دده اور یعني دوږخ"

**درویش وایي:** چي فضائل د غزواتو او شهداؤ بې اندازې ډېر دي چي راوړل به يې سبب د ډېر تطويل او اطناب وګرځي وفيما ذكرناه كفاية لمن رزقه الله الفهم والله الموفق.

اَلتَّآئِبُوْنَ الْعٰبِدُوْنَ الْحٰمِدُوْنَ السَّآئِحُوْنَ الرّٰكِعُوْنَ السّٰجِدُوْنَ

يعني هغه كسان چي توبه يې وي له شرک څخه او اخلاص يې وي له نفاق څخه. او روح البيان دا هم زياته كړې ده ومن كل معصية صغيرة كانت او كبيرة الخ.

**پوه سه:** چي ددې تفسير رجوع وعصمت ته كېږي والعصمت مختصة بالانبياء عليهم السلام. مفسرين رحمهم الله په يوه خوله وايي چي تائبون مرفوع على المدح خبر د مبتدأ محذوف اى هم والمراد بهم المؤمنون المذكورون في قوله تعالى ان الله اشترى من المؤمنين آه. ولي دوى بيعت كړى ؤ امتثال د ماياأمرهم ولا يعصونه في معروف.

**درویش وایي:** چي په قرائت کي د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه او ابى التائبين بالجر راغلى دى. نو پر دې قرائت لفظاً صفت دى د مؤمنين چي په دمخه آيت کي ذكر سول. او زجاج رحمه الله وايي چي تائبون تر اخيره پوري مبتدأ ده او خبر يې محذوف دى تقديره التائبون آه من اهل الجنة. وان لم يجاهدوا په دې شرط چي معاند نه وي او نه يې په نيت كي وي ترك الجهاد عند القدرة المفروضة. نو پر دې تقدير دا لوى زيرى دى د جنت د ټولو مؤمنانو سره كما في قوله تعالى وكلا وعد الله الحسنى "العابدون" يعني لله وحده چي نه مشركين په شرک جلي وي او نه خفي چي رياً او سمعه ده "الحامدون" چي حمد د خداى جل جلاله په حال كي د سراً او ضراً ، طبراني، حاكم او بيهقي رحمهم الله په سند صحيح کي له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت كړى دى. قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اول من يدعى الى الجنة الحامدون الذين يحمدون الله في السرا (يعني په وخت كي د خوشحالى په نفس او مال او عيال) "والضرا" او په حال كي د ضرر يا ناجورى، يا فقر او مسكنت او يا فوت الاولاد وغيرها من موجبات التهلف.

**درویش وایي:** چي مفسرينو په اتفاق اول تفسير د "السائحون" په

روژاتیانو سره کړی دی. د ابن جریر رحمه الله په روایت د علیه الصلوة والسلام څخه چا پوښتنه وکړه عن السائحین قال الصائمون. او ابن جریر او ابن المنذر له ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت کړی دی کل اینما ذکر في القرآن السائحین فهم الصائمون. او له عائشي رضی الله عنها څخه روایت دی فرمایي سیاحة هذه الامة الصیام. سفیان بن عیینة رحمه الله وایي چي صائم ته ولي سائح وایي چي صائم لکه سائح تو له لذات او شهوات من المطعم والمشرب والنکاح یعني جماع پرې ایښي دي لپاره د رضی د خدای جل جلاله. نو له دې سببه په حدیث د ابي هریرة رضی الله عنه چي بخاري او مسلم یې روایت کړی دی چي رسول الله ﷺ وویل کل عمل بني آدم یضاعف الحسنة بعشر امثالها الی سبعمائة ضعف (هر عمل د ابن آدم دوه چنده کېږي نېک عمل یې په لس مثل سره تر اووه سوه ښل پوري یعني په تفاوت د اخلاص د بندګانو یا په اختلاف د ازمانو الی غیر ذالک) قال الله تعالی الا الصوم فانه لي وانا اجزی به یدع شهوته وطعامه من اجلي الی اخیر الحدیث (خدای پاک وایي مګر نه روژه ولي روژه زما ده.

**درویش وایي**: چي نسبت یې وځان ته وکړی که څه هم ټول عبادات خو د خدای جل جلاله دي په دې سبب چي په روژه سره ریاٗ او سمعه لږ پیدا کېږي او زه یې ثواب ورکوم یعني وملکو ته یې نه سپارم چي هغو ته یې قدر د ثواب نه دی معلوم. وفي روایة وانا اجزی به بصیغة المجهول یعني زه ثواب یم د روژې یعني زما دیدار یا زما رضٰی ثواب دی د روژې. روژې والا پرېښو خپل شهوت او طعام زما لپاره الخ)

**درویش وایي**: چي وتفسیر ته د سیاحت په روژې سره لوی جماعت د صحابه کرامو رضی الله عنهم او تابعینو رحمهم الله تګ کړی دی، آلوسي رحمه الله په روح المعاني کي وایي چي اطلاق د سیاحت پر روژې باندي د استعارې له قسمه څخه دی، ولي چي روژه صائم منع کوي له ډېرو شهواتو څخه لکه اکل شرب جماع لکه چي سیاحت په اغلب الناس کي داغسي وي. او بله وجه ډېره الطف یې دا ویلې ده چي روژه سفر روحاني دی چي ددې سفر په ویار ډېر احوال د ملک او ملکوت

وروژ باني ته کشف کبري فشبه الاطلاق عليها بالاطلاع للسائح على البلدان او پر دېرو ځايو باندي الى اخيره. او ابن ابي حاتم له ابى زيد څخه روايت کړی دی چي سائحون هم المهاجرون دي وليس في امة محمد ﷺ سياحة الا الهجرة. او ابو الشيخ له عکرمه رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چي سائحان طالب علمان دي يسيحون في الارض لطلب العلم. او طبراني او حاکم وايي له ابی امامة رضي الله عنه څخه په روايت چي يو سړي له عليه الصلوة والسلام څخه اجازه د سياحت وغوښتل. نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل سياحة امتي الجهاد في سبيل الله، لکن اول تفسير اولى دی.

**پوښتنه**: د سياحت تفسير يې ولي په معنى لغوي سره نه دی کړی؟

**ځواب**: سياحت په معنى لغوي د نصاري وو د رهبانيت يوه څانګه ده وقد نهى رسول الله ﷺ عن الرهبانية يعني بانواعها.

**درويش وايي**: چي ابو الشيخ له عکرمة رضي الله عنه څخه په روايت چي تفسير د سائحين په طلاب العلم سره کړی دی د پر په ژړه پوري دی، لانه قال ابو الدردا رضي الله عنه سمعت رسول الله ﷺ من سلک طريقاً يطلب فيه علماً سلک الله به طريقاً من الجنة ( که څوک پر يو لار روان سو چي په هغه کي يې علم طلباوه، خدای ﷻ به دی بوزي په دغه سلوک ولاري ته د جنت) وان الملائکة لتضع اجنحتها رضىً لطالب العلم (او په تحقيق ملکي ايږدي خپل وزرونه يعني چي طالب العلم ووينې دوی خپل طيران قطع کوي لپاره د رضى د طالب العلم يعني ورته درېږي.

**درويش وايي**: چي بعض ملا امامان چي وايي چي ملکي د طالب العلم تر پښو لاندي وزرونه ايږدي هغه تفسير غلط دی او اهانت دی د ملائکة الله) وان العالم ليستغفر له من في السموات ومن في الارض حتى الحيتان في جوف الماً (او عالم يعني بالعلوم الدينية اذ لا اعتداد لغيرها هر آئينه طلب د د بخښي کوي هغه څوک چي په اسمانو کي دي يعني الملائکه. او هغه څوک چي په مځکه کي دي ، والمراد صالح مؤمنان. حتى چي طلب د بخښي ورته کوي ماهيان په نس کي د اوبو اى بلسان القال والله اعلم بحقيقة الحال) وان فضل العالم على

العابد كفضل القمر ليلة البدر على سائر الكواكب (او فضیلت د عالم یعني چې صرف فرائض او واجبات پر ځای کوي او له منهیات شرعیه وو څخه پرهېز کوي. او نور وخت په تعلیم کې د علم تېروي یعني یا په درس کې یا په مطالعه کې د دیني کتابو یا په تصنیف کې یعني نوافل العبادات نه کوي پر عابد چې په نوافل العبادات من الصلوة والصیام والاذکار وغیرها بخت وي، لکه فضیلت د سپوږمۍ د څورلسم د میاشتې پر نورو ستورو) وان العلمآ ورثة الانبیآ وان الانبیآ لم یرثوا دینارا ولا درهما وانما ورثوا العلم فمن اخذه اخذ بحظ وافر (رواه احمد والترمذي وابو داؤد وابن ماجه) اللهم اجعلني منهم بفضلك وكرمك.

او په تحقیق علمآ وارثان د انبیآ علیهم السلام دي. او انبیآ علیهم السلام په میراث نه دي پرې ایښې دینار او نه درهم. بلکې دوی پرې ایښې دی علم ای علم الدین والشریعة. نو که چا د علم برخه واخستل یعني علم یې حاصل کړی بیا یې مبذول کړي، نو یې واخستل پوره برخه یعني له ژوند څخه د دنیا.

**پوه سه**: چې مراد له "الراکعون والساجدون" څخه لمونځ کونکي د پینځه وخته مفروضه دي.

**پوښتنه**: له لمانځه څخه یې تعبیر په دغه رکوع او سجده سره وکړی وجه یې څه ده؟

**ځواب**: لمونځ خو عبادت دی عبادت کول په رکوع او سجده سره تر نورو ارکانو د لمانځه ښه معلومېږي. ولې چې عادةً سړی ګاهې ولاړ وي او ګاهې ناست وي او رکوع او سجده د عادت شیان نه دي. نو هر څوک پوهېږي چې دا سړی لمونځ او عبادت کوي.

**سوال**: په یوازې رکوع او سجده سره خو لمونځ مراد کېدای سو ای. نو دواړو ته کوم ضرورت و؟

**ځواب**: د تکرار فائده یې داده چې دلالت وکړي پر فضیلت د لمانځه پر نورو عباداتو کما جاؤ في حدیث ابن مسعود رضي الله عنه دی وایي چې ما پوښتنه وکړه د علیه الصلوة والسلام څخه ای الاعمال احب الی الله؟ قال الصلوة لوقتها (کوم عمل ډېر محبوب دی و خدای جل جلاله ته؟ علیه الصلوة والسلام وفرمایل لمونځ پر

خپل وخت یعني مستحب وخت) قلت ثم ای قال بر الوالدین (بیا ما ورسته ورته وویل چي بیا کوم عمل محبوب دی و خدای ﷻ ته؟ علیه الصلوة والسلام وفرمایل چي احسان کول د مور او پلار سره یعني خدمت یې کوه که د خدمت محتاجه وه او نفقه ورکوه الی غیر ذالک) قلت ثم ای قال الجهاد في سبيل الله (ما ورته وویل بیا نو کوم عمل احب دی وخدای ﷻ ته؟ ده مبارک وفرمایل چي جهاد په لاره کي د خدای ﷻ یعني لمرضاة الله واعلاء کلمة الله، رواه بخاري ومسلم، وفي رواية لو استزدته لزادني (که ما نوري پوښتني ځني کړي وای یعني ثم ای ثم ای علیه الصلوة والسلام به ماته زیاتوب کړی وای یعني د هغو خوابونه به یې هم راکړي وای، مطلب یې دادی چي ما شفقتاً له علیه الصلوة والسلام ځنحه نوري پوښتني نه وکړې) وقال رسول الله ﷺ الصلوة عماد الدين رواه ابو نعيم وفي رواية فمن اقامها فقد اقام الدين ومن هدمها فقد هدم الدين، وقال علیه الصلوة والسلام الصلوة نور المؤمن ری عن انس ﷺ وقال الصلوة قربان كل تقي (المونځ نژدې والی د هر تقوی مومن یعني سبب د نژدېوالي وخدای ﷻ ته د هر تقوی داره سړي.

## الْاٰمِرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَالنَّاهُوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ

چي امر کونکي دي په معروف سره چي ایمان دی او عمومي طاعات دي او نهي کونکي له بد کاره ځنحه چي کفر او عموماً گنهونه دي.

**سوال**: د ناهون سره یې ولي واو عاطفه راوړی او په نورو خصالو کي یې واو عاطفه نه راوړی؟

**ځواب**: نور خصال ټوله هر یو جلا جلا خصلت دی، او امر بالمعروف او نهي عن المنکر یو صفت او خصلت دی ولهذا جمع بالعطف بینهما، او حدادي رحمه الله وایي چي معروف هو السنة النبوية ای الطريقة النبوية ﷺ والمنكر هو البدعة آه، په حديث شريف کي راغلي دي "كل بدعة ضلالة" ابن مالک رحمه الله وایي یعني كل خصلة جديدة آتی بها الشخص ولم يفعلها النبي ﷺ ولا الصحابة ﷺ آه او له دي ځنحه تخصیص کړی علماؤ د مذاهبو بدعت حسنه كما قال عمر ﷺ

حين جمع الناس على ابى بن كعب ﷺ في صلوة التراويح نعمت البدعة. علما رحمهم الله وايي چي بدعت پينځه قسمه دى، يو واجب لکه جمع کول د دلائلو عقليه او نقليه لپاره د دفع د شبهاتو د ملاحده ؤ او د روافضو وسائر فرق الضلالة ككتب المتاخرين في العقائد كشرح العقائد وشرح المقاصد للعلامة التفتازاني رحمه الله والمواقف للقاضي عضد الملة والدين رحمه الله وشرحه للسيد الشريف وغيرها، ومندوبة كتصنيف الكتب في العلوم الدينية من كتب التفاسير وكتب الاحاديث والكتب الفقة والفتاوى. وبناء المدارس والجسور وغيرها ومباحة كالبسط في الماكولات. ومكروهة وحرام وهما ظاهران.

## وَالْحٰفِظُوْنَ لِحُدُوْدِ اللّٰهِ

او دوى ساتونكي وي د هغه اوامرو او منهياتو چي خداى جل جلاله ودوى ته حد او تعين كړى وي.

**پوه سه:** چي حسنات يعني خصلات حسنه چونكه په ماذكره الله فيما قبل كي حصر نه وه، ولي كه ټوله حسنات د اعضاً بدنيه ؤ او قلبيه ؤ څوک يې جمع كوي، نو كتاب مجلدات به ځني جوړ سي يعني من العقائد الدينية الخالية عن الزيغ والبدعة والاحكام الشرعية الفقهية واحكام تصفية النفس من الرزائل كما بين في التصوف، نو له دې كبله په واو عاطفه سره چي وه شامل مامر ذكره ته او ما بقى ته هم دي كمامر ذكره منا يو حاصل مجمل كلام جامع او مانع ذكر كړى چي "والحافظون لحدود الله" دى.

**پوه سه:** چي شيخ احمد غزالي رحمه الله وخپل ورور محمد غزالي رحمه الله ته وويل چي ټوله دين ماتاته په دوو خبرو كي جمع كړى دى. التعظيم لامر الله. والشفقة على خلق الله.

## وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١١٢﴾

او ته زيرى وكړه يا محمد ﷺ وټولو مؤمنانو ته يعني الموصوفون بما ذكره الله من الخصال الحميدة وبما ذكره الله تعالى في الاجمال يعني زيرى د رضى الهي وكړه او زيرى د دار الكرامة جنت وكړه.

**پوښتنه**: دغه کسان خو د وړاندې ذکر سوه، نو ضمیر د هم يعني وبشرهم کافي نه ؤ؟

**ځواب**: په ذکر د لفظ د "مؤمنين" تنبيه پر دې ده چې ايمان ددوی سبب د خصال حميده وګرځېدی، ولي چي علماً قاطبةً وايي چي تعليق د يو حکم لګه دلته چي بشارت دی په يو مشتق سره چي لفظ د مؤمن دی دلالت کوي پر سببيت د مبدأ الاشتقاق چي ايمان دی د هغه حکم لپاره چي بشارت دی.

په قرآن مجيد کي خدای ﷻ مبشر به نه کړی ذکر چي تنبيه پر دې باندي چي پر تولـه مبشر به باندي عبارت احاطه نه سي کولای، او درويش په طور د مشت نمونه خروار اجمالي بيان د مبشر به وکړی.

**درويش وايي**: چي بخاري او مسلم له سعيد بن المسيب رضي الله عنه او له خپله پلاره څخه داسي روايت کړي دی چي ابو طالب عم رسول الله ﷺ چي د وفات وخت يې نژدې سو عليه الصلوة والسلام ورته راغلی او په مجلس کي ابو جهل او عبدالله بن ابی اميه هم حاضر وه، نو عليه الصلوة والسلام وه ابو طالب ته وويل قل لا اله الا الله احاج بها عندالله، ابوجهل او عبدالله بن ابی اميه ورته وويل اترغب عن ملة عبدالمطلب يعني فهم کوه چي د ملت او دين څخه د عبدالمطلب چي شرک دی وانه وړې، نو عليه الصلوة والسلام ګړی په ګړی د توحيد کلمه وه ابو طالب ته پېشوله او بو جهل او ملګري يې خپل خبره ورته تکراروله حتی چي د ابو طالب اخيره خبره داوه علی ملة عبدالمطلب وابی ان يقول لا اله الا الله او مړ سو، نو رسول الله ﷺ دا خبره وکړه والله لاستغفرن لک مالم انه عنه (قسم په خدای ﷻ دی چي زه به همېشه ستا لپاره طلب د بخښي کوم تر هغو پوري چي زه نه يم نهي سوی يعني د خدای ﷻ له خوا ستا له استغفار څخه، نو دا آيت نازل سو.

**درويش وايي**: چي د آيت شريف پر مذکوره شان حسين بن الفضل رحمه الله داسي سوال کړی دی چي د ابو طالب وفات خو قبل الهجرة درې کاله مخ ته راغلی دی او دا سورت له اخيرو سورتونو څخه دی چي په مدينه منوره کي نازل

سوي دي. فاضل واحدي رحمه الله د دې سوال په ځواب کې وايي چې دا سوال نه دی وارد. ولې چې علیه الصلوة والسلام د ابو طالب استغفار له خدای ﷻ څخه غوښتی د وفات له وخته څخه بیا تر وخته د نزول د دې آیت په مدینه منوره کې فـان التشـدید مـع الکفار انما ظهر فـي هذه السـورة. او ورتـه ځواب صاحب التقریب هم ذکر کړی دی.

**سوال**: په مذکوره شان نزول کې خو داسې راغلي دي فنزلت هذه الآیة. کلمه د فا په نیز د نحاتو خو لپاره د تعقیب بلا فصل ده؟

**ځواب**: کلمه د فا لپاره د تعقیب نه ده بلکې لپاره د سببیت ده، پر دې توجیه د واحدي رحمه الله د پرو نورو علماؤ رحمهم الله اتفاق کړی دی او دا یې ویلي دي چې هذا توجیه وجیه، پر دې توجیه علامه بغداد په روح المعاني کې دا سوال کړی دی چې ابن سعد رحمه الله او ابن عساکر رحمه الله له حضرت علي رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چې ما خبر ورکړی په مرګ د خپل پلار ابو طالب، نو علیه الصلوة والسلام وژړل یعني د ابو طالب پر موت بېله ایمان راوړلو څخه. وقال اذهب فغسله وکفنه واراه غفرله الله ورحمه ففعلت (علي رضي الله عنه ته یې وویل چې ورسه غسل ورکړه او کفن ورکړه او ښخ یې کړه خدای ﷻ دې وده ته بخښنې وکړي او رحم دې پر وکړي. علي رضي الله عنه وايي ماهم د فرموده سره د علیه الصلوة والسلام کار وکړی وجعل رسول الله ﷺ یستغفرله ایاماً ولا یخرج من بیته حتی نزل علیه جبریل علیه السلام بهذه الآیة ماکان للنبي الآیة (نو علیه الصلوة والسلام په استغفار د ابو طالب شروع وکړه څو ورځې او لـه کوره نه راوتـی حتی چې جبرئیل علیه السلام دا آیت راوړی ماکان للنبي ﷺ له دې روایت او حدیث څخه خو صراحةً دا فهمېږي چې علیه الصلوة والسلام چې وروسته تر دفن د ابو طالب له کوره نه راوتی تر وخته د نزول د آیت چې دا آیت په مکه کې نازل سوی دی. آلوسي رحمه الله وايي اللهم الا ان یقال بضعف هذا الحدیث لکن محمود آلوسي رحمه الله وايي چې ما داسې څوک نه دی لیدلی چې دا حدیث دې ضعیف ګڼلی وي.

آلوسي رحمه الله صاحب د روح المعاني وايي چې اولی په ځواب کې د اصل

سوال چي حسين بن الفضل رحمه الله وارد کړی ؤ پر مذکوره شان نزول چي دا سورت چي روات مدني بولي په اعتبار د غالب آيتو دی فلا ينافي نزول شيئ منها في مكة وهي هذه الآية ماكان للنبي الآية.

**درویش وایي:** چي صاحب د روح المعاني په اخير د مبحث مذکور دا عبارت راوړی دی والآية دليل على ان اباطالب مات كافراً وهو المعروف من مذهب اهل السنة والجماعة ص٣٣.

**درویش وایي:** چي محمود آلوسي رحمه الله په روح المعاني کي وايي چي د شیعه ګانو مذهب دادی چي ابو طالب پر ایمان مړ سو او دوی داسي دلائل راوړي دي چي ټکلی به پر وخاندي (ټکلی هغه ښځه بولي چي ځوان زوی یې مړ وي) او دی وايي چي شیعه ګانو داسي دلائل پر ایمان د ابو طالب راوړي دي چي اوهن من بيت العنكبوت دي. هو! په ايمان او نه ايمان کي د ابو طالب ډېر بحث کول وه مؤمن ته نه ښايي لکه په باره کي د نورو کفارو د قریشو لکه ابوجهل وامثاله، ولي چي ابو طالب لره فضلیت سته پر نورو کفارو د قریشو. ولي چي ابو طالب رسول الله ﷺ له کوچنیوالي څخه بیا تر ځوانۍ پوري په قرار د وصیت د پلار عبد المطلب دی مبارک ډېر نازاوه، او نکاح د خديجة الكبرى رضي الله عنها د عليه الصلوة والسلام سره په سن کي د پينځه ویشت کلنۍ د ابو طالب په ژوند کي واقع سوه او هر څه ازازونه د قریشو د کفارو پر عليه الصلوة والسلام باندي په قرار د صحيح احاديثو تر ده پس له وفاته د ابو طالب راغلي دي، وقد روى نفع تلک المحاسن لابي طالب مع رسول الله ﷺ في الآخرة افلا ينفعه في الدنيا في الكف عن الخوض فيه وعدم معاملة المؤمن مع ابي طالب معاملة غيره من كفار قريش كابي جهل وغيره، له ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما له رسول الله ﷺ څخه واورېدل چي يو چا پوښتنه د ابو طالب په باره کي وکړه، عليه الصلوة والسلام وويل ولعله تنفعه شفاعتي يوم القيامة فيجعل في ضحفاع من النار.

**پوه سه:** چي ضحفاع هغه لږو اوبو ته د رود وايي چي تر بجلکو پوري وي.

علیه الصلوة والسلام زیاته کړه که زما شفاعت نه وای دی به په غمرات کي د اور وای او کما قال ﷺ. علامه بغداد رحمه الله په صفحه ۳۶ کي وایي چي ښکنځل وه ابو طالب ته زما په نیز ډېر بد کار دی خصوصاً چي په دې ښکنځلو کي د ابو طالب د علوینو ازار دی، وقد ورد في الحدیث الصحیح لاتوذوا الاحیا بسبب الاموات.

**درویش وایي:** چي روح البیان د ابو طالب د ناروغی قصه په ښه ډول سره څېړلې ده، دی وایي چي ابو طالب مریض سو دمخه تر هجرت نبوي ﷺ درې کال اولس کاله د نبوت د علیه الصلوة والسلام پوره سوله. قریش د ابو طالب د مرض له شدت ته خبره سوه، نو یو وبل ته یې سره وویل چي حمزه او عمر رضی الله عنهما مسلمانان سوه او حال د محمد ﷺ قد فشا في بعض قبائل د قریشو ورځي، راسي چي ورسو ابو طالب ته، نو زموږ چي زموږ لپاره دی د خپل وراره عهد واخلي او زموږ له خوا دی وده ته عهد ورکړي، ولي موږ ډېرېږو چي دا سړی زموږ امر یعني شرک به یکلخته له منځه یوسي، او به یو روایت کي داسي راغلي دي چي موږ ډېرېږو که دا شیخ یعني ابو طالب مړ سي، نو موږ خو علیه الصلوة والسلام حتماً قتل کوو، نو موږ ته به عرب پېغور راکوي چي د اکا ابو طالب په ژوند یې کار نه په درلودی چي هغه مړ سو محمد ته یې لاس ورواچاوه، نو د د قریشو دغه نامور اشراف سره راټول سوه، یعني عتبه وشیبه چي زامن د ربیعه وه او ابو جهل بن هشام او امیه بن خلف او ابو سفیان چي دغه وخت مسلمان نه ؤ ولي چي ده د مکې د فتح په شپه ایمان راوری، نو یو سړی یې وه ابو طالب ته ورواستاوه چي موږ ستا پوښتنې ته درځو اجازه سته؟ نو ابو طالب هم اجازه ورکړه فدخلوا علیه، دوی تر پوښتني وروسته وه ابو طالب ته وویل یا ابا طالب ته زموږ سردار یې زموږ مشر سړی یې او تا ته ناروغي درپېښه سوه، موږ ډېرېږو یعني ستا پر مرګ باندي، او ته خبر یې چي زموږ او ستا د وراره تر منځ لوی جنجال دی، نو ته یې راوه غواړه زموږ او دده تر منځ یوه فیصله راوکړه په دې ډول چي موږ او خپل دین سره پرېږدي او زموږ خدایانو ته دي پوچ نه وایي، موږ دی او خپل دین سره پرېږدو، نو علیه الصلوة والسلام ته ابو طالب سړی ورواستاوه، علیه الصلوة والسلام خپل اکا ته راغلی،

درویش واېي چي دا رواج له پخوا څخه راروان دی چي د ناروغه د څنګ سره د یوه سړي ځای پرېږدي ددې لپاره چي د مریض اواز طبعاً ضعیفه وي. نو هغه څوک چي د پوښتنې لپاره د مریض و څنګ ته کښېني او په کرار اواز د مریض احوال پرسي کوي. علیه الصلوٰة والسلام چي په حجره داخل سو ابو جهل ور په هوا سو او هغه د ابو طالب بغل ېې اشغال کړی چي نه باید چي محمد دلته کښېني. نو به د ابو طالب د قرابته زړه پر وسوځي او ایمان به پر راوړي. نو علیه الصلوٰة والسلام د ځای د نیستی له کبله د موچنو په ځای کي کښېنستی. نو ابو طالب و علیه الصلوٰة والسلام ته وویل یا ابن اخي هٰؤلآَء اشرافوا قومک ددوی سره هغه رفتار وکړه چي دوی یې غواړي او دوی ستا څخه د انصاف سوال کوي چي ته ددوی له خدایانو څخه د بدویلو خوله بنده کړه یعني چي دا خدایان هیڅ شی نه دي او ددوی عبادت شرک دی. دوی به تا او ستا خدای سره پرېږدي. علیه الصلوٰة والسلام دوی ته وویل چي تاسي راته ووایاست چي زه که هغه شی تاسي ته درکړم یعني درسره وه یې منم تاسي په ماته هغه شی راکړئ یعني راسره وه به یې منئ. یوه خبره چي تاسي په د هغې خبري په منلو سره د عربو مالکان سئ یعني سلطنت به پر کوئ او عجم به ستاسي فرمانبرداره سي ای یطیع ویخضع. ابو جهل ورته وویل چي د هغو خبري د منلو سره به لس نوري خبري درسره ومنو قال ﷺ تقولون لا اله الا الله او تاسي به پرېږدئ ما تعبدون من دون الله. دوی سره چک چکي کړې ثم قالوا یا محمد ﷺ زمونږ څخه سوال وکړه غیر له دغې کلمې یعني لا اله الا الله. علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل که تاسي لمر راوړئ او زما په لاس کي یې راکښېږدئ (وهذا تعلیق بالمحال) زه به ستاسي څخه سوال نه وکړم غیر د لا اله الا الله. نو دوی یو له بله سره وویل مایعطیکم هذا الرجل شیئاً مما تریدون. درځئ خپل د پلرو دین ټینګ کړئ حتی یحکم الله بینکم وبینه. نو ټول له ولاړه. وروسته علیه الصلوٰة والسلام ابو طالب ته وویل ای عم ته دغه کلمه ووایه یعني اشهد ان لا اله الا الله. یعني زه به ستا دغه کلمه په ورځ د قیامت و خدای ﷻ ته پیش کړم او ستا شفاعت به وکړم. ابو طالب ورته وویل یا ابن اخي لو لا مخافة العار وان تظن العرب اني انما

قتلتها خوفاً من الموت لقلتها فنها عن كلمة التوحيد قال ﷺ زه به همېشه تاته طلب د مغفرت کوم ترڅو زه ځني منع سوی نه یم فنزلت هذه الآیة.

مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَنْ يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ وَلَوْ كَانُوا أُولِي قُرْبَىٰ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمْ أَنَّهُمْ أَصْحَابُ الْجَحِيمِ ﴿١١٣﴾

نه ښايي نبي لره چي مراد ځني رسول الله ﷺ دی او نه هغه کسانو ته چي ايمان يې راوړی وي چي طلب د پخښني به کوي د خدای ﷻ څخه د هغو کسانو لپاره چي مشرکان وي که څه هم ددوی یعنی د مسلمانانو لپاره خاوندان د قرابت وي لکه په مانحن فیه کي ابو طالب وروسته تر دې چي ښکاره سي و مسلمانانو ته چي دغه اولی القربی ددوی صاحبان دي د اور یعني د دوږخ معنی دا چي پر کفر مړه سوه.

**تنبیه**: د مشرکانو ذکر اتفاقي دی په اعتبار د مقام ورنه هیڅ کافر ته که یهودي وي او که نصراني وي د مغفرت دعا نه ده ورته روا چي سړي ته معلومه سي چي پر یهودیت یا نصرانیت مړ سو.

**مسئله**: وژوندي کافر ته دعا د مغفرت روا ده، ولي چي د دعا مقصد داوي چي خدای ﷻ دي توفيق د ايمان ورکړي چي د بخښني سبب يې وګرځي.

فائده: ابو طالب چي له ايمان راوړلو څخه انکار وکړی او مړ سو، نو علیه الصلوة والسلام ډېر غمجن سو. نو دا آیت نازل سو "انک لاتهدي من احببت ولکن الله يهدي من يشآ وهو اعلم بالمهتدين" یعني موضع آخر من القرآن.

**درويش وايي**: چي بعضي محدثانو لکه حاکم رحمه الله په مستدرک کي دا آیت یعني ماکان لنبي آه په شان کي د بي بي آمنه ام رسول الله ﷺ چي علیه الصلوة والسلام ددې طلب د مغفرت کاوه نازل سوی دی، او حاکم رحمه الله په پای کي ويلي دي وهذا حديث صحيح، امام ذهبي رحمه الله د مستدرک په شرح کي ويلي دي چي ددې حديث راوي ايوب بن هاني هغه ابن معين ضعيف سړی بللی دی، او ورته حديث طبراني له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت کړی دی، جلال الدين السيوطي رحمه الله وايي چي ددې حديث روايت تر ابن عباس رضي الله عنهما پوري رسول

اسناد يې ضعيف دی لاتعويل عليه، او امام سيوطي رحمه الله وايي چې ټوله روايت چي په دې باره کې دي لـه علت او ضعف څخه خلاص نـه دي. او حافظ ابن حجر رحمه الله په شرح کې د بخاري وايي قد تأملت كلها معلولة وفي هذه الروايات يعني ان الآية نزلت في استغفار رسول الله ﷺ لابويه علة اخرى وهو انها مخالفة لما في الصحيحين ان هذه الآية يعني ماكان للنبي آه. فنزلت بمكة عقيب موت ابي طالب وما ذكره من ان هذه الآية نزلت في والدي رسول الله ﷺ ففي كلها ان هذا الاستغفار كان بعد الهجرة، حاصل د كلام دادی چې په دې آيت سره دليل پر دې ويل چې والدين د عليه الصلوة والسلام مشركان وه غلط دی او د پر تجاسر دی په شان کې د سيد المرسلين ﷺ ولې هغه محدثان چې د جرح او تعديل بيرغ ددوی په لاس کې دی دغه روايات چې هر چا کړي دي ضعيف او معلول يې بولي.

**درويش وايي:** چې يرحم الله الشيخ الاجل جلال الدين السيوطي رحمه الله ويرضى عنه حيث صنف رسائل في اثبات ايمان ابوی رسول الله ﷺ وجميع آبائه وامهاته الى آدم عليه السلام.

**درويش وايي:** چې وعلى هذا اعتقاد الفقير غفرله.

ع... وللناس فيما يعشقون مذاهب.

وقد روى البخاري رحمه الله بسنده عن النبي ﷺ بعثت من خير قرون بني آدم قرناً فقرناً حتى بعثت من القرن الذي كنت فيه.

**درويش وايي:** چې مظهري رحمه الله وايي فلا يمكن انيكون كافر في سلسلة آبائه ﷺ انتهى. نعم په زمانه کې د فترت د انبيا عليهم السلام يوازې توحيد يعني لا اله الا الله کافي دی د ايمان لپاره لان غير التوحيد موقوف على السماع من صاحب الشرع.

**شان نزول:** ترمذي د علي رضي الله عنه څخه روايت کړی دی چې علي رضي الله عنه وايي چې ما د يو سړي څخه چې مور او پلار يې پر شرک مړه وه او زوی يې طلب د بخښنې د دوی کاوه، ما ورته وويل اتستغفر لابويک وهما مشركان؟ ده راتـه وويل چې ابراهيم عليه السلام ولې طلب د بخښنې د پلار کاوه وهو مشرک! علي رضي الله عنه وايي ما ددې خبرې يوښتنه له عليه الصلوة والسلام څخه وکړه فنزلت هذه الآية.

وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ إِبْرَاهِيمَ لِأَبِيهِ إِلَّا عَن مَّوْعِدَةٍ وَعَدَهَا إِيَّاهُ

او نه ؤ استغفار د ابراهیم ﷺ خپل د پلار یعني آذر لپاره مگر نه په سبب د یو وعدې چي ابراهیم ﷺ هغه وعده کړې وه د پلار سره بقوله سأستغفر لک ربي په دې طمع چي به گوندي ایمان راوړي.

**درویش وایي:** چي دا ترجمه چي ما وکړه ضمیر مرفوع د وعد وه ابراهیم ته راجع دی، او ضمیر منصوب د "ایاه" یې و پلار ته راجع دی، وعلی هذا اکثر المفسرین رحمهم الله ویؤید قرائة من قرء موضع ایاه، آباه بالباء الموحدة، او دلیل پر دې چي وعده د استغفار د پلار سره په داسي کي وه چي دی مشرک ؤ. قوله تعالی قد کانت لکم اسوة حسنة في ابراهیم آه، وفي اخیر الآیة المذکورة الا قول ابراهیم لابیه سأستغفرلک، ولي ددې استثنا معنی داده چي په ابراهیم پسې به دغه قول چي استغفار یې د مشرک پلار لپاره کاوه اقتدا مه کوئ، ولي د ابراهیم ﷺ استغفار په سبب د وعدې ؤ چي ده د خپل پلار سره کړې وه په طمع ددې چي دی به گوندي زما په شفقت چي ورسره لرم مسلمان به سي.

**درویش وایي:** چي زمو‌ږ له ترجمې څخه د بعض مفسرین د قول ضعف ښکاره سو چي وایي ضمیر مرفوع د وعد و پلار ته راجع دی او ضمیر منصوب د "ایاه" وابراهیم ته راجع دی، نو معنی د آیت داسي کېږي چي دعا د ابراهیم نه وه مگر په سبب د وعدې د پلار د ابراهیم سره چي زه ایمان راوړم، نو ابراهیم ﷺ ورته وویل چي ته چي ایمان راوړې سأستغفرلک ربي. د آیت د شان نزول حاصل دادی چي څوک دې استغفار د مور او پلار چي مشرکان وي قیاس پر استغفار د ابراهیم ﷺ نه کوي، ولي چي استغفار د ابراهیم ﷺ خو د وعدې له کبله ؤ، نورو خلکو خو دا وعدې نه دي کړي، نو د مشرک لپاره دي استغفار نه کوي والله اعلم بالصواب والیه المرجع والمآب.

**فائده:** استثنا د "الا عن موعدة" استثنا مفرغ ده یعني مستثنا منه یې محذوف دی ای ماکان استغفار ابراهیم لابیه ناشیاً من شیئ من الاسباب الا عن موعدة آه.

**درویش وایي:** چي د فقیر مذکور تفسیر د دغو تفاسیرو سره سمون لري تفسیر کبیر، تفسیر قرطبي، تفسیر روح المعاني، تفسیر مظهري او تفسیر روح البیان.

فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ

چي څرګند سو ابراهیم عليه السلام ته کفر د پلار یعنې چي پر کفر مړ سو او یا خدای پاک وحي ورته وکړې چي پلار دي ابداً ایمان نه راوړي روح البیان دغه دواړه تفسیرونه راوړي دي لکن ویلي یې دي چي د وحي تفسیر یې انسب د وروسته سره دی ولي عداوت د خدای جل جلاله په وخت کي د مرګ څه معلومېږي. او مظهري هم دواړه تفسیرونه راوړي دي او نور څه یې نه دي ویلي لکن د روح البیان وجه د انسبیت صحیح نه ده ولي لکه ابو طالب چي په وخت کي د زکندن وویل چي زه پر دین د ابو عبد المطلب یم او وفات سو دغسي شاید پلار د ابراهیم عليه السلام دي ورته خبره کړې دي په وخت کي د وفات والی ماذکرنا اشار صاحب روح المعاني ولي هغه هم دواړه قوله راوړي دي او وجه د انسبیت د روح البیان یې هم راوړې ده وروسته یې ویلي دي والامر بین ففي قوله الامر بین اشارة الى ماذکرنا فافهم.

أَنَّهُ عَدُوٌّ لِّلَّهِ تَبَرَّأَ مِنْهُ

چي پلار مي دښمن د خدای جل جلاله دی، نو ځني بېزاره سو او استغفار یې پرېښو. یو قول ضعیف مظهري رحمه الله له سباق څخه د کلام مخالف راوړی دی په قیل سره چي ضعف ته یې اشاره د حیث قال وقیل فلما تبین له في الآخرة انه عدو لله تبرأ منه آه او دا حدیث یې د دغه قول د لیل ګرځولی دی. چي بخاري رحمه الله روایت له ابو هریره رضي الله عنه څخه کړی دی عن النبي صلى الله عليه وسلم چي ده مبارک وویل چي ابراهیم عليه السلام به د خپل پلار آذر سره ملاقي سي په ورځ د قیامت چي د آذر پر مخ به تور والی او ګرځ وي، نو ابراهیم عليه السلام به پلار ته ووایي چي ما ته تا په دنیا کي نه وه ویلي چي زما څخه عصیان مه کوه یعنې زما امر بتوحید الله ومنه؟ پلار به یې ورته ووایي چي ننه ورځ دي عصیان نه کوم. نو ابراهیم عليه السلام به خدای جل جلاله ته داسي وایي "یارب انک وعدني ان لا تخزني یوم یبعثون" یا خدایه تا له ما سره وعده نه وه کړې چي زه به تا نه رسوا کوم په هغه ورځ چي خلګ بعث

کبري يعني وعده دي کړې وه "فاى خزى اخزى من ابى الابعد" نو تر دې لويه رسوايي به څه وي زما تر پلار چي ابعد له ايمان څخه ؤ يعني چي دی دوزخ ته ورولي دا زما رسوايي ده "فيقول الله اني حرمت الجنة على الكافرين" ما حرام گرځولى دی جنت پر کافرانو "ثم يقال يا ابراهيم انظر الى ماتحت رجليك فينظر فاذا هو بذيح متلتخ فيوخذ فيلقى في النار وفي رواية فتبرء منه يومئذ" ابراهيم ﷺ ته به وويل سي چي ته وگوره لاندې تر پښو شي ته. دی چي وگوري يو بيږ وي په مرداريو ککړ نو تر پښو يې ونسي دوزخ ته يې وغورځوي، او په بل روايت کي راغلي دي چي ابراهيم ﷺ به ځني بېزاره سي په دغه ورځ.

إِنَّ إِبْرَٰهِيمَ لَأَوَّٰهٌ حَلِيمٌ ﴿١١٤﴾

**يوه سه:** چي د "اواه" معنى کثير التاوه يعني چي د سړي ډېر زه تنگ سي له يو سبب څخه او يا يې يو ځای ډېر درد کوي نو وايي آه من كذا او داسي ووايي آوه په مد د الف او په تشديد او فتحه د واو او په سکون د ها عند تطويل الصوت.

**درويش وايي:** چي روح المعاني او مظهري ښځي ډېري معناوي د "اواه" ذکر کړي دي (١) کعب الاحبار چي معنا يې کثير الخشية من الله تعالى وکان ابراهيم يکثر ان يقول آه قبل لا ينفع آه يعني يوم القيامة لانه لاينفع كثرة الخشية والتاوه يوم القيامة، سعدي شيرازي ميگويد:

تو پيش از عقوبت در عفو کوب ..... که سودی ندارد فغان زير چوب

(٢) وقيل الاواه هو الذي يتأوه من الذنوب ومآلهما واحد (٣) بغوي رحمه الله وايي چي په حديث شريف کي راغلي دي چي چا پوښتنه د عليه الصلوة والسلام څخه وکړه د "اواه" د معنى عليه الصلوة والسلام ورته وويل الخاشع المتضرع. ولي چي خشوع او تضرع مستلزمه ده کثرة التاوة من الذنوب والنار (٤) عطا وايي چي د "اواه" معنا الراجع عن كل مايكره الله الخائف من الله والنار (٥) ابن مسعود رضي الله عنه وايي چي د "اواه" معنا ډېر دعا کونکی (٦) له ابن جرير رحمه الله څخه نقل دی چي "اواه" مؤمن تواب ته وايي (٧) حسن بصري او قتاده رحمه الله وايي چي "اواه" هغه سړي ته وايي چي ډېر مهربان وي پر بندگانو د خدای ﷻ

(۸)مجاهد رحمه الله وايي چي "اواه" مؤمن موقن ته وايي (۹) عكرمه رحمه الله وايي چي "اواه" متيقن ته وايي د حبشه په لغت كي، وفيه شيئ وله جواب فتامل (۱۰)عقبة بن عامر رحمه الله وايي چي "اواه" كثير الذكر الله تعالى ته وايي (۱۱) له سعيد بن جبير څخه نقل كړل سوى دى چي "اواه" معلم الخير ته وايي (۱۲) نخعي رحمه الله وايي چي "اواه" فقيه ته وايي (۱۳) ابو عبيده وايي چي "اواه" هو المتاوه شفقاً المتضرع يقيناً ولزوماً للطاعة. زجاج وايي چي قول د ابو عبيده ټولو معناوو ته چي ذكر سوي دي شامل دى والله اعلم.

**پوښتنه:** تفسير د رسول الله ﷺ د "آواه" چي په دريم نمبر كي تېر سو، نو د هغه عدول چاته څرنګه روا دی؟

**ځواب:** په روح المعاني كي وايي نعم ماذهب اليه الجماعة غير مناف لما قاله رسول الله ﷺ انتهى.

**درويش وايي:** چي عدم منافات خو يې مسلم دی لكن د عدول وجه يې څه ده؟ فالاولى ان يقال ان بعضهم لعله لم يبلغهم تفسير النبي ﷺ ولعل بعضهم فسر باللازم من قول رسول الله ﷺ توضيحاً او تقليلاً واختصاراً فتامل.

**پوښتنه:** د "اواه" لفظ په دغو مذكوره ديارلس معانيو كي مشترك لفظي دی او كه په بعضو كي حقيقت او په بعضو كي مجاز دی؟

**ځواب:** علماء رحمهم الله وايي يو لفظ چي مشكوك سي په معاني متعدده وو كي چي دا لفظ په دې معناوو كي مشترك لفظي دی او كه په بعضو كي حقيقت دی او په بعضو كي مجاز دی. نو ظن غالب دادی چي پر حقيقت او مجاز دي حمل سي. ولي چي حقيقت او مجاز په عربي ژبه كي ډېر دی تر مشترك لفظي وهذا تفصيل قولهم ان المظنون الحاق المشكوك بالاعم الاغلب انتهى ومع قطع النظر عن القانون المذكور فالاشتراك للفظ واحد في معاني (۱۳) نادر جداً حتى لايكاد يوجد في لفظ واحد، واما الحقيقة والمجاز فله (۲۵) طرق كما بين في كتب الاصول فالحمل عليها اليق و اولى والعلم عند الله.

{حَلِيم} اى صاحب د حلم دی يعني تجاوز او عفو كوي هغه چا ته چي دی به

یې ازار کړی وي ځکه پلار دده چې ده ته یې پېش رو وکړی لئن لم تنته لارجمنک" که ته منع نه سې له تبلیغ څخه د توحید زه به تا په ډبرو سنگسار کړم، ابراهیم ﷺ ورته وویل سلام علیک سأستغفرلک ربي. ابن عباس ﷺ وایي چې "حلیم" سردار ته وایي. او په قاموس کي وایي چې حِلم بکسر الحا اناءت او عقل ته وایي او روح البیان وایي صبور علی الاذیة ته وایي.

**درویش وایي:** چي دا ټولي معناوي سره نژدې دي ومآل الکل واحد کما لایخفی.

**پوه سه:** چي ابن ابي حاتم له ابن عباس ﷺ څخه روایت کړی دی چي یو د حلم څخه د ابراهیم ﷺ داؤ چي چا په ازار کړی ده به ورته وویل هداک الله تعالی کذا في روح المعاني، وهذا المعنی ایضاً قریب الی مامر فافهم.

وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِلَّ قَوْمًا بَعْدَ اِذْ هَدٰىهُمْ حَتّٰى يُبَيِّنَ لَهُمْ مَا يَتَّقُوْنَ

نه دی خدای پاک چي حکم د ضلال دي وکړي پر یو قوم او ضاله دي وبولي، وروسته تر دې چي خدای ﷻ دوی ته هدایت یعني د اسلام بیان کړی وي تر هغه وخته پوري چي خدای ﷻ به بیا نوي ودوی ته هغه عمل چي له دې څخه باید ځان وساتئ او دوی ځان ونه ساتي، نو پر دوی حکم د ضلال خدای پاک کوي.

مفسرین ﷭ ددې آیت په شان نزول کي بعض وایي لکه مقاتل او کلبي چي یو قوم له خارجه څخه د مدینې و علیه الصلوة والسلام ته راغله او ایمان یې راوړی په هغه وخت کي شراب نه وه حرام سوي او قبله د بیت المقدس څخه کعبې ته نه وه گرځېدلې، نو دوی بیرته خپلو بانډو ته ولاړه تر دې وروسته خمر حرام سوه او قبله بدله سوه او دوی په خپل کلیو کي چي وه لمونځ یې بیت المقدس ته کاوه او شراب یې څښله بل وخت چي بیا دوی راغله هم شراب حرام سوي وه او هم قبله اوښتې وه. نو دوی و علیه الصلوة والسلام ته وویل چي دا څو ورځي خو تاسي پر یوه دین واست یعني لمونځونه به مو کعبې ته کوله او خمر مو حرام گڼل او موږ پر بل دین ؤ یعني لمونځ به مو بیت المقدس ته کاوه او شراب به مو څښل فنحن اذاً ضلال فانزل الآیة یعني تاسي ته خو ناسخ نه ؤ معلوم، نو ځکه مو په منسوخ عمل کاوه نو په دې سره تاسي ضلال نه یاست بلکي معذورین یاست والمعذور لایسمی ضالاً،

او محمود آلوسي رحمه الله وايي چي په دې آيت سره تسلي وهغه کسانو ته ده چي استغفار به يې مشرکينو مړو ته کاوه قبل نزول الوحي في المنع عن دعا الاستغفار للمشرکين ومعنى الآية على هذا التقدير انه ليس من لفطه تعالى ان يذم المؤمنين ويؤاخذهم في الاستغفار للمشرکين قبل ان يبين لهم انه غير جائز بلکې خدای ﷻ ذم او مؤاخذه د هغه چا کوي چي استغفار للمشرکين وروسته تر نهي هم کوي، او حسن بصري رحمه الله وايي چي دا آيت په شان کې د هغو مسلمانان نازل سوی دی چي دوی به دمخه تر نزول د بعضي فرائضو د دين مړه سوي وه، نو اقرباؤ د هغو مړو و عليه الصلوة والسلام ته وويل چي زموږ قريبان خو تر نزول د دغو فرائضو مړه سوي دي فما هو منزلتهم عندالله وکيف حالهم.

له دې آيت څخه دا حکم هم معلوم سو چي يو سړی چي ناخبره د بعضو مأموراتو څخه چي موقوف پر سمع وي لکه لمونځ او روژه وغير ذالک کما في من آمن بالله ورسوله ويسکن في شواهق الجبال ولم يعلم بالفرائض فهو غير ماخوذبها کذا في روح البيان وروح المعاني.

**درويش وايي:** چي هغه وخت چي په شواهق الجبال کې اوسيږي او علم پر صانع الخالق للعالم نه لري هغه معذور نه دی لعدم توقف هذه العقيدة على السمع بل العقل کافر في ان يتدبر في المخلوقات ويعلم به الصانع ولذا قيل:

گر انبيا هم نمادی نی شرع بودی درجهان
واجب شدی بر مؤمنان ايمان بخالق مقتدر

برگ درختان سبز درنظرهوشيار ..... هر ورقی دفتريست معرفت کردگار

که څوک په دغو دوو بيتو قناعت نه کوي. نو مسلم الثبوت د محب الله البهاري رحمه الله في علم الاصول دي مطالعه کړي.

إِنَّ اللَّهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿١١٥﴾

په تحقيق خدای ﷻ خبر دی په حال د من فعل جهلاً ومن فعل تمرداً او داغه رنگه خبر دی په حال د من يستحق الاضلال ومن لا يستحقه بل بکل شيئ من مخلوقه.

إِنَّ اللَّهَ لَهُ مُلْكُ السَّمَٰوَٰتِ وَالْأَرْضِ يُحْيِ وَيُمِيتُ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ اللَّهِ مِن وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ ﴿١١٦﴾

په تحقیق خدای ﷻ لره ده بادشاهي او تصرف د اسمانو او د مځکې ژوک ژوندي کوي یعني د کتم العدم څخه یې میدان ته د وجود راولي او ژوک وژني او نسته تاسي لره ایها الناس ماسوىٰ له خدای ﷻ څخه. یو دوست چې د خدای له عذابه مو خلاص کړي یعني ان شاٗ تعذیبکم. او نه کومکي چې ضرر در څخه دفع کړي. نتیجه یې داده چې تاسي لازماً دوستي له مشرکانو سره ونه کړئ او یا استغفار ددوی لپاره ونه غواړئ که څه هم دوی ستاسي اولی القربی وي.

واحد اندر ملک و اورا یارنی ........ بندگانش راجزاً وسالارنی

نیست خلقش رادگرکس مالکی ........ شرکتش دعوه کند هالکی

**پوه سه:** چې د ولي او نصیر تر منځ عموم او خصوص من وجه دی یعني ګاهي به د سړي قریب ورور یا زوی یا بل نژدې قریب وي چې بنه قوي سړی وي او هغه سړی چې د چاسره عداوت وکړي نو هغه قریب به یې ځني خلاص کړي، نو دا هم ولي دی او هم نصیر. او ګاهي د یو سړي چې د یو چا سره یې جنګ سي یو سپین ږیری سال خورده پلار مثلاً لري ولي خو یې دی لکن کومک نه سي وسره کولای. او ګاهي د یو چا سره جنګ کوي یو بېګانه سړی یې ځني خلاص کړي نو دا بېګانه سړی نصیر دی او ولي نه دی.

لَقَدْ تَابَ اللَّهُ عَلَى النَّبِيِّ

ددې آیت ترجمه ابن عباس ﵄ داسې کړې ده چې عفوه وکړه خدای ﷻ ونبي ته چې ده اجازه د تخلف ومنافقینو ته ورکړه د تبوک په غزاٗ کې.

**سوال:** دا اجزاٗ خو یوازې علیه الصلوة والسلام ورکړې وه. نو مهاجرین او انصار یې ولې په توبه کې وسره ملګري کړه؟

**ځواب:** چونکه په اجازه د تخلف چې علیه الصلوة والسلام منافقینو ته ورکړه مهاجرین او انصار ﷺ هم راضي وه فاشرکهم في التوبة وهذا من قبیل

قولهم بنوا فلان قتلوا مع ان القاتل واحد منهم.

**فائده:** چي دی فعل ته علیه الصلوة والسلام زلت وایي من قبیل حسنات الابرار سیئات المقربین لان الانبیاء علیهم السلام معصومون من الکبائر والصغائر عندنا.

**سوال:** د ذلت معنا څه ده؟

**ځواب:** د ذلت معنا دا نه ده چي له حق څخه وباطل ته ولاړ ی بلکې معنا یې داده چي له افضل کار څخه وفاضل ته ولاړ ی.

**سوال:** چي د ذلت معنی داده، نو توبې ته څه حاجت دی؟

درویش وایي: چي په قندهار کي یو قومي مقتدر عالم ؤ چي هغه د جمعې د ورځي په عمومي محفل د وعظ داویلي وه لکه فرقه حشویه چي وایي چي انبیاء علیهم السلام له کبائرو څخه معصوم نه دي فضلاً عن الصغائر، او دلیل یې داویلی ؤ چي آدم علیه السلام چي خدای جل جلاله نهي کړی په جنت کي ولاتقربا هذه الشجرة فتکونا من الظالمین" او آدم علیه السلام له هغې درختي څخه خورک وکړی او دغه رنګه موسی علیه السلام قبطي مړ کړی او دغه رنګه سید البشر ﷺ ومنافقینو ته د تخلف اجازه چي په شان کي یې دا آیت نازل سو لقد تاب الله علی النبي" ده ویل توبه خو فرع د معصیت ده وغیره وغیره دلائل یې و عوامو ته وویل. د هغې زماني برجسته او مدرسین علماء د قندهار د ښار له ده څخه سخت مخالف سوه حتی چي قضیه د مرافعې تر محکمې پوري ورورسېدله او علماء خپل دلائل د عصمت د انبیاء علیهم السلام وه قاضي ته د محکمه مرافعه پېش کړه او قاضي خطیب مذکور ملامت کړی او ده وویل چي زه خطاوتلی وم، خبره خو خلاصه سوه لکن یوه یا دوې جمعې وروسته بیا خطیب مذکور خپل خبره تکرار کړه، نو علماء د قندهار وه درویش ته وویل چي ته یوه رساله تصنیف کړه موږ به یې تړوله تقریظ کړو او چاپ به یې کړو په ټولو خلګو به یې تقسیم کړو او دا فتنه به دفع سي، نو درویش د علماؤ ودې غوښتني ته لبیک ووایه او په رساله مې شروع وکړه او نوم یې دا ؤ "کشف العطاء عن عصمة الانبیاء" چي په رساله کي دده د دلائلو جوابونه او د احادیثو او د فقهي او د عقائدو د کتابو څخه قوي قوي

دلائل په توفيق د خداى ﷻ سره جمع کړه او پر هغه رساله د تولو علماؤ د قندهار امضاً او تقریظ موجود ؤ حتی د حضراتو د هرات د ښار. نو هغه رساله پر د ډیرو اوراقو مشتمل چاپ سوه او تقسیم سوه چي اوس هم په بعضي کتابخانو کي د کوټي د ښار دستیاب کیږي ومن الله التوفیق.

**ځواب**: د انبیاً علیهم السلام چونکه قدر او رتبه په نیز د خدای ﷻ لوړه ده ځکه دوی ته عتاب په ذلت سره هم ورکول کیږي. دلیل د عصمت د انبیاً له کبائرو او صغائرو څخه په مختصره توگه خو دادی چي د گنهو په سبب د خلگو له زړو څخه هشمت او دبدبه د انبیاً علیهم السلام وځي.

## وَالْمُهٰجِرِيْنَ وَالْاَنْصَارِ

او مهاجرین او انصار. دا عطف دی علی النبي.

**یوه سه**: چي مهاجرین هغه کسان بولي چي د مکي د کفارو د ډېر ازار له سببه هجرت ته مجبوره سوه په اجازه د علیه الصلوة والسلام ځني حبشي ته ولاړل او ځني مدیني ته ولاړل حتی اخیري مهاجر یې سید المرسلین ﷺ او دده همراه په غار کي د جبل الثور ابوبکر الصدیق رضی الله عنه چي مدینې ته یې هجرت وکړی او د حبشي مهاجرین رضی الله عنهم چي خبر سول هغه هم په مشرۍ د جعفر بن ابي طالب رضی الله عنه مدینې ته راغله. او انصار یا جمع د نصیر ده لکه شریف او اشراف او یا جمع د ناصر ده کصاحب او اصحاب. دا ډله عبارت ده د اوس او خزرج د قبیلې د هغو کسانو چي په مدینه کي یې ځای ورکړی ومهاجرینو ته او خپلي مالي مرستي یې په فوق العادة ډول ورسره کولې چي د تاریخ اسلامي پاڼې په منوري دي. نو د انصار نوم اسلامي نوم دی حتی چي په صحیح حدیث نبوي ﷺ کي راغلي دي چي "حب الانصار آية الايمان وآية المؤمن حب الانصار وآية النفاق بغض الانصار" كذا في فتح القريب.

**مسئله**: مهاجرین افضل دي تر انصارو عقلاً ونقلاً. اما عقلاً فلان المهاجرين تركوا الوطن المالوف مكة وقد قيل حب الوطن من الايمان وآذوا من كفار مكة اذى كثيراً كما يشهد به التواريخ. واما نقلاً فقوله عليه الصلوة

والسلام لولا الهجرة لكنت امرأ من الانصار. ابن ملک رحمه الله وايي چي مراد له دې حديث څخه اکرام د انصارو دی بانه لا رتبة بعد الهجرة اعلى من نصرة الدين وايضاً قال الله تعالى والسابقون الاولون من المهاجرين والانصار. حيث قدم المهاجرين في الذكر، او ددې فضيلت له کبله خلفاً اربعه رضي الله عنهم وروسته تر عليه الصلوة والسلام تولو مهاجرين وه.

**فائده:** له دې آيت څخه يعني لقد تاب الله الآية بايد مسلمانان لوړ مقام د توبې ورفهموي. ولې چي شروع د توبې يې د سيد المعصومين ﷺ څخه وکړه وروسته يې سادات د تولو مؤمنانو ذکر کړه يعني المهاجرين والانصار رضي الله عنهم اجمعين ثم وثم.

## الَّذِينَ اتَّبَعُوهُ فِي سَاعَةِ الْعُسْرَةِ

نعت للمهاجرين والانصار يعني هغه مهاجرين او انصار چي دوی متابعت وکړی د عليه الصلوة والسلام چي دوی طلب کړه او وه يې هڅول وغزا ته د تبوک يعني نه چا له دوی څخه عذر وکړی او نه يې تخلف وکړی لکه منافقان په وخت کي د سختی. بغوي رحمه الله وايي چي غزا ته د تبوک غزوة العسرة وايي او لښکر ته يې جيش العسرة وايي لان تلک الغزوة کانت في شدة الحر وبعد المسافة وفي مقابلة جيش عظيم من الروم او په عين حال کي د سپرتيا دواب ېږخي لږ وه چي لسو کسانو ته په يو اوښ رسېدی او په نوبت به پر سپرېدل. حسن بصري رحمه الله وايي چي ددوی خوراک خورما وه چي هغه به هم د دېرو کلو وه او اوريشي به وې چي هغه به هم توري سوي وې، ځيني کسان داسي هم وه چي خورما به ورڅخه وه چي وږی به سو خورما به يې خولې ته واچول يو ګړی به يې په خوله کي سره واړول راواړول چي په خوله کي به يې خوند پيدا سو اوبه به يې پسې وڅيښلې خورما به يې بل ملګري ته ورکړه هغه به هم په خوله کي سره واړول اوبه به يې پر وڅيښلې وهکذا الى آخر وآخر حتى چي د خورما منډکه به پاته سول، نو پر دغه حال د عليه الصلوة والسلام سره روان وه د تبوک پر لوري په صدق او اخلاص او يقين سره.

**درويش وايي:** چي مظهري رحمه الله وايي چي احمد او ابن خزيمه او ابن حبان او حاكم لـه عمر بـن الخطاب رضي الله عنه روايت كړى دى چي مـوږ د عليـه الصلوة والسلام سره د دوبي په سخته گرمی. كي ووتلو چي يو ځاى مو واړول او به نه وي او داسي سخت تږي سوو چي موږ به ويل چي اوس به مو مغزى مات سي له تندي څخه حتى تر دې اندازې مو تنده ورسېدله چي يو سړي به اوښ حلال كړى نو په نس كي هغه خوشايي چي به وه وبه يي نښتېځل او اوبه به يې وڅېښلې او پاته اوبه به يې په نس پوري ومښلې. نو په داسي حال كي ابوبكر رضي الله عنه وويل يا رسول الله ﷺ بېشكه چي الله تعالى وتاته وعده دركړې ده په دعـا كي د خير فادع الله يعني في طلب الماء. عليه الصلوة والسلام راته وويل اتحب ذالک "ستا دغسي خوښـه ده يعنـي چـي د ابـو لپـاره خداى ﷻ تـه غواسـت وكـړم" قـال ابوبكر رضي الله عنه نعم. نو عليه الصلوة والسلام خپل دوه لاسونه مباركان پورته كړه د اسمان پر لور. ده مبارک لا لاسونه پر مخ نه وه راتېر كړي چي پر اسمان وريځ پيدا سوه او باران شروع سو. نو خلگو ژر ژر خپل كوټوريان او مشكولاوي په ډكي كړې بيا موږ له هغه ځاى څخه روان سو. او موږ چي د لښكر لـه ځايه تېر سـوو پـر مځكـه مـو د بـاران هـيڅ اثـر ونـه ليـدى. او ابـن ابـي حـاتم رحمه الله د حرزة الانصاري رضي الله عنه څخه روايت كړى دى چي يو يا دوه منزله وروسته بيا اوبه تمامي سوې فشكوا ذالک الی رسول الله ﷺ. نو عليـه الصلوة والسـلام دوه ركعتـه نفـل وكړه او بيا يې دعا وكړه بيا وريځ پيدا سوه او ډېر باران وورېدى او خلگو خپل د اوبو شيان ډک كړه. نو د انصارو يو سړي وبل سړي ته وويـل چي هغه متهم بالنفاق ؤ ويحکِ قد ترى مادعى رسول الله ﷺ فامطر الله علينا. د انصاري رضي الله عنه غرض دا ؤ چي د دغسي معجزو سره سره ته نفاق كوې هغه منافق ورته وويـل مطرنا بنوء كذا (پر موږ د فلاني ستورې په بركت باران وسو) نو خداى ﷻ هغه بل ځاى مذكور آيت نـازل كـړى "ويجعلـون رزقكـم ان كنـتم تكـذبون" تاسي گرځوئ شكر د رزق د خداى ﷻ چي تاسي تكـذيب پـه خداى ﷻ كوئ يعني نسبت ددې رزق وستورو ته كوئ.

مِنۢ بَعۡدِ مَا كَادَ يَزِيغُ قُلُوبُ فَرِيقٖ مِّنۡهُمۡ

**پوه سه**: چي جمله د "ماکاد یزیغ آه" مضاف الیه ده بعد ده یعني وروسته تر تناهي او پای ته رسېدو د سختنۍ د سفر د تبوک، والمعنی وروسته تر دې چي کاره سي زړونه د یوې ډلې له دوی څخه یعني له غزاتو څخه د تبوک.

**درویش وایي**: چي مظهري رحمه الله وایي چي مراد له زیغ څخه میل دی وتخلف او انصراف ته د علیه الصلوة والسلام له دې سفر څخه لغایة الشدة کمامر عنقریب ولم یرد المیل عن دین الاسلام آه، او روح المعاني دا تفسیر خو اول راوړی دی، وروسته یې ویلي دي هو اشراف بعضهم الی ان یمیلوا عن الثبات علی الایمان" یعني قریب وه چي بعض کسان دي میل وکړي له ثبات څخه پر ایمان.

**درویش وایي**: چي دا احتمال بعید دی. ولي چي دغه زائغین سُچه مسلمانان وه کما سیئاتي. خو بیا هم روح المعاني دا پر صرف وسوسه حمل کړی دی لکنه بعید ایضاً، او بله توجیه یې دا کړې ده چي دغه کسان حدیث العهد بالاسلام او ضعیف الایمان وه، دا توجیه هم د قبول وړ نه ده لکه چي ژر دی چي ددغو کسانو د حال له بیانو څخه به ظاهره سي.

**پوه سه**: چي ابن اسحاق او محمد بن عمر وایي چي دا یو څو کسان وه چي تخلف یې وکړی سره له نیته د الحاق په نبي کریم ﷺ پسي بېله شکه او ارتیاب په دین کي چي په هغو کي یو کعب بن مالک رضي الله عنه ؤ او بل هلال بن امیه رضي الله عنه ؤ او بل مرارة بن الربیع رضي الله عنه ؤ چي ددوی درو بیان به د وروستي آیت په تفسیر کي راسي یعني وعلی الثلاثة الآیة، او بل ابو خیثمة رضي الله عنه ؤ او بل ابو ذر الغفاري رضي الله عنه ؤ او دا ګره صادق او مخلص مسلمانان وه هیڅ تهمت د نفاق په دوی کي نه ؤ. ابن اسحاق رحمه الله له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي رسول الله ﷺ د تبوک پر خوا سره له فوجه د تبوک پر خوا رهي سو، او د مدینې تر حدودو تېر سوه، نو د نوموړو کسانو څخه بعض همراهانو د علیه الصلوة والسلام به ده ته وویل یا رسول الله تخلف فلان، علیه الصلوة والسلام به ورته وویل پرېږدئ یې که په هغه کي خیر ؤ نو به په موږ او تاسي پورې ملحق سي وان یک غیر

ذالک فقد اری حکم الله فیه. حتی چي یو چا ورته وویل یا رسول الله تخلف ابو ذر الغفاري او په حقیقت کي د ابو ذر غفاري ﷺ اوښ له کاره لوېدلی ؤ او دی یې معطله کړی، علیه الصلوة والسلام د ابو ذر ﷺ په باره کي هم هغه مخکنی خبره ورته وکړه، د ابو ذر ﷺ اوښ چي ډېر ډنگر ؤ یو څو ورځي خو یې واښه ورواچول چي له اوښه نا امیده سو نو یې بستره په شا واخستل اوښ یې هم هلته پرېښو او په نصف النهار کي یې په علیه الصلوة والسلام پسي ځان ورساوه. مسلمانانو علیه الصلوة والسلام ته وویل چي هغه دی یو سړی راروان دی پلندړه یې په شا ده، علیه الصلوة والسلام وویل کن ابا ذر. نو ابو ذر ﷺ چي خلگو ته رانژدې سو، نو خلگو وویل یا رسول الله هو والله ابو ذر ﷺ علیه الصلوة والسلام وویل رحم الله اباذر یمشي وحده ویموت وحده ویبعث وحده. ابوذر ﷺ چي راغلی او خپل عذر یې علیه الصلوة والسلام ته بیان کړی. نو علیه الصلوة والسلام ورته وویل غفر الله لک یا اباذر بکل خطوة ذنباً الی ان بلغتني. د ابن اسحاق رحمه الله په روایت داسي دی چي څو ورځي د علیه الصلوة والسلام د سفر چي تېري سوې. د ابو خیثمه ﷺ دوې ماینې وې چي هري یوې دده په باغ کي د څوزانو وغیره کوډل جوړه کړې وه او هري یوې خپل کوډل ښه اوباشي کړې او یخه کړې وه او د ابو خیثمه لپاره یې یو څه طعام هم پوخ کړی ؤ. دی چي باغ ته ورغلی او خپلو ماینو ته یې وکتل او هغه طعام ته یې هم وکتل د کوډلي په دروازه کي ودرېدی فقال سبحان الله چي رسول الله ﷺ چي خدای ﷻ دده ته بخښلي ماتقدم من ذنبه وما تأخر چي دا دده اشاره و یوه آیت ته وه هغه په گرمۍ کي او په گرمه هوا کي سلاح په غاړه روان دی او ابو خیثمه په ظل باردکي او طعام مهیا ورته پروت دی د ښائسته ماینو سره به په خپل باغ کي مقیم وي "ما هذا بالانصاف" دا خو انصاف نه دی، نو ماینو ته یې وویل والله لا ادخل عریش واحدة منکما حتی الحق بالرسول الله ﷺ. ماینو ته یې وویل ما ته نفقه د سفر را برابره کړئ ماینو یې دده د امر سره موافق کار وکړی، ابو خیثمه ﷺ ورغلی اوښه یې ځین کړه چي ده په دغه اوښه له څاه څخه اوبه راکښلي او باغ یې

په اوباوه خپله سلاح يې واخستل له کوره ووتی په طلب کي د رسول الله ﷺ . نو ابو خيثمه رضي الله عنه هغه وخت عليه الصلوة والسلام ته ورسيدی چي ده مبارک سره له فوجه په تبوک کي اړولي وه او ابو خيثمه په لاره کي د عمير بن وهب الجهني سره ملګری سوی ؤ چي تبوک ته ورنژدې سو ابو خيثمه و عمير ته وويل چي ما يوه ګناه کړې ده يعني التخلف عن رسول الله ﷺ . نو ته تر ما وروسته سه چي زه يواځي و عليه الصلوة والسلام ته ورسم، عمير بن وهب رضي الله عنه هم وروسته سو حتی چي ابو خيثمه رضي الله عنه بنه لښکر ته ورنژدې سو خلګو و عليه الصلوة والسلام ته وويل هذا راکب مقبل يعني دادی يو سړی سپور راروان دی. عليه الصلوة والسلام وويل کن ابا خيثمة بنه چي ورنژدې سو خلګو وپېژندی فقالوا والله هو ابو خيثمة رضي الله عنه ، نو عليه الصلوة والسلام وويل اولی لک يا ابا خيثمة (دا کلمه د تهديد ده والمعنی دن الی الهلاک) نو ابو خيثمه رضي الله عنه خپل ټول حال و عليه الصلوة والسلام ته ووايه فقال له رسول الله ﷺ خيراً ودعا له بخير.

ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ ۚ إِنَّهُ بِهِمْ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿١١٧﴾

وروسته بيا توبه قبوله کړه خدای ﷻ ددوی ولي خدای ﷻ بخښونکی د ګناه دی او مهربان دی.

**يوه سه**: که ضمير د عليهم راجع وي وه عليه الصلوة والسلام او مهاجرينو او انصارو ﷺ ته، نو دا جمله تاکيد دی د اول آيت لقد تاب الله آه، د تاکيد عطف په ثم سره روا دی په نيز د نحاتو که څه هم اهل معاني په دې مسئله کي مخالف دی او په دې آيت کي قبول د توبې د دوی چي اجازه يې د تخلف ومنافقانو ته ورکړه په سبب د سختيو د سفر په تبوک کي چي دوی هغه سختی برداشت کړې او که چيري ضمير د عليهم راجع سي وفريق ته في قوله تعالی بعد ماکاد يزيغ الآية نو تکرار د اول آيت نه دی بلکي د فريق قصد کول د تخلف عن النبي ﷺ بدون اجازته هم ګناه ده لکن چي دوی تخلف ونه کړی او پر خپل قصد پښېمانه سول او توبه يې خدای ﷻ قبوله کړه په سبب د شدائدو د سفر.

**يوه سه**: چي د رؤف او رحيم معنی يوه ده ففيه تاکيد علی قبول التوبة. او

بعض مفسرين رحمهم الله وايي چي رأفة عبارت دی عن ازالة الضرر . والرحمة عبارة عن ايصال النفع.

**فائده:** د خدای ﷻ په لاره کي شدائد برداشتول د گنهو د بخښني سبب دی، حافظ شيرازي رحمه الله وايي:

مکن زغصه شکايت که درطريق طلب
براحتی نه رسيد آنکه زحمتی نه کشيد

تجديد النظر علی ذالک السفر.

**درويش وايي:** چي د تبوک د غزا سفر پر ډېرو معجزو د عليه الصلوة والسلام مشتمل دی (۱) يو باران چي عليه الصلوة والسلام د اسمان وخواته لاسونه پورته کړه او پر لښکر باران وورېدی بقدر مايکفی (۲) بل وار باران چي عليه الصلوة والسلام دوه رکعته نفل وکړه بيا يې د باران دعا وکړه (۳) کن اباذر کمامر (۴) کن ابو خيثمة (۵) د تبوک لار چونکه ډېره طويل وه، په يوه روايت کي راغلي دي چي يوه ورځ چي خلگ تږي سوه او عليه الصلوة والسلام ته يې شکايت وکړی عليه الصلوة والسلام وويل اين صاحب الميضئة. د مشکولا خاوند چېري دی، هغه ورته وويل زه يم يا رسول الله ﷺ عليه الصلوة والسلام ورته وويل ورسه مشکولا دي راوړه! هغه ورغلی رايې وړه لږ اوبه پکښې وې هغه اوبه يې په يوه شي کي واچولې، نو عليه الصلوة والسلام د مبارک لاس گوتې خلاصي پر کښېښولې، راوي وايي چي ماوليدی چي د عليه الصلوة والسلام د گوتو تر منځ د صافو اوبو چينې راووتلې، نو خلگ راغله خپل ژيان (گوډي) مشکولاوي او لوښي يې تولهډک کړه او د اوبو تسلسل جاري ؤ چي خلگو آسان او اوښان هم اوبه کړه او د تبوک په عسکرو کي دوولس زره آسان وه او پينځه ويشت زره اوښان وه او دېرش زره کسه وه او په بعضو رواياتو کي اوويا زره کسه وه، قال السلطان سليم الاول:

کوثر نمی زچشمه احسان رحمتش .... آب حيات قطره از جام مصطفی است

**درويش وايي:** چي د عليه الصلوة والسلام د گوتو مبارکو څخه د اوبو راوتل په متعددو وارو سره پېښې سوي دي روي بعض تلک الواقعة البخاري وغيره،

(٦) روایت دی چي د تبوک په غزا کي چي دمخه یې نمونه بیان سوه پر خلګو ډېري لوږي غلبه وکړه چي بعضو خلګو و علیه الصلوة والسلام ته وویل چي موږ ته اجازه وکړه چي بعض اوښان حلال کړو علیه الصلوة والسلام ورته وویل چي ستاسي خوښه ده، عمر رضي الله عنه چي خبر سو خلګ یې د اوښانو د ذبح او نحر څخه منع کړه او علیه الصلوة والسلام ته ورغلی او ورته وه یې ویل چي که چېري د اوښانو د حلالېدلو اجازه ورکړل سي، نو اخیر به د سپرتیا اوښان ختم سي سفر به پر څه شي کوو، بلکي خلګ امر کړه چي د چا سره خوارکي مواد موجود وي رادي وړي، او تاسي خدای ﷻ ته د برکت خواست وکړئ شاید خدای پاک به په موجوده مواد ازراقیه کي برکت پیدا کړي علیه الصلوة والسلام ورته وویل (نعم) د څرمنې سترخوان یې آوار کړی او خلګ یې امر کړه چي د چا سره چي خوراکي شی وي هغه دي راوړي، یو سړي به یوه لپه جوار پر سترخوان واچول بل سړي به یوه لپه خورما راوړل بل سړي یو څه غنم راوړه وهکذا حتی چي پر سترخوان ډېر لږ شی سره جمع سوه، نو علیه الصلوة والسلام خدای ﷻ ته د برکت خواست وکړی وقال خذوا في اوعیتکم (واخلئ دغه شیان په خپلو بوجیو کي) نو خلګو دا شیان په خپلو بوجیو کي واخستل حتی چي ټولو عسکرو ته ووېشل سو چي تعداد یې موږ دمخه بیان کړی یوه بوجی نه سوه پاته چي ډکه نه سي، نو خلګو خوراک څني وکړی او څانونه یې ښه ماړه کړه او ډېر مواد فاضله پاته سوه، فقال رسول الله ﷺ اشهد ان لا اله الا الله واني رسول الله لا یلقي بها (یعني په دغه کلمه سره یو بنده چي شک نه پکښي لري) الا وقاه النار (خدای ﷻ به یې د دوږخ له اوره وساتي) اللهم انا نشهد بتلک الکلمة غیر شاکین فوقانا یاالله من نار الجحیم برحمتک یا ارحم الراحمین تصدیقاً لنبیک سید المرسلین صلوات الله وتسلیماته علیه وعلی آله وصحبه اجمعین آمین یارب العالمین.

وَّعَلَى الثَّلٰثَةِ الَّذِيْنَ خُلِّفُوْاۭ

عطف دی علی "قد تاب الله علی النبي" یعني علی لفظ علی النبي في الآیة المتلوة والمعنی قبوله سوه توبه د هغو درو کسانو.

**درویش وایي:** چي روح المعاني او روح البیان اول تفسیر د خلفوا ذکر کړی دی چي توبه ددغو درو کسانو د تاخیر سره تر توبې د ابي لبابه بن عبد المنذر واصحابه ﷺ. یعني علیه الصلوة والسلام ددې درو کسانو په باره کي هیڅ حکم د قبول یا رد یې ونه کړی تر هغو چي دددوی په باره کي قرآن نه و نازل سوی. او مظهري رحمه الله اول تفسیر دا کړی دی ای تخلفوا عن غزوة تبوک.

**درویش وایي:** چي دا تفسیر بالعام دی ولا یناسب حال هؤلاء الثلثة وروسته مظهري بیا تفسیر لکه نور مفسرینو په لفظ د قیل راوړی دی ولا ینبغي له ذالک دا درې کسان په اتفاق د مفسرینو رحمهم الله دغه دي کعب بن مالک الشاعر، مرارة بن الربیع العنبري او هلال بن امیة الانصاري ﷺ، مظهري رحمه الله وایي چي دا درې سره له انصارو څخه وه.

**لطیفه:** دا درې نفره په لفظ کي د "مکه" سره جمع او په اخیر کي د نومانو د پلار ددوی (عکه) سره جمع کېږي فافهم.

**پوه سه:** چي بخاري، مسلم او نورو محدثینو رحمهم الله له کعب بن مالک ﷺ څخه روایت کړی دی وایي چي په هیڅ غزا کي له علیه الصلوة والسلام څخه نه یم پاته سوی غیر له تبوک څخه نعم په غزا کي د بدر هم نه یم شامل سوی، لکن د بدر د غزا په تخلف کي هیڅ چاته خدای پاک عقاب نه دی ورکړی، سبب د نه عقاب یې دادی چي علیه الصلوة والسلام سره د درو سوو او دیارلس (۳۱۳) کسانو د ابو سفیان د قافلې په تعقیب پسي وتلي وه چي د قافلې فقط څلوېښت کسان وه، لکن پر قافلې نه سوه بریالي اتفاقاً دغه درې سوه دیارلس په بدر کي د قریشو د لوی لښکر په مشرۍ د ابوجهل چي تعداد یې تخمیناً زر کسه وه مخامخ سوه، نو ځکه علیه الصلوة والسلام پر تخلف د بدر هیڅ منت نه وکړی او نه یې په باره کي خدای ﷻ په قرآن کي کوم عقاب نازل کړی، کعب بن مالک وایي چي زه په لیلة العقبة (یعني لیلة العقبة الثالثة) سره د رسول الله ﷺ حاضر سوی یم چي موږ په دغه شپه د علیه الصلوة والسلام سره میثاق وکړی پر اسلام (یعني پر حمایت او تبلیغ د اسلام) کعب بن مالک ﷺ وایي چي زه خوښه نه لرم

چي په عوض کي د ليلة العقبة ماته خداى ﷻ د بدر غزا نصيب کړي دی وايي چي که څه هم بدر په خلگو کي ډېر شهرت لري (ددې سبب دادی چي په ليلة العقبة کي عليه الصلوة والسلام په مکه مکرمه کي ؤ چي د کفار قريش له خوا يې نهايت د کړاو شپې او ورځي تېرولې، او په بدر کي خو عليه الصلوة والسلام او مسلمانانو في الجملة ښه د آرام شپې او ورځي تېرولې) کعب بن مالک رضي الله عنه وايي چي زه هيڅ دومره قوي او غني نه وم لکه په وخت کي د تبوک د غزا چي زه ځني پاته سوم کعب بن مالک رضي الله عنه وايي چي قسم په خداى ﷻ دی که هيڅ وخت ما دوې د سپرتيا اوښې پيدا کړي دي لکه په وخت کي د تبوک د غزا چي ما دوې راحلې درلودې، کعب بن مالک رضي الله عنه وايي چي عليه الصلوة والسلام چي د تبوک تر مخه نوري غزاوي کولې په توريه او کنايه سره به يې د هغو غزواتو نومان او ځاير نه ښوول، او دا به يې ويل الحرب خدعة. نو چي د تبوک د غزا نوبت راورسېدی چي عليه الصلوة والسلام ددې غزا قصد په سختي ګرمۍ کي وکړی او سفر بعيد يې په مخ کي درلودی او لوی بيابانونه او دښتونه يې په مخ کي درلودل او لوی دښمن چي روم ؤ چي عدوه يې تخميناً يو لک کسان وه او ټول مسلح وه، نو د تبوک په دې غزا کي عليه الصلوة والسلام علانية او په ډاګه د تبوک نوم واخستی تاچي مسلمانان په پوره توګه خپل تياري ونسي، چي د اسلامي فوج عدد د مسلم په قول تر لس زره باله ؤ، حاکم رحمه الله له معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روايت کړی دی "خرجنا مع رسول الله ﷺ الى تبوک زيادة عن ثلثين الف" ابو زرعة وايي چي کوم دفتر جامع د عسکرو د تبوک نه ؤ، کعب بن مالک وايي چي يو سړي چي به د تخلف قصد درلودی دا به يې غالب ګمان ؤ چي په دې دومره لوی لښکر کي زما درک نه معلومېږي تر هغو چي په وحي به مي درک معلومېږي، کعب بن مالک رضي الله عنه وايي چي عليه الصلوة والسلام د تبوک غزا په داسي وخت کي وکړه يعني قصد يې ورته وکړی چي د خورما د درختو سايې او مېوې په جم او جوش کي وې، کعب بن مالک رضي الله عنه وايي چي عليه الصلوة والسلام او مسلمانانو کاروبار د سفر چي تجهيز يې بولي برابر کړی او د

بنجشنبې په ورځ له مدينې څخه ووتل او د عليه الصلوة والسلام دا خوښه وه
چې په سفر به وتی که جهاد وای که بل سفر وای چې د پنجشنبې په ورځ رهي سي
كعب بن مالک ﷺ وایي چې ما کوشش کاوه چې زه هم خپل تجهیز وکړم او
د دوی سره یو ځای ووځم. لکن باغ ته به ولاړم بازار ته به راغلم هيڅ کاروبار به
مي نه ؤ برابر کړی او په زړه کي به نفس راته وویل چي ته قدرت والا یې دوې
راحلې درته ولاړي دي ته هر وخت خپل جهاز کولای سې حتی چې په دغو فکرو
کي هغه ورځ ورسېدل چي عليه الصلوة والسلام غازي او نور مسلمانان ورسره
سهار په وخت کي د مدینې منورې ووتل او ما هيڅ کار نه ؤ برابر کړی. نو ما په
خپل زړه کي ویل چي يوه ورځ يا دوې ورځي وروسته چې په سې ووځې هم پسې
رسېدلای سې، نو چي دوی ووتل ما هم خپل د کارسازۍ اراده وکړه ما بیام چي به
کور ته راغلم هيڅ کار سازي به مي نه وه کړې، کعب بن مالک ﷺ وایي چي
د دغه نن صبا په کار سازۍ کي ډېري شپې او ورځي تېري سوې او مسلمانان په
ډېر سرعت سره روان وه او د غزا ځای چي تبوک ؤ وار په وار نژدې کېدل، دی
وایي بیا مي هم قصد وکړی چي په سي ووځم، او دی وایي چي کاشکي مي
داسي کړي وای لکن تقدیر ؤ نه مي وکړه. کعب بن مالک ﷺ وایي چي وروسته
چي به زه بازار ته راووتلم هغه څوک به مي ليدل چي یا به مطعون په نفاق ؤ او یا
هغه څوک چي خدای پاک به معذوره کړی ؤ من الضعفا، کعب ﷺ وایي چي
زما د حال پوښتنه عليه الصلوة والسلام له چا څخه نه وکړه حتی چي تبوک ته
ورسېدی، نو عليه الصلوة والسلام په داسي حال کي چي په خلکو کي ناست ؤ
پوښتنه یې وکړه مافعل كعب بن مالک، نو یو سړي له بني سلمه څخه او په بل
روايت من قومي چي د هغه نوم عبد الله بن انیس ؤ وویل یا رسول الله حبسه
برديه آه والنظر في عطفيه هغه بند کړی د تبوک د سختي غزا څخه کتل خپل:
کشمیري قمیص او پر توګ او کتل وخپل یوه بل او بل بغل ته.

**یوه سه:** چي دا دوه عبارته کنایه ده له عجب او تکبر څخه. نو معاذ بن جبل
یا ابو قتادة وهغه سړي ته وویل بئس ماقلت (تاپه شان کي د کعب بن مالک

ډېره بده خبره وکړه) او هغه معاذ یا قتادة وویل یا رسول الله ماعلمت علیه الا خیراً فسکت علیه الصلوة والسلام. کعب بن مالک ﷺ وایي چي ماته چي دا خبر ورسېدی چي علیه الصلوة والسلام له تبوک څخه د مدینې پر خوا راروان سو پر ما لوی غم مسلط سو چي علیه الصلوة والسلام که یو بېښتنه راسه وکړه چي ته ولې تبوک ته نه وې راسره تللی زه به څه جواب ورته وایم. کعب بن مالک ﷺ وایي چي هرڅه باطل عذرونه به زړه کي سره جوړ کړه چي په دې به له سخط او غضب څخه د علیه الصلوة والسلام خلاص سي او دی وایي چي د دې رایه خلګو څخه مي طلب د کومک وکړی یعني تاسي ماته یوه لار وښایاست چي د علیه الصلوة والسلام له غضبه په خلاص سم. کعب بن مالک ﷺ وایي چي دا خبر چي ما واورېدی چي علیه الصلوة والسلام ته ورغ مدینې ته داخلېږي. نو هغه ټوله باطل عذرونه مي له زړه څخه ووتل او زه خدای ﷻ په دې پوه کړم چي هر ګز نه سي خلاصېدای په داسي عذر سره چي په هغه کي دروواغ وي. نو ما په زړه کي عزم وکړی چي صاف رښتیا به ورته وایم. او زه په دې وپوهېدم چي نجات نه سي پیدا کولای بېله رښتیا ویلو. نو د سهار په وخت کي علیه الصلوة والسلام مدینې ته داخل سو. قال ابن سعد في شهر رمضان. کعب بن مالک ﷺ وایي چي د علیه الصلوة والسلام دا عادت ؤ چي له سفر څخه مدینې ته نه داخلېدی مګر په وخت کي د څاښت او چي له سفره به راغلی اولاً به مسجد ته ورغلی دوه رکعته نفل یعني تحیة المسجد به یې ادا کړه بیا به په مسجد کي تشریف فرما سو د خلګو خوش آمدي یعني روغبړ لپاره. بیا به ورتلی د بي بي فاطمة الزهرا ﷺ کورته. بیا به د ازواجو مطهراتو حجرو ته ورتلی. په دې ورځ کي د تبوک هم حسب العادة دوه رکعته نفل یې مسجد کي ادا کړه او د خلګو لپاره کښېنستی دادی چي مخلفون چي تعداد یې اتیا په څه بالا ؤ راغله او په باطلو عذرو یې شروع وکړه او هر یوه پر خپل عذر هم قسم اخستی. علیه الصلوة والسلام یې عذرونه ومنل چي دوی علانیه وکړه او ددوی باطن یې و خدای ﷻ ته وسپاری او بیعت یې ورسره

وکړی او د مغفرت طلب یې هم ورته وکړی، کعب بن مالک ﷺ وايي چې زه هم ورغلم سلام مې ورته ووایه، علیه الصلوة والسلام د غضب تبسم راته وکړی، فقال ﷺ تعال زه چې ورغلم ورته کښېنستم بين يديه علیه الصلوة والسلام مخ راڅخه واړاوه، ما ورته ووېل یا رسول الله ﷺ مخ ولي راڅخه اړوې "فوالله ما نافقت ولا ارتبت ولا بدلت" قسم په خدای ﷻ دی که زه منافق سوی یم او یا په مسلمانۍ او ستا په نبوت کې شک په زړه کې راګرځېدلی دی او نه مې دين بدل کړی دی، علیه الصلوة والسلام راته ووېل ته څه شي پاته کړې د تبوک له غزا څخه اوښ دي هم د سفر لپاره رانيولی ؤ، کعب ﷺ وايي ما ورته ووېل هو اوښ مې د سفر لپاره رانيولی ؤ، کعب ﷺ وايي ماورته ووېل زه که کښېنستلی وای غير له تا څخه بل چاته د اهل دنيا زما يقين ؤ چې د هغه د سخط په عذر باطل سره ځان خلاص ولای سم، لکن والله زه په دې ښه پوهېږم چې که نن زه تاته درواغ ووايم په عذر کې تا به هم راضي کړم، او خدای ﷻ قريب دی چې ما به تاته رسوا کړي راته په غضب به دې کړي او که زه تاته اوس رښتيا ووايم ته به راته په غصه سې لکن خدای ﷻ به ماته عفوه وکړي، کعب ﷺ وايي چې ما خپل صورت حال و علیه الصلوة والسلام ته داسې بيان کړی ماکان لي من عذر ماته هيڅ عذر په تخلف کې د تبوک نه ؤ، والله ماکنت اقوى ولا ايسر مني حين تخلفت عنک علیه الصلوة والسلام خلګو ته ووېل اما هذا فقد صدق لکن راته وه يې وېل چې راڅخه ولاړ سه حتى يقضى الله فيک بما يشآء، کعب ﷺ وايي زه هم ولاړ سوم وروسته زما د قوم خلګ بنو سلمه راپسې راولاړ سول، نو دوی ماته ووېل چې موږ علم نه لرو چې تا دې تر اوسه ګناه کړې وي تر نن ورځې دمخه آيا ته عاجز وې چې داسې د درواغو عذر دې کړی وای لکه هغه نورو مخلفينو چې وکړی، که دا درواغ ستا ګناه وي خو د علیه الصلوة والسلام استغفار تا لره کافي ؤ ددې ګناه لپاره، کعب ﷺ وايي چې زما قوم په ما پسې وه حتى چې ما اراده وکړه چې بېرته و علیه الصلوة والسلام ته ورسم او خپل ځان په دمخه خبرو کې يعني چې ما و علیه الصلوة

والسلام ته کړي وي چي ما عذر نه درلودی کاذب وګرځوم، بیا مي د ځان سره فکر وواهه چي دوې ګناهوي څرنګه یو ځای کوي چي یو تخلف له رسول الله ﷺ څخه او بل درواغ ورته ویل چي ما خو عذر درلودی، وروسته مي خپل قوم ته وویل چي بل څوک ما غوندي سته چي علیه الصلوة والسلام ته یې رښتیا ویلي وي، او ده مبارک یې امر تر امر الهي پوري معطل کړی وي، قالوا نعم رجلان قالا مثلي ماقلت فقیل لهما مثل ماقیل لک، ما ورته وویل چي هغه دوه کسه څوک دي؟ قالوا مرارة بن الربیع العمري ﷺ و هلال بن امیة الواقفي ﷺ . کعب بن مالک ﷺ چي دوی دغه دوه مذکوره صالح کسان ذکر کړه چي د بدر په غزأ کي شامل سوي وه چي ما اقتدأ په هغو دوو پسي ښه کار وباله، نو زه هم ولاړم چي دا دوه کسان دوی ذکر کړه یعني بیرته د خپل قول د تکذیب لپاره علیه الصلوة والسلام ته نه ورغلم، وروسته علیه الصلوة والسلام صحابه کرام ﷺ منع کړه له خبرو کولو څخه زموږ درو سره "من بین من تخلف عنه" یعني چي دمخه معتذرین بالباطل وه، نو زموږ درو څخه خلګو ګوشه نشیني مختاره کړه، نو موږ درې په خلګو کي ګرځېدلو نه به چا خبري راسره کولې او نه به یې سلام را اچاوه او نه به یې زموږ سلام ته جواب کاوه، او موږ ته خلګ داسي معلومېدل لکه بیګانه خلګ لکه موږ چي دوی نه پېژندل، او د مدینې منورې سرایونه او دیوالونه داسي راته ایسېدل لکه موږ چي هیڅ کله نه وي لیدلي، کعب ﷺ وایي چي زه پر دې بېرېدم چي زه به مړ سم او ماته به د جنازې لمونځ علیه الصلوة والسلام نه کړي را، او یا خدانخواسته علیه الصلوة والسلام وفات سي نو موږ به پر دغه حال پاته سو چي څوک به خبري نه راسره کوي تر مرګه پوري، او چي مړه سو څوک به د جنازې لمونځ نه راکوي، کعب ﷺ وایي چي پینځوس ورځي پر دغه حال تېري سوې، او زما هغه دوه ملګري له اولي ورځي څخه چي دا معامله پېښه سوه په کور کي کښېنستل ژړل یې او زه هم ځوان وم او هم قوي، نو زه به لمانځه ته جماعت ته راوتلم او د مدینې په بازار کي به ګرځېدم، او مسجد ته چي به ورغلم علیه الصلوة

والسلام به د خلکو سره ناست ؤ ما به سلام ورواچاوه یعني تر لمانځه وروسته. زما به په زړه کي دا شک پیدا سو چي علیه الصلوة والسلام شونډان مبارکان وښورول که نه. بیا به نژدې و علیه الصلوة والسلام ته پر لمانځه درېدم ما به په پټه علیه الصلوة والسلام ته کتل او ما چي په خارج الصلوة وده ته وکتل ده به مخ راڅخه واړاوه. کعب وایي چي زه به پر لمانځه یعني نفل وغیره ودرېدلم علیه الصلوة والسلام به راته کتل. کعب وایي چي دا بېزاري د خلکو زما سره اوږده سوه. یوه ورځ د ابي قتاده باغ ته پر دېواله ورواوښتم چي ابو قتاده هم د بني سلمه چي زموږ د قبیلې ؤ (او په حدیث کي یې تعبیر په ابن العم سره کړی دی لکن سکه د اکا زوی یې نه ؤ) او ابو قتاده پر ما ډېر ګران هم ؤ "فسلمت علیه" ما سلام ورواچاوه "فوالله مارد علي السلام" قسم په خدای دی چي ابو قتاده جواب رانه کړی، کعب وایي چي اې ابو قتاده آیا ته پر دې علم لرې چي زما خدای او رسول څومره محبوب دي؟ ده هیڅ جواب رانه کړی، بیا مي دا خبره ورته وکړه ده جواب رانه کړی بیا به مي پوښتنه څني وکړه دریم یا څلورم وار یې دا قدر وویل الله ورسوله اعلم. کعب وایي چي زما تر سترګو اوښکي راتوی سوې او د ابو قتاده له باغه بیرته پر دېواله واوښتم. کعب وایي چي زه یوه ورځ د مدینې په بازار کي ګرځېدم چي یو نبطي له انباط څخه د شام (نبطي هغه څوک بولي چي غله راوړي له بل ځای څخه او په مدینه کي یې خرڅول) او دا نبطي له شام څخه راغلی ؤ او غنم وغیره یې راوړي وه او په مدینه کي یې خرڅول. دا نبطي له خلکو څخه یعني د مسلمانانو څخه د مدینې پوښتنه کوي چي څوک به ماته کعب بن مالک را وه پېژني، خلکو صرف په اشاره زه وروښوولم داسي یې نه وویل چي کعب هغه دی، یعني زما نوم هم مسلمانانو نه اخستی. هغه نبطي ماته راغلی او یو کاغذ یې ماته راکړی چي د وربښمو په ټکر کي پېچلی ؤ له طرفه څخه د باچا د غسان په شام کي او په خط کي داسي نوشته وه. اما بعد فانه قد بلغني ان صاحبک قد جفاک واقصاک (په تحقیق ماته رسېدلې ده چي



Scanned by CamScanner

ستا صاحب مراد يې رسول الله دی په يقين ده له تاسي سره جفا كړې ده او ته يې له ځانه لېرې كړی يې) ولم يجعلک الله بدار الهوان ولا مضيعة (او ته ګرځولی يې خدای په وطن كي د سپكاوي ستا يعني المدينة "ولا مضيعة" (يعني په ځای كي د ضائع كېدلو ستا د حق يعني ته لوړ او شريف سړی يې باید. خلګ ستا حق نه كړي ضائع. غرض يې دا دی چي لكه صاحب ستا چي عليه الصلوة والسلام دی ستا حق يې ضائع كړی دی او ستا حق يې نه دی ضائع كړی) حيث منع الناس عن السلام والكلام معک. فان شئت فالحق بنا نواسلک فقلت لما قرئتها وهذ ايضاً من البلا قد طمع اهل الكفر فتيممت بها التنور فسجرته (كه ستا خوښه وي په موږ پوري ملحق سه يعني موږ ته راسه موږ به ستا سره كومک وكړو، كعب ﷺ وايي ما چي دا خط ووايه ما له ځان سره وويل چي دا هم د خدای ﷻ يو امتحان دی چي په ما يې كوي چي طمع پيدا سوه د اهل كفر وماته نو مي قصد و تناره ته وكړی او خط مي پكښي وسو، كعب ﷺ وايي د پينځوس ورځو څخه چي څلوېښت ورځي تېري سوې عليه الصلوة والسلام ماته سړی راواستاوه چي خزيمة بن ثابت ﷺ دی ماته يې وويل چي عليه الصلوة والسلام تا امر كوي چي له ماينې څخه جلا سه. ماورته وويل چي څه معنا آيا طلاقه يې كړم، خزيمه راته وويل يا طلاقوه يې مه جماع مه ورسره كوه. او هغه زما دوو ملګرو ته يعني چي په دې مصيبت كي زما سره شريک وه مرارة بن الربيع العمري او هلال بن امية ته يې هم داغسي حال د خزيمة په لاس وركړی دی. كعب بن مالک ﷺ وايي چي ما خپل ماينې ته وويل چي ولاړه سه د پلار كره تر هغو چي زموږ په كار كي خدای ﷻ يوه فيصله كوي. كعب ﷺ وايي چي د هلال بن امية ماينه و عليه الصلوة والسلام ته راغله چي خولة بنت عاصم وه او وه يې ويل چي هلال بن امية سپين ږيری دی او هيڅ خادم بېله ما نه لري. آيا ماته اجازه سته چي خدمت يې وكړم، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي خدمت خو يې كوه خو تاته دي نه در نژدې كېږي چي كنايه له جماع څخه ده. خوله ورته وويل "مابه حركت الى شيئ والله انه ليبكي منذ كان من امره ماكان

الی یومنا هذا" چي نسته په ده یعني زما په مېره کي حرکت ویوه شي ته دی هم کنایةً نهي د جماع وکړي او دې دا هم وویل چي هلال بن ربیعه له کومه وخته څخه چي دا موضوع د هجران الناس د خدای ﷻ په امر ده ته پیښه سوې ده په ژړا دی تر ننني ورځي پوري. کعب ﷺ وایي چي ماته هم ځیني قریبانو وویل چي کاشکي تا هم اجازه اخستې وای د رسول الله ﷺ په باره کي د ماینې د خدمت کما اذن لامرئة هلال بن امية، کعب ﷺ وایي ما قریبانو ته وویل والله لااستأذن فيها رسول الله ﷺ ولي چي زه څه خبر یم چي علیه الصلوٰة والسلام به ماته څه ووایي که زه د ماینې د خدمت اجازت ځني وغواړم او زه په خپله شکر ځوان یم د ماینې وخدمت ته ضرورت نه لرم. کعب ﷺ وایي چي لس ورځي چي نوري تېري سوې یعني وروسته تر څلوېښت حتی چي زموږ د هجران پینځوس ورځي پوره سوې یعني له هغه وخته څخه چي علیه الصلوٰة والسلام زموږ د کلام او سلامه څخه خلګ منع کړي وه. نو په دریمه کي د شپې دا آیتونه نازل سوه "وعلى الثلثة الذين خلفوا الى اخير الآية" او علیه الصلوٰة والسلام په دغه شپه د ام سلمة ﷺ په کور کي ؤ، او ام سلمة ﷺ یې د آیت په نزول خبره کړه، ام سلمة ﷺ ورته وویل چي پر کعب ﷺ باندي زېری ونه کړو. علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چي که زېری وسي خلګ د هر راجمع کېږي، ولي چي دا یوه درنه او سخته موضوع وه چي خدای پاک حل کړه او تول له شپه مو بیا خلګ له خوبه باسي، کعب ﷺ وایي چي د پینځوسمي شپې سپېدې راوچاودې او علیه الصلوٰة والسلام زموږ د توبې اعلان په مسجد نبوي ﷺ چي خلګو ته کړی ؤ کعب ﷺ وایي چي زه په دغه وخت کي پر یو بام ناست وم حزین او د فکر په حال کي چي پر ما ځمکه تنګه وه سره له فراخی لکه خدای ﷻ چي زموږ د دغه حال په قرآن مجید کي حکایت کړی دی چي یو سړي لوېه ناره وکړه پر جبل سلع باندي یا کعب بن مالک ابشر، او محمد بن عمرو وایي چي پر جبل سلع باندي ناره کونکی ابوبکر ﷺ ؤ فصاخ قد تاب الله على كعب يا كعب ابشر، یعني زېری مي درباندي چي توبه دي قبوله سوه، وقد انزل

الله فيكم القرآن، كعب ؓ وايي چي د نارې په اوريدلو سره زه پر سجده پريوتلم فرحاً بالتوبة په دې پوه سوم چي مشكل حل سو، او عليه الصلوٰة والسلام زموږ د درو كسو په توبه سره اعلان وكړی چي د سهار لمونځ يې وكړی او بعض مسلمانان زما پر خوا راروان وه چي په هغو كي يو پر آس سپور په ډېر تلوار راغلی چي زبير بن عوام ؓ ؤ او بل سړی په وچه ځغاسته ماته راغلی د زېري لپاره لكن د صارخ اواز تر دواړو د مخه راورسېدلی ؤ او بعض مسلمانان د هغو دوو نورو وخوانه چي زما سره شريكان وه په دې مشكل سره د زېري لپاره هغو ته ورغلي وه، او هغه څوک چي هلال بن اميه ؓ ته يې زېری ورووړی ؤ سعيد بن زيد ؓ ؤ. دی وايي چي ما زېری ورته وكړی دی پر سجده پريوتی او له ډېري خوشاليه په ژړا سو، او زما گمان دا سو چي له سجدې به سر نه كړي راپورته حتى تخرج نفسه. ولي چي ده له هغه وخته په طعام څكه نه وه كړې او پيوسته به روژه داره ؤ او يو گړی به يې ژړا نه ؤ.

**سوال:** پينځوس ورځي څرنگه بې خوړلو د طعام سړی ژوندی پاته كېدای سي؟

**ځواب:** مراد له طعام څخه طعام ملئ البطن دی او د پينځوس شپې لپاره د سد الرمق يو څه لږ طعام خوړی او كېدای سي چي ذكر د خدای ﷻ قائم المقام د طعام او د شراب ؤ كما جرب بعض اهل الله في اربعيناتهم. او هغه څوک چي مرارة بن الربيع ؓ ته يې د توبې زېری ورووړی ؤ ملكان بن ابي سلامة ؓ ؤ. كعب ؓ وايي چي زه راغي سوم د عليه الصلوٰة والسلام پر خوا او خلگ فوجاً فوجاً په مخ راتله د توبې د قبوليت مباركي يې راكوله. كعب ؓ وايي حتى دخلت على رسول الله ﷺ، او عليه الصلوٰة والسلام ناست ؤ او شا وخوا خلگ پر راگرځېدلي وه، كعب ؓ وايي چي طلحة بن عبيد الله ؓ وړې ځغاسته راغی او زما سره يې روغبړ وكړی او مباركي يې راكړه، كعب ؓ وايي له مهاجرينو څخه بل هېڅ څوک نه دی راولاړ سوی. كعب ؓ وايي چي د طلحة بن عبيد الله ؓ دا احسان به زه هېر نه كړم چي زما سره يې روغبړ وكړی او مباركي يې راكړه، كعب بن مالك ؓ وايي ما چي عليه الصلوٰة والسلام ته سلام ووايه ده وروسته د

سلام تر جواب راته وویل په داسې حال کې چې د علیه الصلوٰة والسلام مخ مبارک ژموږ د توبې د قبلېدلو په وجه برېښېدی "ابشر بخیر یوم مر علیک منذ ولدتک امک" کعب ﷺ وایي ما ورته وویل امن عندک ام من عند الله" دا قبول د توبې زموږ ستا له خوا دی او که د خدای ﷻ له خوا دی؟ ده راته وویل لا بل من عند الله، انکم صدقتم الله فصدقکم الله"یا زما له خوا نه دی بلکې د خدای ﷻ له خوا دی. تاسې وخدای ﷻ ته رشتیا وویل یعني باطل عذرونه مو نه کړل پېش خدای ﷻ ستاسې تصدیق وکړی. کعب ﷺ وایي چې علیه الصلوٰة والسلام چې په ډېره خوشاله ؤ مخ مبارک به یې برېښېدی لکه یوه ټوټه د سپوږمۍ، خلګ په له دغې علامې څخه په خوشالۍ پوهېدل، کعب ﷺ وایي چې زه د ده په حضور کې کېښېنستم، ما ورته وویل یا رسول الله ﷺ "ان من توبتي ان انخلع من مالي کله صدقة الی الله والی رسوله ﷺ" چې زما د تمام د توبې دادی چې زه د ټوله ماله څخه خپل ځان خالي کوم د صدقې د خدای ﷻ او د رسول ﷺ د هغه وفي روایة فاجعلها یا رسول الله فیما اراک الله"ته زما دغه ټوله اموال مصرف کړه په هغه ځای کې چې خدای پاک یې وتاته دروښیي، ده مبارک راته وویل چې ځیني مالونه دي له ځان سره وساته چې دا ځیني مال ستا لپاره خیر دی. ما ورته وویل چې نیمایي خیرات کړم؟ ده مبارک وویل لا ، ما ورته وویل دریمه حصه یې خیرات کړم؟ ده مبارک وویل هو! کعب ﷺ وایي ما ورته وویل چې زه خپل په مال کې هغه جائیداد راګرځوم چې په خیبر کې دی، کعب ﷺ وایي چې ما ورته وویل یا رسول الله انما نجي الله بالصدق وان من توبتي ان لا احدث الا صدقاً مابقیت فوالله ما اعلم احداً من المسلمین اهلاه الله في صدق الحدیث منذ ذکرت ذالک لرسول الله ﷺ احسن مما ابتلاني وما تعمدت منذ ذکرت ذالک لرسول الله ﷺ الی یومي هذا کذباً واني لارجو ان یحفظني الله فیما بقت:

**ژباړه:** کعب ﷺ وایي چې ما و علیه الصلوٰة والسلام ته وویل چې ماته چې نجات راکړی له عذاب څخه هغه په رشتیا ویلو سره وتاته، او زما له توبې څخه دا هم دی چې زه په هیڅ خبره نه کوم مګر چې رشتیا وي تر څو چې ژوندی یم،

کعب ﷛ وايي چي ماته نه دی معلوم هيڅ څوک له مسلمانانو څخه چي خدای پاک دي احسان ورسره کړی وي او انعام دې ورکړی وي په رشتيا ويلو کي د هغه وخته چي ما دا رشتيا وويل و عليه الصلوٰة والسلام ته يعني عذر بالباطل مي نه ووايه بالا تر هغه چي زما سره يې وکړی، کعب ﷛ وايي چي ما د دروغ ويلو قصد له هغه وخته چي ما دا رشتيا وه عليه الصلوٰة والسلام ته وويل تر ننۍ ورځې پوري نه دی کړی او زما اميد دی چي ما به خدای پاک وساتي له دروغو څخه تر هغو چي زه په دنيا کي باقي يم.

**پوښتنه**: د کعب او دده د ملګرو ﷡ په توبه کي پينځوس ورځي څنډ څه حکمت الهي ؤ؟

**ځواب**: ځيني مفسرين ﷭ وايي چي پينځوس ورځي د عليه الصلوٰة والسلام د تبوک په غزا کي تېري سوې او دا درې کسه غائب وه. کعب بن مالک ﷛ وايي چي لوی احسان وروسته تر اسلام راوړلو چي پر ما باندي خدای ﷻ وکړی هم دغه ؤ چي ما عليه الصلوٰة والسلام ته رشتيا وويل يعني عذر بالباطل مي نه ورته وکړی لکه نورو منافقانو چي ورته وکړی، ولي که مي دروغ ورته ويلي وای نو زما حال به د نورو منافقانو رنګه وای يعني هغو چي عذر بالباطل ورته ووايه او قسم بالله يې هم ورته واخستی عليه الصلوٰة والسلام ځني قبول کړی او بيعت يې هم ورسره وکړی او طلب د بخښني يې هم ورته وکړی، او چي قرآن نازل سو د هغو منافقينو په باره کي سخت الفاظ راوړه چي د هيڅ په باره کي خدای ﷻ نه وه نازل کړی، قال الله تعالی سيحلفون بالله لکم اذا انقلبتم اليهم الی ان قال فان الله لايرضی عن القوم الفاسقين، نو کعب ﷛ وايي چي که موږ هم دروغ ويلي وای، نو موږ درې به هم په سخت ترين آيت کي چي د منافقينو په په باره کي نازل سو داخل به وای.

**سوال**: ددې درو کسانو په باره کي داسي عبارت قرآني نازل سو کمامر "وعلی الثلثة الذين خلفوا آه"؟

**ځواب**: کعب بن مالک ﷛ وايي چي د هغه آيت معنا دا نه ده چي دا درې

کسان له غزا څخه د تبوک پاته سوي وه او تخلف يې کړی ؤ، بلکې معنا يې داده چې زموږ توبه وځنډ پدله او وروسته سوه تر هغو کسانو چې عليه الصلوٰة والسلام ته يې پر خپل عذر بالباطل باندي قسمونه واخستل او عليه الصلوٰة والسلام قبول کړه کمامر آنفاً او موږ درو چې رښتيا ورته وويل زموږ توبه يې وځنډول حتی چې خدای پاک زموږ په باره کې وويل "لقد تاب الله على النبي الى ان قال وعلى الثلثة الذين خلفوا الآية.

## حَتّٰٓى اِذَا ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ الْاَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ

تر هغو چې تنګه سوه مځکه يعني ارض المدينة ددې سببه چې تولو مسلمانانو په امر د نبي ﷺ ددوی له کلام او سلام څخه يې امتناع کوله.

**پوښته:** چې په "بما رحبت" کې "با" په معنی د مع ده او کلمه د "ما" مصدريه ده او "رحب" فراخي. ته وايې ای سره د فراخۍ په مځکه کې، پوهان وايي چې دا ضرب مثل دی د هغه چا لپاره چې په يوه حيرت او اضطراب کې واقع سي، نو مځکه ځای نه ورکوي او دا مثل په هره ژبه کې ستد کما لا يخفى.

## وَضَاقَتْ عَلَيْهِمْ اَنْفُسُهُمْ وَظَنُّوْٓا اَنْ لَّا مَلْجَاَ مِنَ اللّٰهِ اِلَّآ اِلَيْهِ

او تنګ سوه پر دوی زړونه ددوی له ډېر غم او وحشت څخه چې نه يې په زړو کې خوشالي ځای درلودی او نه د چا سره الفت. او ددوی دا يقين سو چې ځای د پناه نسته له عذاب او غضب څخه د خدای ﷻ مګر نه و خدای ﷻ ته يعني چې خدای ﷻ بخښنه ورته وته کړي.

## ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ لِيَتُوْبُوْا ؕ

بيا خدای ﷻ توبه قبوله کړه. لکه تفصيل چې يې تېر سو.

**پوښتنه:** وروسته تر "تاب عليهم" د ليتوبوا څه معنا ده؟

**ځواب:** د "ليتوبوا" معنا داده چې دوی استقامت او همېشه توب وکړي پر توبه او په آئينده کې يې ورته کار بيا ونه کړي. او ځيني مفسرين رحمهم الله وايي چې معنا يې داده ليعدوا من جملة التوابين.

إِنَّ اللَّهَ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيمُ

په تحقيق خدای ﷻ دی توبه قبلونکی او مهربان.

**پوه سه:** چي "تواب" صيغه د مبالغي ده، نو يا يې معنا داده چي د ډېرو خلگو توبه قبلوي حتی که د ډېرې تولې کافران په يوه پلا له کفر څخه توبه وکاږي او ايمان راوړي خدای ﷻ يې توبه قبلوي او يا يې معنا داده چي که د ډېرې تولې عاصيان مسلمانان له عصيان څخه توبه وکاږي خدای ﷻ يې توبه قبلوي او يا يې معنا داده که يو مسلمان له ډېرو کبائرو گنهو لکه غيبت، بهتان، زنا، لواطت، قتل النفس بغير حق وامثال ذالک، او بيا توبه وکاږي په يوه وار خدای ﷻ يې قبلوي، ولنعم ماقيل:

ابشروا يا قوم اذا جاء الفرح ........... افرحوا يا قوم قد زال الحرج
مي دمد درگوش هر غمگين بشير ........... خيز ای مد براه اقبال گير

**درويش وايي:** چي په يو صحيح حديث کي چي روايت يې ډيرو محدثينو کړی دی داسي راغلي دي چي خدای جل شانه خوشحاله کېږي په توبه د يو عبد مذنب تر هغه مسافر چي اوښ ورسره وي پر اوښ يې د ابو شی هم تړلی وي او نور خوراکي شيان هم، نو د غرمې د گرمی په وخت کي تر يوې درختي لاندي واروي او اوښ چوک کړي لکن گوډه يې نه ور وتړي او اوبه او نور شيان نه کي څنډي راکښته خيال يې دا وي چي يو گوړی به بيده سي بېرته به روان سي دی چي بيده سي اوښ سره د سامانه د سوري ولاړ سوی وي د خوراک دپاره گوښه تللی وي دی په خوب کي تړی سوی وي چي راکښېني اوښ نه وي يوه خوا بله خوا ميدان کي د اوښ درک نه معلومېږي او اخير الامر تنده ډيره غلبه پر وکړي او دا غالب گمان وي چي د تندي څخه مري، نو بېرته راسي تر هغې درختي لاندي سر کښېږدي د مرگ په انتظار اخير بيده سوی وي چي را ويښ سي اوښ راغلی وي چوک وي دی د ډيرې خوشحالی څخه خوله يې خطاوزي يعني د ده داسي وينا په خيال کي وي چي بېشکه ته خدای يې زه دي بنده يم لکن د غلبې څخه د خوشحالی داسي پر خوله ورسي بېشکه زه خدای ته مي بنده يې دا و

پښتو ژباړه د حدیث، چې نامه وړي محدث صاحب الصحیح مسلم یې روایت کړی او نور محدثین هم.

**درویش وایې**: چې مسلم د ابو موسی اشعري ﷺ څخه روایت کړی دی ابو موسی ﷺ وویل چې علیه الصلوة والسلام وویل ان الله ﷻ یبسط یده باللیل لیتوب مسئ النهار ویبسط بالنهار لیتوب مسئ اللیل حتی تطلع الشمس من مغربها.

**بوسه**: چې داحدیث په مذکوره الفاظو د متشابهاتو څخه دی لعدم کونه تعالی جسما ذا اعضا عند اهل السنة والجماعة وقد مر في هذا التفسیر چې قدما د اهل السنة والجماعة په باره کې د متشابهاتو وایې الله اعلم بمراده یا رسول الله اعلم بمراده ونحن مؤمنون بمراده تعالی ومراد رسوله. لکن متاخرین د بعض متشابهاتو تاویل کوي دوی وایې چې په دې او او امثاله کې مراد ید څخه رحمت د خدای دی لیلا ونهارا.

## يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ ٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ وَكُونُوا۟ مَعَ ٱلصَّٰدِقِينَ ﴿١١٩﴾

اې هغه کسانو چې ایمان یې راوړی دی وېرېږئ د عذاب څخه د خدای ﷻ او ملګري اوسئ د صادق خلګو یعني عمل په مثل د دوی کوئ.

**بوسه**: چې ابن عباس او ابن عمر ﷺ وایې چې د آیت معنا دا ده کونوا مع محمد ﷺ واصحابه ﷺ الذین صدقت نیاتهم واستقامت قلوبهم واعمالهم وخرجوا مع رسول الله ﷺ الی غزاة التبوک باخلاص ونیة دون المتخلفین.

**درویش وایې**: چې دا تفسیر په قرینه د مقام دی دوو اصحابو ﷺ کړی دی. لکن عبارت د قرآن عام دی، د عموم معنی یې دا ده کونوا مع الذین صدقوا في ایمانهم. احترازا عن المنافق وفي عهودهم لا کا الیهود وفي دین الله لا کا المشرکین نیة وقولا وعملا.

**بوسه**: چې ابن الانباري ﷫ د ابن عباس ﷺ څخه نقل کړی دی چې د کونوا من الصادقین وایه، او بیهقي د عبد الله بن مسعود ﷺ څخه هم کونوا مع الصادقین قرائت نقل کړی دی.

**درویش وایي:** چې مآل د دواړو قرائتو یـو دی لان المراد بالبعضیة والمعیة التي کانت قلباً ولساناً وعملاً ونیةً.

**یوه سه:** چې په آیت کې مدح عظیم د صدق ده، جلال الدین السیوطي رحمه الله وایي چې په دغه آیت سره دلیل وایي هغه کسان چې وایي درواغ هیڅ ځای روا نه دي نه تصریحا نه تعریضا. او د ابن مسعود رضي الله عنه ډیرو راویانو روایت کړی چې ده وویل لا یصلح الکذب في جد ولا هزل، یعني نه په قصد او نه په مسخروا کې درواغ لکن الحق خلاف ذالک ولي چې په څو ځایه کې درواغ مباح دي، ولې چې ابن شیبة رحمه الله او احمد رحمه الله د اسماً رضي الله عنها بنت یزید څخه عن النبي ﷺ انه قال کل الکذب یکتب (یعني في صحیفة المعاصي) الا رجل کذب في خدیعة حرب (مګر نه یو سړی چې درواغ ووایي په چم کې د جنګ د کفارو مثلاً یو کافر مسلمان په غشي وولي دی نارې کړي مړ دي کړم او ځان پر مخکه وغورځوي کافر چې پر را میدان کې سلاح ځندي واخلي مسلمان یې په توره سر ور پرې کړي ومثل ذالک.

او اصلاح بین اثنین، یا اصلاح د دوو کسو چې سره دښمنان وي یو بل مسلمان په مابین کې د دوی اصلاح په درواغو وکړي، مثلاً ثالث بالخیر د هر یوه د خوا څخه خبرې د صلحې نقل کوي او درواغ وایي یوه د صلحې خبره ودته نه وي کړې آخیر یې صلح وروکړي.

او یا سړی ماینې ته درواغ وایي چې ځندي راضي سي مثلاً ماینې ته وایي چې ښځې را باندې ګرانه یې او داغسې نه وي وامثال ذالک.

**درویش وایي:** چې په صحیح حدیث کې راغلي دي (التجار یحشرون یوم القیامة فجار) تاجران یعني شی خرڅونکې او رانیونکي دی حشر کړه کېږي فاجران.

**یوسه:** چې فجار جمع د فاجر ده هغه چاته وایي چې په محارم کې غرق وي، تاجران یې د دې سببه فجار وبلل چې په بیعه او شرا کې ده درواغو قسمونه اخلي او غبن فاحش کوي او د مبیعې عیب پټ ساتي او سود کوي نو له دې سببه په آخیر د دغه حدیث کې راغلي دي "الا من اتقی" یعني چې ځان وساتي د درواغو څخه "وبر" ځان نه کې حانث په قسم کې "وصدق" او خبره د رشتیا کوي،

بائع باید چي خپل د خرڅېدو شي پر مشتري باندي د دروغو په قسم نه کي تېر مثلاً بائع ومشتري ته ووايي چي ما دا شي په سل روپي را نيولی دی قسم په خدای دی او ده تر سل روپي په لږو روپو را نيولی وي، او دغه د ده حلف کاذب برکت د ثمن د مابين څخه وړي، او په بل صحيح حديث کي راغلي دي (ان اطيب الكسب كسب التجار الذين اذا حدثوا لم يكذبوا) هغه تجار چي خبري کوي دروغ نه وايي (واذا ائتمنوا لم يخونوا) چي څوک دی امين وبولي خيانت نه کوي، (واذا وعدوا لم يخلفوا) او چي وعده وکړي خلاف د وعدې نه کوي،

او چي شي رانسي د هغه شي بد نه وايي او چي شي خرڅوي د هغه ډېر صفت نه کوي، او که پر دوی پور د چا باندي وو پور نه ځنډوي لان مطل الغني ظلم او که د دوی پور پر چا باندي وو هغه تنګه وي نه، حاصل د کلام دا دی چي صدق او روښتيا ويل ممدوح دی په دنيا او آخرت کي او کذب مذموم دی په دنيا او آخرت کي لکه په آيت المذکوره کي.

وعلى الثلثة الذين خلفوا" چي کعب بن مالك رضي الله عنه او دوه نورو ملګري وه چي عليه الصلاة والسلام ته يي په تخلف کي د غزوة تبوک رښتيا وويل، او نور منافقان چي په تخلف کي د غزوة تبوک يي دروغ وويل او په دروغو يي حلف بالله هم واخستی کمامر تفصيل کل واحد من الصادقين والكاذبين.

مناجات فقير الى الله عزوجل محمد عبيد الله:

الهی مثل من گناه کارکه خواهد بود ....ومثل تو آمرز گار درو جود کی خواهد بود
الهی اگر گناه من بیکران است..... مغفرت تو بالا تر ازان است
الهی بعجز من ورحمت خود بنگر ... وبعصیان و خطاهای من منگر
الهی اگر همواره درعصیانم.... اما از کرده خود پشیمانم
الهی اگر گناه کردارم.... اما خوف تو دردل دارم
الهی چون دروازه مغفرت تو باز است ... عاصی را درطلب آن آز است
الهی اگر چه بدن با شیطا است... مگر دل باحضرت سلطان است
الهی اگرچه عاصی بمرض معصیت رنجور است
اما خوشدل وبدای مغفرت مسرور است

الهي چه کنم که نفس اماره مرا از تو باز میدارد
مگر انکه فضل تو این محبوس را ها دارد
الهي بنده گر یخته چون باز آید .... چون مولا اش مهربان چه باک دارد
الهي اگر از درخود برانی نمیروم .... زانکه در وازه دیگر نمیدانم
الهي درهر کار بر تو توکل دارم .... و از جناب والای تو مدد میخواهم
وقت خفتن است تقریباً هشت نیم بجه است از شب پنجشنبه ۲۰ ماه ذوالقعدة از شهور سنه ۱۴۲۸ هجري قمري.

## مَا كَانَ لِأَهْلِ الْمَدِينَةِ

نه وه صحیح او نه وه روا اهل ته د مدینې.

**پوه سه**: چي ظاهر د عبارت قرآني اخبار دی او مراد ځني نهي دی یعني دوی دي دغسي نه کوي.

بنهائه فائده من تفاسیر معتبرة په ژباړه د درویش، پوه سه! چي مدینة علم بالغلبة ده دار الهجرة کالنجم للثریا لکه لفظ د نجم چي مطلق ستوري ته وایي په عربي ژبه کي لکن په استعمال علم بالغلبة دی د پیروني، نو چي مطلق لفظ د مدینه ذکر سي مراد ځني دار هجرت د رسول اللهﷺ والمهاجرین رضي الله عنهم دی، او که بل ښار د سري مراد ؤ مقید به یې وایي نحو مدینة قندهار او مدینة هرات الی غیر ذالک. او نسبت و مدینة الرسول ته مدني دی بدون الیا او نورو ښارو ته مدیني یا په نسبت کي راځي للفرق لکن في انسان العیون امام نووي رحمه الله په شرح کي د مسلم وایي چي د تولي نړۍ په ښارو کي اکثر اسماً تر مکي مکرمې او تر مدینې منورې نسته، او بعض علماً او تاریخ پوهان وایي چي د مدینة الرسولﷺ سل (۱۰۰) نومان دي المشهور منها (۱) دار الاخیار (۲) دار الابرار (۳) دار السنة (۴) دار السلامة (۵) دار الفتح یعني چي فتح د مکي لـه دغه ښار څخه وسوه (۶) البارة یعني چي اهل ددې ښار نېکوکاران دي (۷) طابة (۸) طیبة په سبب د طیب په دې ښار کي او یا ددې سببه چي خوشبویي د عطر په ښار کي تر نورو ښارو ډېره ده (۹) دار الشفأ چي خاوري ددې ښار شفأ د اتشک مرض او د پیس دي بل من کل داء. او عجوه خورما ددغه ښار دوا ده د

زهرو لپاره که درې دانې علی الصبح سړی وخوري په دغه ورځ کې نه زهر او نه زهريلي حيوان پر ده تاثير کوي لکه لړم، مار او داسې نور (١٠) مزار الرسول ولې چې مزار انور او روضة مطهره د عليه الصلوٰة والسلام په دغه ښار کې ده وغيرها من الاسماً.

**يوه سه:** چې مکې مکرمې او مدينې منورې ته خدای پاک دا خصوصيت ورکړی دی چې هيڅ وخت وروسته تر اسلامه د اهل علم والدين والفضل څخه خدای خالي کړې نه ده.

**يوه سه:** چې خبره وايي چې مدينه منوره به تر قيامت ځلوبنست کاله دمخه خرابېږي والله اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب.

## وَمَنْ حَوْلَهُمْ مِّنَ الْأَعْرَابِ

او هغو کسانو لره چې پر شا وخوا دي د مدينې والاوو چې صحرا نشينان دي لکه مزينه قبيله او جهينه قبيله او اشجع قبيله او د غفار قبيله وغيرهم من الاعراب الذين هم في حوالي المدينة.

## اَنْ يَّتَخَلَّفُوْا عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ

چې دوی دي پاته سي په خپلو کورو کې له عليه الصلوٰة والسلام څخه چې دی په خپل نفس شريفه سره غزا ته ووځي کما في غزوة تبوک فيما نحن فيه چې درې متخلفين او نور منافقين غزا ته د تبوک نه ولاړه.

## وَلَا يَرْغَبُوْا بِاَنْفُسِهِمْ عَنْ نَّفْسِهٖ

او دوی دي نه سپموي خپل ځانونه له نفس شريفه څخه دده مبارک چې هغه اقدام پر يوه غزا په خپل نفس سره وکړي دوی دي هم ورته اقدام وکړي.

## ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ لَا يُصِيْبُهُمْ ظَمَاٌ وَّلَا نَصَبٌ وَّلَا مَخْمَصَةٌ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ

"ذالک" اشاره ده ومنهي عنه ته چې تخلف دی له عليه الصلوٰة والسلام څخه او علت د نهي دی "بانهم" په سبب ددې چې دوی ته نه رسېږي يوه تنده او نه ستړيا او نه لوږه په لاره کې د خدای ﷻ او په معاونت کې د رسول د خدای ﷺ او په اعلاً کې د کلمة الاسلام او په دفع کې د شر او فساد د کافرانو.

وَلَا يَطَـُٔونَ مَوْطِئًا يَغِيظُ الْكُفَّارَ

او دوی نه ایږدي پښې پر مځکه د غزا په سفر کې، چې دا تګ ددوی پر مځکه لپاره د غزا په غصه او غضب کې اچوي کافران.

وَلَا يَنَالُونَ مِنْ عَدُوٍّ نَّيْلًا إِلَّا كُتِبَ لَهُم بِهِ عَمَلٌ صَالِحٌ

او دوی نه پیدا کوي له دښمن څخه یو شی چې یا یې قتل کړي او یا یې بندیان کړي یا غنیمت ځني راوړي او یا ښځې مینځیانې ځني راولي، مګر نه لیکل کېږي یعني په صحیفو کې د اعمالو ددوی په دې تولو تقدیرو کې عمل صالح دی، نو باید عاقل له ګډونه څخه په غزواتو کې د علیه الصلوٰة والسلام وډه ونه کړي بلکې په تمام اخلاص او محبت مشایعت ورسره وکړي.

إِنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ ﴿١٢٠﴾

په تحقیق خدای ﷻ نه ضائع کوي ثواب د ښو کارو کونکو او د اخلاص درلودونکو هر عمل د خیر چې کوي خصوصاً غزاګانې.

**پوهنه**: چې دا جمله علت دی د "کتب لهم آه" لپاره او تنبیه پر دې ده چې جهاد د کفارو سره احسان او ښه عمل دی، ولې چې مجاهدین کوشش کوي چې اسلام دوی پا یه تکمیل ته ورسوي او کفار له ابدي اوره خلاص کړي په نهایت سعي سره لکه سړی چې لېوني او کوچنې ته په ضرب سره تادیب ورکوي، او په حق کې د مسلمانانو هم جهاد احسان دی، ولې چې د جهاد په کولو سره مسلمانان خلاصېږي له غلبې څخه د کفارو او له تسلط څخه ددوی پر بلا د مسلمانانو.

**تجربه**: چونکه مسلمانان عیش پرسته، شهوت پرسته او د جهاد له کړاوو څخه لکه چې بېزاره سوه امریکایانو د ظلم لاسونه پورته کړه، او یو وار په یوه بهانه او په بله بهانه چې هغه بهانې په کذب بحث وې پر قوي دلالت د مسلمانانو په نرۍ یعني عراق باندې حمله وکړه او عراق یې دربدر کړی او ښه کوتې او منازل ددوی یې له خاورو سره خاورې کړه چې تر اوسه پورې یې رحمانه ظلم دوام لري، او بیا یې پر یو غریب دولت د مسلمانانو یعني پر افغانستان باندې یې حمله وکړه چې ددوی ظلم پر افغانستان باندې پینځه کاله کېږي چې دوام لري.

بې رحمانه بمباري، پر كلو بانډو او د بې گناه ښځو او اطفالو وژل دوام لري تر دې سنې يعني ۱۴۲۹ هـ پوري. او افغانستان دوی د يوې محكمې اډې په توگه د ايران، چين، روس او پاكستان لپاره گڼي، په حديث شريف كي راغلي دي چي ابي عبس ﷺ يې روايت كړی دی قال سمعت رسول الله ﷺ چي ده ويل كه د چا پښې په خاورو سوې د الله تعالی په لار كي يعني په جهاد كي حرمه الله على النار رواه البخاري في الصحيح واحمد والترمذي والنسائي، او له ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي عليه الصلوٰة والسلام وويل چي حال د مجاهد في سبيل الله لكه حال د هغه چا دی چي د ورځي يې روژه وي او د شپې تو له شپه قرآن وايي نه په لمانځه كي سستي كوي او نه په روژو كي تر هغو پوري چي مجاهد في سبيل الله كور ته راځي، بخاري، مسلم كذا قال الامام المظهري رحمه الله.

**درويش وايي:** چي بغوي رحمه الله وايي چي د اهل علم په دې كي اختلاف دی يعني په حكم كي د آيت مذكوره يعني "ماكان لاهل المدينة" الى اخير، قتاده رحمه الله وايي چي ددې آيت حكم په عليه الصلوٰة والسلام پوري خاص دی يعني اذا غزا بنفسه الشريفة لا يجوز لاحد ان يتخلف عنه الا بعذر شرعي حق او وروسته امرا د اسلام چي غزا ته بانفسهم ووځي، نو روا ده مسلمانانو ته چي تخلف وكړي كه د مسلمانانو دوی ته ضرورت نه وي. او وليد بن مسلم رحمه الله وايي چي ما له اوزاعي، له ابن المبارك، د ابن جابر او د سعيد بن عبد العزيز رحمهم الله ددې ټولو څخه واورېدل چي دوی ټولو دا ويل ان هذه الآية لاول هذه الامة واخيرها. او ابن زيد رحمه الله وايي مسلمانان چي ډېر سوه دا آيت منسوخ سو آه.

**درويش وايي:** چي په څه شي سره منسوخ سو دا خو قطعي آيت قرآني دی، نو ناسخ يې هم بايد قطعي وي ولم يوجد. مظهري رحمه الله چي د دين امامان رحمهم الله ټول په دې متفق دي چي جهاد فرض كفايي دی اذا قام به جماعت من المسلمين وحصل بهم الكفاية سقط عن الباقين كصلوة الجنازة. له سعيد بن المسيب رحمه الله څخه روايت دی چي جهاد فرض عين دی په سبب د دې چي آيات وارده في الجهاد عام دي، او پر متخلفينو له غزوه څخه د تبوک چي تغليظ راغلی دی هغه هم عام دی.

**درویش وایي**: چي تغليظ پر متخلفینو له غزا څخه د تبوک خاصه د علیه الصلوٰة والسلام وه او آیت د جهاد چي عام دی هغه په هغه وخت کي دی چي نفير عام سي په هغه صورت کي خو بالاجماع جهاد فرض عين دی او په غیر کي د صورت د نفير عام فرض كافيه دی لقوله تعالى لا يستوي القاعدون من المؤمنين غير اولى الضرر والمجاهدون في سبيل الله الى قوله تعالى وكلا وعد الله الحسنى.

**بیوه سه**: چي لـه ابو هریره ﷺ څخه روايت دی چي يو څو نفرو د رسول الله ﷺ له اصحابو څخه د يوه غره په منځ کي يوه د شربتو اوبو چینه ولیدل نو يې خوند ورکړی په زړه کي يې دا قصد وکړی چي پر دې چینې واروي له خلګو څخه به ګوښه يې یعني د خدای ﷻ عبادت به کوو. بیرته يې د ځان سره وويل چي دا کار او ګوښه نشيني به نه کوو چي د رسول الله ﷺ سره مشوره ونه کړو، نو را روان سو او علیه الصلوٰة والسلام ته يې د خپل قصد اظهار وکړی. علیه الصلوٰة والسلام ورته وويل لا تفعلوا یعني داسي کار مه کوئ "فان مقام احدكم في سبيل الله افضل من صلوته سبعين عاماً اى سنةً الا تحبون ان يغفر الله لكم ويدخلكم الجنة" ولي اوسېدل ستاسي د يوه په لار کي د خدای ﷻ یعني په جهاد کي افضل دی تر اووبا کاله لمانځه یعني نوافل. آیا ستاسي نه ده خوښه چي تاسي یعني په سبب د جهاد خدای ﷻ وبخښي او جنت ته مو داخل کړي؟ "اغزوا في سبيل الله من قاتل في سبيل الله فواق ناقة وجبت له الجنة" غزا کوئ په لار کي د خدای ﷻ هغه څوک چي جنګ وکړي په لار کي د خدای ﷻ په مقدار ددې لکه د اوښي غلا چي ښځي نسي یعني چي يو وار يې ولوشي بیا يې جونګی ور ایله کړي چي اوښه شیدې پر را ایله کړي جونګی بیرته ځني ونسي او بیا يې ولوشي، دا خو ډېر لږ وخت غواړي بیا هم واجب دی ده لره جنت.

**مسئله**: لـه دې حدیث څخه دا معلومه سوه چي جهاد افضل دی تر عزلت یعني ګوښه اوسېدلو لپاره د نفلي عبادت من الصلوات والصيام وذكر الله ﷻ وغير ذالک.

**مسئله**: که يو سړي له غزا څخه متخلف سي ولو كان مع رسول الله ﷺ په عذر

شرعي سره لکن نیت مصمم یې داوي که ما عذر نه درلود ای زه به هم د علیه الصلوٰة والسلام سره غزا ته تللی وای دغه سړی د مجاهدینو سره په ثواب او اجر کې شریک دی، والدلیل علیه الحدیث الصحیح المروي في البخاري چې علیه الصلوٰة والسلام چې له تبوک څخه راستون سو خلکو ته یې وویل چې بعض اقوام موږ په مدینه کې تر شا پرې ایښي دي موږ سفر نه دی کړی مګر په یوه دره یا په یوه شپله کې الا وهم ومعنا دوی زموږ ملګري دي، بعضو اصحابو ورته وویل دوی په مدینې کې دي علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل هو! حبسهم العذر دوی زموږ څخه پاته سوي دي په سبب د عذر، نو معنا ددې حدیث داده چې دوی زموږ سره شریک دي په استحقاق کې د ثواب، ولې چې دوی زموږ ملګري دي په نیت کې وانما تخلفوا عنا للعذر، دوی چې زموږ څخه پاته سوه یعني په مدینه کې د عذر له کبله، ولو لاه لکانوا معنا ذواتاً که یې عذر نه وای دوی به زموږ سره په خپلو ځانو ملګري وای، ابن الملک رحمه الله وايي چې له دې حدیث څخه دي ځوک دا ګمان نه کوي چې دغه متخلفین په سبب د عذر او مجاهدین په ثواب کې سره برابر دي لان الله قال فضل الله المجاهدین علی القاعدین اجراً عظیماً، محقق برسوي رحمه الله ددې سوال په جواب کې داسې ویلي دي چې مذکوره آیت خو مطلق دی یعني بیان د عذر او عدم عذر پکښې نسته حدیث مذکور یې قید دی یعني چې آیت مذکوره په بې عذره متخلفینو کې دی لکه هغه درې کسان چې کعب بن مالک او دوه نور رضی الله عنهم وه چې تفصیل یې دمخه تېر سو.

**درویش وايي:** چې د بې عذره متخلفینو مثال یې په هغو درو سره ووایه ولې چې بې عذره متخلفین خو منافقان هم وه هغو لره خو د شراکت د مجاهدینو سره نو د آیت معنا داده چې خدای جل جلاله بالا کړي دي مجاهدین پر قاعدینو یعني من غیر عذر لکه هغه درې اجراً عظیماً، برسوي رحمه الله وايي چې دا هیڅ بعیده نه ده له فضل څخه د خدای جل جلاله چې مجاهد في سبیل الله او متخلفین لعذر مع صحة النیت دي سره برابر کې په ثواب کې بل نیة المؤمن خیر من العمل لا یحتمل الریاً دون العزیمة القلبیة فافهم.

وَلَا يُنْفِقُوْنَ نَفَقَةً صَغِيْرَةً وَّلَا كَبِيْرَةً

او دوی نه خرڅوي يعني في سبيل الله اى الغزو يو لږ نفقه يا ډېره نفقه. لکه عثمان بن عفان او عبدالرحمن بن عوف او نور صحابه کرام ﷺ په جيش العسرة کي د تبوک کمامر تفصيله في بيان تلک الغزوة.

**سوال:** پر نفقه صغيره چي ثواب ورکول معلوم سوه نو پر کبيره خو په طريق اولی معلومېږي، نو اولی دا نه وه چي کبيره يې دمخه کړې وای؟

**ځواب:** تقديم د صغيره په اعتبار د کثرة الوقوع تر کبيره دی.

وَلَا يَقْطَعُوْنَ وَادِيًا

او دوی نه قطع کوي په سفر کي د غزا خصوصاً غزوه تبوک يوه شېله.

**يوه سه:** چي وادي هغه فراخه ځای ته وايي چي اوبه او سېل پکښې بهېږي، په اصل کي "ودی" په معنی د "سال" دی. نو شېلې ته چي وادي وايي تسميه د محل ده په نامه د حال.

اِلَّا كُتِبَ لَهُمْ لِيَجْزِيَهُمُ اللّٰهُ اَحْسَنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۲۱﴾

مگر نه ودوی ته ليکل کېږي يعني په صحائفو کي اعمال ددوی، تعليل د کتب يعني کتابت يې ددې لپاره دی چي خدای ﷻ په فضل او کرم سره ودوی ته ثواب ورکړي.

**سوال:** له دې آيت څخه داسې نه فهمېږي چي د حسن جزا نسته بلکي د احسن؟

**ځواب:** امام فخر الدين الرازي رحمه الله په تفسير کبير کي دوې وجهې ويلي دي او صاحب د روح المعاني دواړي وجهي تر تنقيد او سوال لاندي راوستلي دي.

**درويش وايي:** چي تفسير ددې آيت وتوجيه او سوال جواب ته ضرورت نه لري ولي دلته خو بحث د غزواتو دی کما يدل عليه سوق الکلام ولاشک ان الانفاق في سبيل الله او قطع د شېلو في سبيل الله احسن الاعمال دی کما روی عن ابی مسعود الانصاري رضي الله عنه قال جا رجل بناقة مخطومة فقال هذه في سبيل

الله فقال رسول الله ﷺ لک بها یوم القیامة سبعمائة (۷۰۰) ناقة کلها مخطومة رواه مسلم، والمراد والله اعلم ثواب سبعمائة ناقة، وحاصل الکلام ان ایراد احسن باعتبار المقام لاللاحتراز عن الحسن فافهم.

## وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُونَ لِيَنْفِرُوا كَافَّةً

یعني نه ده صحیح او نه ده رواه.

**پوه سه:** چي عبارت د قرآن ظاهراً نفي دی لکن په معنی د نهي یعني داسي دي نه کوي، او کلمه د لام لپاره د تاکید د نفي دی یعني نه دی وځي مؤمنان په طلب پسي د علم له یوه مخه یعني ټوله، ولي چي داسي خروج ژوند انه کاروبار فاسدوي کما لایخفی، دا ترجمه د مظهري رحمه الله وه.

او روح المعاني وایي ما استقام لهم ان یخرجوا ای ینفروا جمیعاً دی یې دلیل دا وایي چي کلبي رحمه الله له ابن عباس رضي الله عنه څخه داسي روایت کړی دی چي څه وخت چي خدای جل جلاله په متخلفینو کي د تبوک د غزا ډېر سخت الفاظ په قرآن مبارک کي نازل کړه، نو صحابه کرامو رضي الله عنهم په خپلو کي سره وویل چي له دي وروسته مونږ نه په غزا کي او نه په سریه کي (یعني کوچنی لښکر چي علیه الصلوٰة والسلام نه وي پکښې شامل) یو سړی به هم نه پاتېږو بلکي له یوه مخه به وځو وجنګ ته او داغسي یې هم وکړه او علیه الصلوٰة والسلام یې یوازي پرېښو، نو دا آیت نازل سو انتهی قول روح المعاني. او روح البیان یې ترجمه په دواړو سره کړې حیث قال للغزو اولطلب العلم.

## فَلَوْلَا نَفَرَ مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ مِنْهُمْ طَائِفَةٌ

**پوه سه:** چي لولا حرف تحضیض دی که څه هم پر ماضي داخل دی مراد ځني امر دی په مستقبل کي.

**ترجمه:** نو ولي نه وځي له هري فرقې څخه یعني له لویي قبیلې او ښار څخه د مسلمانانو یوه طائفه یعني یوه کوچنۍ ډله چي په عرف کي طائفه وکوچنۍ ډلي ته وایي یعني په طلب پسي د علم چي په پښتو یې طالبان بولي. دا د مظهري رحمه الله پر ترجمه. یا د سریه سره دي یوه کوچنۍ ډله ووځي جنګ ته د

روح المعاني پر ترجمه.

لِّيَتَفَقَّهُوا فِي الدِّينِ

د "يتفقهوا" ضمير راجع دی وطائفه ته لكن چونكه مونث لفظي دی فقط، نو ارجاع د ضمير مذکر ورته روا دی او جمعيت د ضمير په اعتبار د معنی د طائفې دی والمعنى چي دا كوچنی ډله به دانشمندي حاصله كړي يعني علم دين به زده كړي. دا خو د مظهري پر تفسير، او د روح المعاني پر تفسير مرجع د ضمير د "يتفقهوا" صراحةً مذكور نه دی بلكې له طائفه څخه فهمېږي، ولې چي لوی ډله چي سريه ده جنگ ته ولاړه، نو لويه ډله خو د عليه الصلوٰة والسلام سره په مدينه كې پاته سوه نو دغه لويه ډله به د عليه الصلوٰة والسلام څخه د دين علم زده كړي.

وَلِيُنذِرُوا قَوْمَهُمْ إِذَا رَجَعُوا إِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُونَ ﴿١٢٢﴾

دا عطف دی پر "ليتفقهوا" او دوی يعني هغه كوچنۍ ډله چي په طلب پسي د علم وتلي وه او په مسجد او مدرسو كي يې علم زده كړی او فارغه سول يعني سند علمي يې تر لاسه كړی وه به بېرته ولي له خدای ﷻ څخه خپل قوم چي په ښارو او بانډو كي دي چي دوی رجوع وخپل قوم ته وكړي امر بالمعروف او نهي عن المنكر به ورته وكړي، دا خو د مظهري رحمه الله پر تفسير، او د روح المعاني پر تفسير يې معنا داده چي وه به بېرته ولي هغه لويه ډله چي په مدينه كي د عليه الصلوٰة والسلام سره پاته وه او دوی له عليه الصلوٰة والسلام څخه دين او قرآن زده كړی وي په غياب د سريه چي جنگ ته تللي وه، قوم خپل چي هغه كوچنۍ ډله د سريه وه يعني په هغه امر او نهي د سريه په غياب كي دوی د عليه الصلوٰة والسلام څخه زده كړي وه "لعلهم" يعني قوم د ښارو او بانډو او يا سريه والا شايد وه بېرېږي په اندازه ددوی.

**فائده:** يتفقهوا" مشتق دی له نفقه څخه چي باب د تفعل دی چي لپاره د تكلف دی غالباً كما في الشافية يعني په تكلف او مشقت سره يې تفقه في الدين حاصله كړې وي، په نهايه شرح هدايه كي وايي فقه په اصل كي فهم ته وايي، او په قاموس كي وايي الفقه بكسر الفاء العلم بالشئ والفهم له والفطرة

وغلب على علم الدين لشرفه آه. امام اعظم سراج الامة ابو حنيفة رحمه الله وايي چي فقه پېژندل د نفس دی "مالها" چي د نفس نفع پکښې وي "وما عليها" چي د نفس ضرر پکښې وي.

**درويش وايي:** چي دا معنا د فقهي شامل ده و علم العقائد وعلم الفقه المصطلح وعلم اصول الفقه كلها. او تخصيص د فقه د لفظ په علم الفروع سره اصطلاح جديد ده، نو درويش وايي چي همدا وجه ده چي امام اعظم رحمه الله خپل كتاب چي په عقائدو كي يې تصنيف كړی دی د فقه اكبر نوم يې پر ايښي دی، او درويش پر هغه كتاب د امام اعظم رحمه الله يوه لويه شرح كړې ده چي علاوه تر شرح د كتاب د امام اعظم رحمه الله د ژوند كامله تاريخچه او دده تقوی او زهد او د لوی علميت پكښې كړی دی په حواله د تواريخو معتبره وو او دا مي هم ثابته كړې ده چي امام اعظم رحمه الله تابعي ؤ وليس البيان كالعيان، نو دا شرح بايد د امام اعظم رحمه الله اهل مذهب د كتب فروشانو څخه تر لاسه كړي تاچي د امام اعظم رحمه الله حالات ورته معلوم سي، عبد الله بن المبارك رحمه الله په مدح كي د امام اعظم رحمه الله يوه پوره قصيده جوړه كړې ده چي بعض ابيات يې دادي:

لقد زان البلاد ومن عليها .......... امام المسلمين ابو حنيفة
باحكام و اثار و فقه .......... كآثار الزبور على الصحيفة
فما بالمشرقين له نظير .......... ولا بالمغربين ولا بكوفة
فمن كابى حنيفة في علاه .......... امام للخليقة و الخليفة

**مسئله:** معرفت د نفس مالها وما عليها عام دی كه په اجتهاد سره وي او كه په تقليد د يوه مجتهد حتى كه مقلد علم له مجتهد څخه زده كړي او كه له كتاب څخه د مجتهد يې زده كړي او يا يې له علماً برجسته څخه د مذهب زده كړي غاړې يې خلاصي دي.

**مسئله:** زده كړه د ټولو علومو دينيه وو فرض كفايي ده او زده كړه د هغه شي چي پر سړي فرض وي لكه لمونځ، اودس، روژه او پر غني زده كړه د زكوٰة او حج او پر ښځه باندي د حيض او د نفاس د مسئلو زده كړه فرض عين ده، ولهذا قال رسول الله ﷺ طلب العلم فريضة على كل مسلم رواه البيهقي بسند صحيح عن انس رضي الله عنه.

**درويش وايي:** چي په ډول د مشت نمونه خروار په باره کي د علماؤ او د طلاب العلم يو څو حديثونه تاسي ته وړاندي کوم، بخاري، مسلم او احمد له ابو هريره ﷺ څخه روايت کړی دی چي عليه الصلوٰة والسلام وويل چي خلګ دوه قسمه دي "عالم ومتعلم ولا خير في سواهما" والمعنى دغه دوي نوعي چي ښونکي او زده کونکي دي دغه خير د انسانانو دي په ماسوی په ماسوی کي ددوی چندان خير نشته، امام محمد بن ادريس الشافعي رحمه الله روايت کړی دی "تجدون الناس معادن کمعادن الذهب والفضة فخيارهم في الجاهلية خيارهم في الاسلام اذا فقهوا" ژباړه: تاسي پيدا کوئ خلګ لکه معادن د سرو زرو او د سپينو زرو، نو برګزيده ددوی په جاهليت کي يعني من حيث النسب والاخلاق برګزيده د انسانانو دي په اسلام کي هم چي فقاهت په دين کي حاصل کړي يعني د دين محمدي په اصولو او فروعو ځانونه خبر کړي.

**درويش وايي:** چي دا خبره عليه الصلوٰة والسلام په هغه وخت کي وکړه چي مسلمانانو دده څخه سوال وکړی چي په قبائلو کي د عربو کومه قبيله غوره قبيله ده والله اعلم.

**پوه سه:** چي ځان خبرول په دين کي دوه قسمه دي يو فرض عين دی او بل فرض کفايي دی، فرض عين علم دی په عقايدو صحيحه وو سره ولو اجمالاً چي ددې لپاره زده کړه د آمنت بالله تر پايه پوري سره د ترجمې د عوام الناس نرو او ښځو لره کافي ده، او په فروع کي د دين چي هر سړی حاجت ورته لري زده کړه يې فرض عين ده ولو من السنة العلماء الفقهاء لکه طهارت يعني اودس، غسل د جنابت طهارت الثياب او لمونځ سره د ارکانو او واجباتو او سننو او مندوباتو ومايتعلق بالصلوٰة والصوم روژه سره د خپلو شرائطو او دغه رنګه کړه د هر عبادت چي شرعي فرض کړی وي پر اديانو فيجب على المسلم معرفة احکامها کعلم الزکوٰة من مقاديرها ونصبها ومصارفها ومعرفة احکام الحج وانواعه وفرائضه وواجباته وهٰذين العلمين يجب على الاغنياء، او دغه فرض عين د علم د معاملاتو چي جاري بين الناس دی واجبه چي احکام يې زده کړي مثلاً بيع صحيح او فاسده او ربوا د تاجرانو لپاره، او علم د اجاراتو الى غير ذالک عواصو

لره لاذمه ده چي په دې باره کي علماً ته د دين رجوع وکړي.

**درویش وایي**: چي په صحيح حديث کي چي روايت يې د ډېرو کتابونو د حديثو کړی دی راغلي دي عن انس ﷺ چي د طالب العلم لپاره طلب د بخښې کوي هر شي حتى ماهيان په درياب کي، او فرض کفايه علم دادی چي يو څوک په هر باب کي د علم دومره معلومات حاصل کړي چي د فتوى ورکولو درجې ته ورسېږي، نو که ټوله اهل بلد د داسې علم له حاصلولو څخه کنښېنستل ټوله ګناه کاره دي، په ګناه کبيره سره، او که يو نفر په ښار کي دا وظيفه د فتوى حاصله کړي د نور اهل اللبلد غاړي خلاصي سوې او پر خلګو د هغه تقليد د هغه عالم واجب دی کوم حوادث او واقعات چي ودوی ته پېښېږي او د علم تحصيل او ښوونه وبل ته تر هر عبادت نافله بهتره ده، قال رسول الله ﷺ طلب العلم افضل عند الله من الصلوة والصيام والحج، والمعنى والله اعلم افضل من النفلي من هذه العبادات، او تر جهاد في سبيل الله، والمعنى والله اعلم چي د جهاد نضير عام نه وي، او دا حديث صاحب الفردوس له ابن عباس ﷺ څخه روايت کړی دی، وفي الحديث طلب العلم ساعة افضل من قيام ليلة وطلب العلم ساعة افضل من صيام ثلثة ايام، وقال رسول الله ﷺ فضيلت د عالم (يعني چي صرف فرائض پر ځای کوي نور نفلي عبادات نه کوي) پر عابد باندي چي نفلي عبادات لکه نفلي لمونځونه، نفلي روژې، نفلي خيراتونه وغير ذالک کوي لکه زما فضيلت پر ادنى ستاسي، وان الله وملائکته واهل السموات والارضين حتى النملة في جحرها، حتى چي مېږی په خپل غار کي او حتى ماهی په اوبو کي، دعا د خير او مغفرت کوي و هغه چاته چي خلګو ته خير يعني د دين عقائد يا احکام ورښيي، رواه الترمذي بسند صحيح عن ابي امامة ﷺ، وقال رسول الله ﷺ فقيه واحد اشد على الشيطان من الف عابد، رواه الترمذي وابن ماجه عن ابن عباس ﷺ، وقال رسول الله ﷺ انسان چي مړ سي عمل يې ټوله قطع کېږي مثلاً لمونځونه، روژې وغيرهما الا من ثلثة، الا من صدقة جارية، چي صدقه جاريه وروسته تر مرګ هم لکه يو مسجد چي يې جوړ کړی وي او يا يو عمومي پل وغيرهما، او علم ينتفع به، يا يې علم پاته سي چي خلګ نفع پر اخلي وروسته تر مرګ دده

مثلاً شاګردان يې پاته سي چي هغه بيا نورو خلګو ته تعليم کوي.

**درويش وايي:** چي که څوک په علم دين کي يو کتاب تصنيف کړي او پر هغه باندي مسلمانان نفع اخلي، نو دا هم صدقه جاريه ده او هم علم ينتفع به دی، او ولد صالح يدعوله، او يا ولد صالح چي پلار ته دعا کوي، په صالح سره يې مقيد کړی ولي د غير صالح زوی دعا مستجابه نه ده.

**پوه سه:** چي په حديث شريف کي ولد ذکر سوی دی چي نر او ښځي دواړو ته شامل دی، او د يدعوا له قيد ددې لپاره راوړه سو چي زوی باعثه کوي پر دعا و پلار او مور ته ورنه پلار او مور په صالح عمل کي د اولاد شريکان دي بيله دعا کولو د اولاد.

**مسئله:** که يو سړی د مور او يا د پلار عاق وي او په هغه عقوق کي والدين ځني مړه سي، زوی دي دا کوښش کوي چي همېشه دي دعا ورته کوي او قبر ته دي ورځي دېر شايد په دې کردار سره د زوی به عقوق دفعه سي. په يو حديث کي راغلي دي چي يو پلار چي زوی يې عاق ؤ او پر هغه عقوق مړ سو او زوی هم وروسته تر مړيني د پلار هغه کردار چي مور آنفاً ذکر کړی نه وکړي په حديث کي وايي چي ورځ چي د قيامت سي زوی خو په سبب د عقوق د پلار دوږخ ته ملکي بيا يې او دوږخ ته تر رسېدلو دمخه د هغه پلار يې بيا خپله شخصي ګناه ملکو د دوږخ پر خوا راروان کړی وي تر دوږخ دمخه پلار او زوی سره وويني، زوی يې وخدای ﷻ ته وايي چي د پلار عذاب پر ما واچوه او دی جنت ته واستوه، د خدای ﷻ له خوا څخه ندا وکړل سي چي اې عاقه زويه څرنګه دي په قيامت کي د پلار حق وړ پر ځای کړی او ځان دي بار وګرځاوه، ځئ دواړه ولاړسئ جنت ته.

**درويش وايي:** چي دا د هغې فارسي مقولې يوه نمونه ده: به بها نمي بخشد به بهانه مي بخشد.

**درويش وايي:** چي تول احاديث چي په مدح کي د طالبانو يا د استاذانو تاسي واورېدل، دا ټول مشروط په احسان او اخلاص سره دی چي عجب يعني خود بيني، کبر او ريا او حسد او سمعه يعني آوازه او حب الدنيا او کسل يعني سستي په عباداتو کي د خدای ﷻ به نه ورسره ملګري، قال رسول الله ﷺ

لا يقبل من العمل الا ما كان خالصاً وابتغى به وجهه تعالى رواه النسائي عن ابي امامة ﷺ وقال رسول الله ﷺ ان الله لا ينظر الى صوركم واموالكم ولكن ينظر الى قلوبكم، رواه مسلم عن ابي هريرة ﷺ.

درويش ميگويد مثال ريا كاران وخود پسندان حباب است، بر سر آب ودريا ميباشند ومثال خدا شناسان بقدرت وجلال وجمال ونفس ناكاره خود را بعيب وگمراهي واماره بالسوء بودن ديده گان مثال درلا لا است كه درقعر دريا خفته اند نه بيني كه مجدد الف ثاني حضرت شيخ احمد السرهندي قدس سره به پير بزرگوار خود چون مينويسد، كه مصداق من عرف نفسه فقد عرف ربه ميباشد. عرضداشت مدبر سياه، ومقصر بد خو معزور وقت وحال مفتون وصل وكمال كارش همه وهمه نافرمانبرداري مولى است، وعملش همه بترك غزيمت و اولى است. نظرگاه خلق را آراسته ومنظر حق تعالى وتقدس خراب ساخته. همتش همه مقصور بر ظاهر آرايي است وباطنش ازين رهگذر هموار برسوايى است. قال او منافى حال است وحال او مبنى بر خيال او ازين خواب وخيال چه آيد وازين قال وحال چه كشايد ادبار وخسارت نقد وقت است، عبادت وضلالت بركف دست، لعب وفساد وشرارت است. منشأ ظلم ومعصيت وباجمله عيوب مجسمه است وذنوب مجتمعه خيرات او لائق لعن ورد، وحسنات او شايان لعن وطرد قال ﷺ رب قارئ القرآن والقرآن يلعنه درحق گواه عدل است. وكم من صائم ليس له من صيامه الا الظمأ والجوع درشان او شاهد صدق است، فويل لمن كان هذا حاله ومنزلته وكماله درجته. استغفار ذنب كسائر الذنوب بل اشد وتوبته معصية كسائر المعاصى بل اقبح كل ما يفعله القبيح قبيح مصداق اين سخن است، مصرع: وگندم زجوز جو گندم نيايد. مرض اوذاتى است، علاج نمى پزيرد، وداى او اصلى است قبول دوا نمي كند. گفته اند ما بالذات لا ينفك عن الذات، مصرع: سياهى از حبشى كى رود كه خود رنگ است، چه توان كرد، وما ظلمهم الله ولكن كانوا انفسهم يظلمون، الى اخير المكتوب والى ههنا كان مقصود العبد الضعيف محمد عبيدالله غفرله المولى.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ قَٰتِلُواْ ٱلَّذِينَ يَلُونَكُم مِّنَ ٱلۡكُفَّارِ

اې هغه کسانو چې ایمان یې راوړی دی، تاسې جهاد کوئ د هغو کسانو سره چې تاسې ته نژدې وي له کفارو څخه یعني الاقرب فالاقرب في الجوار والنسب. ولې چې جهاد د کفارو سره د شفقت او اصلاح له لارې څخه دی نه د عناد شخصي او د حسد له لارې څخه، نو اقرب خو احق بالشفقة والاصلاح دی وهذا هو سر قوله تعالی لرسوله ﷺ "وانذر عشیرتک الاقربین" او علیه الصلوٰة والسلام هم داغسې وکړه چې د صفا پر غره ودرېدی او ناره یې کړه یا بني عبدالمطلب آه او بیا چې علیه الصلوٰة والسلام ومدینې ته هجرت وکړی بیا ورته نژدې بني نضیر او بیا قریضه د هغو په قتال خدای ﷻ امر کړی وروسته د خیبر په جهاد مأمور سو ثم وثم او چې علیه الصلوٰة والسلام د عربو له جهاد څخه فارغ سو بفتح مکة بیا مأمور سو په قتال د روم چې د تبوک غزا وه، ولې چې رومیان په شام کې وه او شام مدینې منورې ته نژدې ؤ تر عراق چې تفصیل د تبوک د غزا وړاندې تېر سو.

**درویش وایي**: چې د اقرب په جهاد دا وجه هم ده که چېرې مسلمانان تر اقرب دمخه یعنې چې اقرب په جوار کې وي د ابعد سره جهاد شروع کړی، نو قریب کافران سمدلاسه پر ضعفاؤ او پر ښځو او پر ولدانو د مسلمانانو حمله کوي، او بله دا وجه هم ده چې اقرب فالاقرب خو نهایت لري او معلومېږي او ابعد خو پای نه لري بل یمتد الی انقطاع الارض المسکونة.

**پوښتنه**: په اول کې د سورة خدای پاک داسې وویل "قاتلوا المشرکین حیث وجدتموهم" او دلته یې اقرب ذکر کړی فما وجه التوفیق؟

**ځواب**: دا معلومه او اظهر من الشمس خبره ده چې د دنیا د ټولو کفارو سره جنګ په یوه زمانه کې خو له امکان څخه لېرې خبره ده، نو خود له بعضو کفارو سره به جنګ کوئ وهو المراد في الآیة المذکورة چې جنګ د بعض کفارو مراد وي، نو اقرب اولی بالقتال دی للوجوه التي ذکرناها، او بعض مفسران وایي چې مراد په دې آیت کې دادی "قاتلوا المشرکین الاقرب فالاقرب الی ان تصلون الی

الابعد فالابعد وهو المراد من قتال المشركين كافة" او د حسن بصري رحمه الله
څخه چا نقل کړی دی چي دا آيت يعني "قاتلوا الذين يلونكم الآية" منسوخ دی
په هغه آيت سره چي قاتلوا المشركين كافة. روح المعاني دا خبره په سختي سره
رد کړې ده دی وايي چي د اقرب فالاقرب څخه اخير وار وه ابعد فالابعد ته
رسيږي وهو المراد بقوله تعالى قاتلوا المشركين حيث وجدتموهم، قاتلوا
المشركين كافة فافهم.

وَلْيَجِدُوا فِيكُمْ غِلْظَةً

او کفار دي ووينې په تاسي کي اې مسلمانانو غلظة ددوی سره، نو دا امر دی
مسلمانانو ته چي تاسي ددوی سره نهايت غلظة کوي حتی چي کفار ستاسي
غلظه محسوس کړي.

وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُتَّقِينَ

او په دې پوه سئ اې مؤمنانو چي خدای جل جلاله په عون او نصرت سره ملګري دي
د متقينو چي تاسي ياست نه ده کفار، نو ددوی په قتال باک مه کوئ. في المثنوي:

هر پيمبر سخت رو بد درجهان .......... يکسواره گفت برجيش شهان
رونگردانيد از ترس و غمی .......... يک تن تنها بزد بر عالمی

سکندر ته چا وويل چي د دارا چي د سکند ورسره نيت د جنګ ؤ لس لکه
فوج ورسره دی، سکندر ورته وويل چي قصاب له ډېر والي څخه د پسو نه
بېرېږي، د عربو دا مقوله ده الشجاعة وقاية، والجبن مقتلة، بيت:

زهره مردان نه داری چون زنان درخانه باش
ور بميدان ميروی از تير باران بر مگرد

سعدي رحمه الله ميگويد:

آنکه جنگ آرد بخون خويش بازی ميکند
روز ميدان وانکه بگريزد بخون لشکری

وَإِذَا مَآ أُنزِلَتْ سُورَةٌ فَمِنْهُم مَّن يَقُولُ أَيُّكُمْ زَادَتْهُ هَٰذِهِۦٓ إِيمَٰنًا

او هغه وخت چي نازل به کړه سو يو سورت يعني له جانبه څخه د خدای ﷻ پر رسول الله ﷺ باندي، نو بعضو د منافقانو به ويل وخپلو هم جنسانو ته يعني د استهزأ پر ډول، چاته ستاسي زيات کړی دی سورت ايمان؟ يعني تصديق پر نبوت د عليه الصلوٰة والسلام او پر حقيقت د قرآن.

فَأَمَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ فَزَادَتْهُمْ إِيمَٰنًا

کلمة الفأ لتفصيل حال السامعين للسورة، پس هغه کسان چي ايمان يې له پخوا راوړی ؤ هغو ته دي سورت زيات کړي ايمان په سبب د زيادت د علم چي ودوی ته به حاصل سو ددې سورت په معاني او احکامو او يا قصص او امثالو کي له فکر وهلو څخه. نو دا لوی ايمان پر دې سورت به زيات سو پر پخواني ايمان ددوی پر نورو سورتونو.

وَهُمْ يَسْتَبْشِرُونَ ۝١٢٤

او مسلمانان په خوشاله وه په نزول ددې سورت لزيادة علمهم وکمالهم وارتفاع درجات قربهم الى الله عزوجل.

**پوښتنه**: په نېز د معظم د اهل السنة والجماعة ايمان زيادت او نقصان نه قبلوي ولي چي مؤمن به د ټولو د مسلمانانو سره يو دی، البته قوت او ضعف په مشاهده سره د احوال نزول کما في الصحابة ﷺ او يا په کثرت او قلت د دلائلو عقليه او نقليه و الى غير ذالک قبلوي فما معنى قوله تعالى زادتهم ايماناً؟

**ځواب**: امام مظهري رحمه الله په مسئله کي د قبول د ايمان زيادت او نقصان هيڅ نه دی ويلی، لکن آلوسي رحمه الله صاحب د روح المعاني وايي پر خلاف د لويي ډلې د اهل السنة والجماعة داسي ويلي دي په صفحه پينځوسمه (۵۰) کي تفسير الجزء (۱۱) وقبول التصديق نفسه الزيادة والنقص الشدة والضعف مما قال به جمع من المحققين وبه اقول لظواهر الآيات انتهى.

**درويش وايي**: چي علامة تفتازاني رحمه الله په شرح العقائد کي وايي چي قبول د زيادت او نقصان د ايمان لکه چي په دې آيت کي راغلي مخصوص دی

په زمانه پوري د عليه الصلوٰة والسلام په اعتبار د زيادت او نقصان د مؤمن به لان القرآن كمل نزوله في (۲۳) سنين نبوته ﷺ وكلما نزل سورة او آية آمن بها اصحاب رسول الله ﷺ فزادت تلك السورة او الآية لهم ايماناً مع ايمانهم ولله درصاحب روح البيان حيث قال في ص (۵۴۰) في تفسير الجزء (۱۱) مانصه هذا مخصوص بزمان النبي ﷺ يعني باعتبار المتعلق، واما الآن فالمذهب على ان الايمان لا يزيد ولا ينقص وانما تفاوت درجاته قوة وضعفاً فانه ليس من يعرف الشئ اجمالاً كمن يعرفه تفصيلاً يعني ان الثاني قوي من الاول كما ان من يرى الشيئ من بعيد ليس كمن يراه من قريب فصورة الايمان هو التصديق اجمالاً او تفصيلاً. انتهى بقليل تقديم وتأخير وزيادة.

**درويش وايي:** چي بعض اهل الزواهر والمعتزلة وايي چي اعمال په ايمان كي داخل دي نو ددوى په نيز قبول د زيادت او نقص په ايمان كي ظاهر دى لان ايمان من يقيم الصلوات ويؤتى الزكوٰة ويصوم رمضان ويحج البيت كالاغنيا ازيد بكثير ممن يصلى ويصوم كالفقرا وموضع تحقيق هذه المسئلة كتب علم العقائد فليراجع اليها.

وَأَمَّا الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ فَزَادَتْهُمْ رِجْسًا إِلَىٰ رِجْسِهِمْ وَمَاتُوا وَهُمْ كَافِرُونَ ﴿۱۲۵﴾

او هغه كسان چي په زړو كي مرض وي "اې شک ونفاق وسوء العقيدة" هغو ته زياتوي سورت نازله نجاست د كفر نوين چي په سورت نازله سره وكړي مضموماً وهغه نجاست سابقه ته ددوى يعني كفرهم ونفاقهم السابق بالآيات والنذر، او دا كفر او نفاق پاته ؤ بلكي روز افزون مخ پر ازدياد ؤ تر څو چي دوى مړه سوه او حال دا چي دوى كافران وه.

**درويش وايي:** چي مظهري رحمه الله په اخير كي د مجاهد رحمه الله قول راوړى دى وهو هذا وفي هذه الآية دلالة على ان الايمان يزيد وينقص آه، نور يې نو اظهار د خپلې عقيدې نه دى كړى، نو داسي فمهيږي چي مظهري هم د ايمان په زيادت او نقص قائل دى، ورنه د مجاهد رحمه الله قول خو قابل د توجيه دى يعني

في زمان النبي ﷺ لان الآية نزلت في اصحاب النبي ﷺ واهل الشك والنفاق.

**پوه سه**: چې مظهري رحمه الله وروسته يو بل حديث په روايت د علي رضي الله عنه روارى دى چې دى تائيد د خپل مذهب په كوي چې ايمان زيادت او نقص قبلوي، علي رضي الله عنه وايي چې ايمان ابتداء يو سپين ټكى پيدا كوي په زړه كې د كلما ازداد الايمان عظماً ازداد ذالک البياض.

**درويش وايي**: چې مظهري رحمه الله دغه عبارت تائيد د خپل مذهب بولي وكلما ازداد الايمان عظماً آه او دا عبارت پر ازدياد ايمان مطلقاً دلالت نه كوي بلكې دا ايمان خو په زمانه كې د عليه الصلوٰة والسلام چې نزول د آياتو او سورتو به جاري ؤ ونحن نقول بذالک كمامر. حضرت علي رضي الله عنه وايي چې يبيض القلب كله او نفاق او ل لكه يو تور ټكى په زړه كې پيدا كيږي فكلما ازداد النفاق ازداد ذالک السواد حتى يسود القلب كله. او علي رضي الله عنه وايي چې قسم په خداى دى كه تاسې څيگر د مؤمن ور څيري كړئ چې زړه يې معلوم سي لوجدتموه ابيض ولو شققتم عن قلب منافق لوجدتموه اسود، انتهى الحديث مع ترجمة بعض العبارات الخفية. والله الموفق واعلم بمراده في كتابه.

أَوَلَا يَرَوْنَ أَنَّهُمْ يُفْتَنُونَ فِي كُلِّ عَامٍ مَّرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ ثُمَّ لَا يَتُوبُونَ

**پوه سه**: چې بعض له قرا سبعه وو څخه "يرون" بالتآ للخطاب وايي چې مخاطب يې مؤمنان دي، او بعض قرا يې په يا د غيب وايي چې مراد څني منافقان دي، ژباړه: دوى نه ويني يا تاسې نه وينئ چې دغه منافقان اخته كيږي په اقسامو سره د بلا وو چې امراض او شدائد دي، قتاده رحمه الله وايي چې په امر د غزا مع رسول الله ﷺ نو دوى ويني خپل نفاق او تاسې هم وينئ ددوى نفاق چې د كاذبو بهانو او ناحقه قسمو تخلف كوي لكه چې په تفصيل كې د غزوة التبوک تېره سو د "مرة آه" يو وار يا دوه واره او بيا هم دوى توبه نه كاږي د نقض العهد او د نورو گنهو او له نفاق څخه چې دوى ته يې دغه بلاوي او رسوايانې ور په برخه كړي.

**پوه سه**: چې له "مرة او مرتين" څخه عدد مذكور معين نه دى مراد بلكې مراد څني مطلق تكثير دى د بلاؤ پر دوى باندې، او "ثم لايتوبون" عطف دى پر "لا يرون" او داخل دى تحت الانكار والتوبيخ چې په همزه كې د "اولا يرون" ؤ او

واو په ولا يرون کي معطوف دی پر مقدر بعد الهمزة چي دلته يې تقدير داسي دی "ايفعلون المنافقون مافعلوا ولا يرون"،

**درويش وايي**: چي دا عطف پر مقدر قانون کلي نحوي دی چي هر ځای په قرآن مبارک کي چي تر همزه د استفهام حرف عطف راسي يعني واو يا فا يا ثم هغه معطوف پر مقدر دی وقد انعقد على هذا اجماع المفسرين.

وَلَاهُمْ يَذَّكَّرُوْنَ

او نه دوی پند اخلي ددغو بلايا وو څخه چي هر کال مسلط کېږي. يعني بايد ايمان يې په صدق او صميم القلب سره راوړی وای او نفاق يې ترک کړی وای.

**پوه سه**: چي اصل د "يذکرون" يتذکرون" ؤ تا يې په ذال کي مدغمه کړه. نو ددې آيت چي "انک لاتسمع الموتٰی" او ددې آيت "لتنذر من کان حياً" هم دغه منافقين او نور مشرکين مکه دي مصرين پر شرک وه لکه ابو جهل بن هشام وغيره، کذا قال نجم الدين في التاويلات النجمية، قال جلال الدين الرومي قدس سره السامي في المثنوي المعنوي:

ورنگويی عيب خود باری خمش ........ از نمايش واز دغل خود را به کش
گر تو نقدی يا فتی مکشادمان ........ هست د رره سگنهای امتحان
گفت يزدان از ولادت تا بحين ........ يفتنون کل عام مرتين
امتحان بر امتحان است ای پسر ........ هين به کمتر امتحان خود را محز
ماهيان را بحر نگذازد برون ........ خاکيان را بحر نگذارد درون

وَاِذَا مَآ اُنْزِلَتْ سُوْرَةٌ نَّظَرَ بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضٍ

چي نازل به کړل سو يو سورت چي په هغه کي بيان احوال المنافقين وي او عليه الصلوٰة والسلام به هغه سورت قرائت کړي په يو محفل کي چي منافقان هم پکښي حاضر وي "نظر بعضهم آه" جواب د "اذا" دی وگوري بعض د منافقانو ونورو ته د دوی،

**پوسه**: چي مراد د نظر څخه نظر مخصوص دی چي دلالت پر طعن په سورة کي او استهزا په هغه سورة کوي او د ستر گو اشارې سره کوي انکارا لها

وسخرية بها" او دوی د جهت د کراهته د سورة او د خپلو عيبو د اورېدو څخه تنګ سي نو اراده د وتلو لري، نو يو وبل ته پټ ووايي.

هَلْ يَرٰىكُمْ مِّنْ اَحَدٍ ثُمَّ انْصَرَفُوْا ؕ

يعني چي تاسي ويني يو څوک د مسلمانانو څخه چي ددې مجلسه موږ ولاړ سو، نو که چانه ليدل نو د مسجد نبوي ﷺ څخه ووزي او چي وبه وتل دباندي بې خندل د پسخند پر ډول په سورة نازله سره او که چا به لېدل نو به ناست وه او دغم په زانګو کي به زنګېدله "ثم انصرفوا" بيا به ولاړ سوه د مجلس د رسول الله ﷺ لثقل سماع السورة التي فيها بيان المنافقين عليهم او څوک وايې چي منصرف به سوه د ايمان څخه د هغه سورة.

صَرَفَ اللّٰهُ قُلُوْبَهُمْ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَفْقَهُوْنَ ﴿۱۲۷﴾

خدای ﷻ مصروف کړي دي زړونه د دوی د ايمان څخه مجازا تا بفعلهم، په سبب د دې چي دوی يو داسي قوم دی چي په حق نه پوهېږي او فکر په آياتو کي د قرآن نه وهي.

**درويش وايي:** چي د ابي بکر الوراق رحمه الله څخه روايت دی چي زړه شپږ حاله لري (۱) حيوة (۲) وموت (۳) صحة (۴) وسقم (۵) ويقظة (٦) ونوم، نو ژوند يې هدايت دی، او مرګ يې ضلالة دی، او صحت يې صفايې ده، او ناجوړي يې علاقي دي د خلګو سره، او ويښ والی يې ذکر دی، او نوم يې غفلت دی. قال المولوي المعنوي جلال الدين الرومي قدس سره فی المثنوي.

هر صبا حي چون سليمان آمدي ..... خاشع اندر مسجد اقصی شدي
نو ګيا هي رسته دېدي اند رو ..... پس به ګفت نام و تفع خود بګو
تو چه داروئي وچه نامت چه است ..... تو زيا ن که ونفعت برکه هست
پس بګفتي هر ګيو هي فعل ونام ..... که من آنرا جانم و اين را حمام
پس سليما ن د يد ا ند ر ګو شه ..... نو ګيا هي رسته همچون خوشه
ګفت نامت چيست بر ګوبې د هان ..... ګفت خروبست ای شاه جهان
ګفت اندر تو چي خا صيت بو د ..... ګفت من رستم مکان ويران شود

پس سلیمان آن زمان دانست زود ..... که اجل آمد سفر خواهم نمود
گفت تا من هستم این مسجد یقین ..... در خلل ناید ز آفات زمین
پس خراب مسجد ما بیگمان ..... بنود الا بعد مرگ ما بدان
درویش میگوید "اللهم اجعلنا من المتدبرین والمتذکرین والمعتبرین"
سعدي شيرازي چه خوش میگوید.

پند گیر از مصائب دیگران .......... تا نگیرند دیگران ز تو پند
نرود مرغ سوی دانه فراز .......... چو دیگر مرغ بیند اندر بند

لکن بعض انسانان تر مرغانو ناپوه دي.

## لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُولٌ مِّنْ أَنفُسِكُمْ

کلمه د لام موطئه د قسم ده په تحقیق تاسي ته راغلی دی رسول چي مراد څندي محمد ﷺ دی ستاسو له جنس څخه.

**پوه سه:** چي ظاهره معنی دا ده چي مخاطب په انفسکم عرب دي فالمعنی قسم په خدای دي چي تاسي ته راغلی دی ای عربو رسول چي هغه لکه تاسي عرب دی د اولاد د اسمٰعیل ﷺ چي تاسي په نسب هم پیژني او په ژبه یې هم پوهیږئ وهذه نعمة علیکم او تاسي په اسانی سره استفاده څندي کولای سئ ابن عباس وایي چي په عربو کي هیڅ قبیله نسته چي علیه الصلوة والسلام چي وزیږیدی مگر ده لره په دوی نسب سته یا د پلار د خوا یا د نیکه د خوا یا د مور د خوا الی غیر ذلک. روح البیان اول ترجمه داسي کړې ده چي مخاطب جنس بشر دی، ای آدمي مثلکم لا من الملائکة ولا من الجن ، ولي بیا به ستاسي نفرت څندي کیدای او په سبب د نه جنسیت به مو دده متابعت نه کولای ویوید ه قوله تعالی.
قل انما انا بشر مثلکم" وقوله لقد من الله علی المؤمنین اذ بعث فیهم رسولا من انفسهم" ولي مؤمنین خو عام دي عربو عجمو دواړو ته شامل دي او علیه الصلوة والسلام د ټولو سره شریک په شریعت کي دی، روح المعاني اول احتمال دا راوړی دی چي مخاطب عرب دي او احتمال د دي چي مخاطب نفس بشر دی په قیل سره راوړي دي، او مظهري یوازي احتمال ده خطاب د عربو راوړی دی او تفسیر قرطبي هم دواړه احتماله راوړي دي وکذا الامام الرازي رحمه الله في تفسیره الکبیر.

**يوه سه:** چي ابن عباس ﷺ او زهري او ابن محيصن دا لفظ په فتحه د فا وايي يعني پر هغه قرائت دا اسم تفضيل چي مشتق د نفاست څخه دی وهو الشرافت او عليه الصلوة والسلام د اشرف قوم څخه د عربو دی.

په حديث شريف کي چي روايت يې بغوي رحمه الله و ابن عباس ﷺ ته رسولی دی، دی ﷺ وايي چي رسول الله ﷺ وويل ما ولدني من سفاح الجاهلية شئ ما ولدني الا نكاح كنكاح الاسلام وفي رواية من آدم عليه الصلوة والسلام.

**ژباړه:** زه نه يم زېږېدلی له زنا څخه د وخت جاهليت. هېڅ شي زه نه يم زېږولی مگر نکاح لکه نکاح د اسلام د زماني څخه د آدم ﷺ.

**درويش وايي:** وهذا من نفاسة وشرافة نسبه ﷺ الى آدم عليه السلام.

**يوه سه:** چي محمد رسول الله ﷺ ابن عبد الله ابن عبد المطلب بن هاشم بن عبد مناف، بن قصی بن كلاب، او په کلاب کي سره جمع کېږي نسب د ده ﷺ او نسب د مور يې، ولي چي مور د ده آمنه بنت وهب بن عبد مناف بن زهره بن كلاب او بنو هاشم افضل د قبائلو دي تر اسمٰعيل ﷺ پوري په سبب د خصالو حميده وو د دوی. وكلاب بن مرة بن كعب بن لوئ بن غالب بن فهر او علماً د انسابو بيانونکي په اتفاق دا وايي چي قريش له فهر څخه راجلا سوي دي، نو فهر جمع کونکی دی د قريشو او فهر ته قريش په دې سبب وايي لانه كان يقرش اى يفتش عن حاجة المحتاج فيسدها بماله، او د فهر زامنو تلاش کاوه د حوائج د اهل موسم الحج، نو د هغو سره يې مالي مرسته کوله او حاجيانو ته يې په موسم کي د حج ډوډۍ ورکوله چي دې ته په عربي رِفادة ويل کېدله او تر هغو به دا رفادة جاري وه چي حاجيان به سره متفرق کېدله. ولي چي قريشو به په زمانه کي د قصی بعض خپل اموال سره جمع کوله. نو قصی له هغو اموالو څخه ډوډۍ د حاجيانو برابروله او هغو حاجيانو ته يې دا ډوډۍ ورکوله چي د هغو سره به زاد سفر الحج نه وُ، وروسته تر قصی دا وظيفه بيا عبد مناف پر غاړه واخستله. وروسته تر عبد مناف دده زوی هاشم پر غاړه واخستله، او وروسته تر هاشم بيا دده زوی عبد المطلب دا وظيفه پر غاړه واخستله، وروسته تر عبد المطلب بيا دده زوی ابو طالب او بعض وايي عباس ﷺ پر غاړه واخستله ثم وثم الى زمنه



Scanned by CamScanner

عليه الصلوٰة والسلام وزمن خلفاء الراشدين ﷺ. وعن انس ﷺ حب قريش ايمان وبغضهم كفر.

**درویش وايي:** چي محبت د قريشو په حقيقت كي محبت دى د نسب د عليه الصلوٰة والسلام فهو ايمان وكذا بغضهم بتلك الهيئة بغض لنسب عليه الصلوٰة والسلام فهو كفر.

## عَزِيزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ

مظهري رحمه الله وايي نقلاً چي كلمه د ما زائده ده. وروسته يې ترجمه داسي كړې ده اى عنتكم يعني ترجمه يې په مصدر كړې ده، نو تعجب دادى چي ما زائده سي نو "عنتم" چي فعل دى په څه شي مصدر سو؟! والصواب ماقال صاحب روح البيان كلمة ما مصدرية آه. وايضاً قال القتيبي رحمه الله ما اعنتكم وضركم يعني ان كلمة ما موصولة فهو صحيح ايضاً.

**پوه سه:** چي "عنت" وقوع ده په امر شاق كي واشق الامور دخول النار. او "ماعنتم" مبتدأ ده او "عزيز عليه" يې خبر مقدم دى او جمله صفت د "رسول" دى والمعنى شاق عليه عنتكم او ما عنتكم اى لحوقكم الشدة، او ما يلحقكم من الشدة والا لم بترك الايمان. نو دى ﷺ پر تاسي ببرېږي د سوء العاقبة والوقوع في العذاب.

**درویش وايي:** چي دا د غايت شفقت د عليه الصلوٰة والسلام نتيجه ده پر خپل قوم باندي او دا نتيجه بيا نتيجه د مجانست في العربية ده.

**درویش وايي:** چي حسين كاشفي رحمه الله په تفسير حسيني كي وايي كه بعض قاريان بر عزيز وقف كرده اند وآنرا صفت رسول الله ﷺ دانند (يعني صاحب العزة والجاه عند الله) ومعنى عليه ما عنتم. فرود آرند كه برويست آنچه بكنيد ازگناه (يعني اې مؤمنانو ولي چي د كافر شفاعت خو نسته بالاجماع) يعني اعتذار آن برويست درروز قيامت بشفاعت تدارك آن خواهد كرد وبرين معنى گفته اند:

نماند بعصيان كسي درگرو ......... كه دارد چنين سيدى پيش رو
اگر دفترت از گناه پاك نيست ......... چو او عذر خواهت بود باك نيست

**درويش وايي:** چي دا قرائت روح المعاني هم راوړي دی. دی وايي چي ماعنتكم ابتدا كلام ای يهمه ويشق عليه عنتكم. دا ترجمه بنا پر دي ده چي كلمه د على لپاره د ضرر ده يعني ضرر رسوي او تكليف وركوي ستاسي عنت.

**درويش وايي:** چي وګوره څونډي تفاوت دی په منځ كي د ترجمې د حسين كاشفي رحمه الله او د ترجمې د روح المعاني پر دغه قرائت:

ع..... ببين تفاوت راه است از كجا بكجا.

**حَرِيصٌ عَلَيْكُم بِالْمُؤْمِنِينَ رَءُوفٌ رَّحِيمٌ**

او حرص لري دغه رسول ﷺ، صفت بعد صفت دی د رسول الله ﷺ پر ايمان ستاسي او پر اصلاح د شان ستاسي، موږ ولي مضاف مقدر كړی ای لفظ الايمان والاصلاح لان الحرص انما يتعلق بالافعال لا بالذوات كما لايخفى "بالمؤمنين آه" او پر مؤمنانو كه ستاسي عربو څخه وي او كه له بل قوم څخه وي شديد الرافة دی او مهربانه دی.

**سوال:** رؤف خو ابلغ دی تر رحيم كما علمت نو ترقي خو د ادنى څخه و اعلى ته، نو د څه حكمت د رؤف دمخه كړی؟

**ځواب:** لپاره د موافقت د آياتو اواخرو كما هو الاليق بشان القرآن العظيم الجليل.

**فائده:** بالمؤمنين چي متعلق په رؤف رحيم پوري دی دمخه يې كړی لپاره د حصر او اختصاص يعني لارأفة ولا رحمة الا بالمؤمنين واما الكفار فلا رأفة ولا رحمة لهم.

**فَإِن تَوَلَّوْا فَقُلْ حَسْبِيَ اللَّهُ**

كه دوی اعراض وكړي له ايمان څخه او لار د جنګ خپله كړي، نو ته ورته ووايه چي كافي دی ما لره خدای ﷻ يعني زما سره كومك وكړي په جنګ كي ستاسي سره، او خدای ﷻ دا وعده پوره كړه كما في بدر، وفتح المكة بل في جميع المحاربات الواقعة بين رسول الله ﷺ وبين جماعات الكفار.

**لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ**

نشته معبود بالحق پرته له ده، ومن شان المولى ان يعين عبده فهو كالدليل لما قبله "عليه توكلت" پوه سه چي تقديم د جار او مجرور لپاره د حصر دی ای

لا ارجوا ولا اخاف الا منه. او دی خالق دی د عرش عظیم.

**بوه سه:** چي تخصيص د عرش چي يې په ذکر سره وکړی لانه اعظم المخلوقات، که څه هم خدای ﷻ خالق د ټولو ممکناتو دی ولکل ذرة من ذرات العالم.

**درویش وايي:** چي له ابی بن کعب رضی الله عنه څخه روایت دی وايي چي اخير د ما نزل من القرآن هاتان الآیاتان يعني لقد جائکم رسول من انفسکم الی اخیر السورة هذا ماقاله المظهري رحمه الله، لکن صاحب د روح المعاني وايي چي بخاري او مسلم له براً بن عازب رضی الله عنه څخه روایت کړی دی، دی وايي چي اخير آیت چي نازل سوی دی دغه آیت دی "یستفتونک قل الله یفتیکم في الکلالة الآیة" او اخير سورت چي نازل سوی دی سورة برائة دی. او له ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دی چي اخيري آیت چي نازل سوی دی دا دی "واتقوا یوماً ترجعون فیه الی الله" او بعض راویان وايي چي ددې آیت د نزول او د وفات د علیه الصلوٰة والسلام تر منځ اتیا (۸۰) ورځي وې، او بعض وايي نیوي (۹۰) ورځي وې، روح المعاني د دغو روایاتو تر منځ د تطبیق کوشش کړی دی لکن د کدورته خالي نه دی، روح المعاني د بن کعب رضی الله عنه حدیث تر تنقید لاندي نیولی دی، دی وايي ویبعد ماروی عن ابی بن کعب رضی الله عنه چي ابن مردویه رحمه الله له سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه څخه روایت کړی دی چي رسول کريم ﷺ چي مدینې ته راغلی، نو د جهینه قبیله ورته راغله او علیه الصلوٰة والسلام ته يې وویل چي ته زموږ وطن ته راغلې موږ ته یوه وثیقه راکړه فأمنک وتأمنا چي موږ به تاته امن درکوو او ته به موږ ته امن راکوې. علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل لم سألتم هذا قالوا نطلب الامن (یعني من الجانبین) فانزل الله تعالی هذه الآیة یعني لقد جائکم الآیة والله اعلم بحقیقة الحال.

**فوائد شتی:** (۱) ابی داؤد روایت کوي چي علیه الصلوٰة والسلام وویل من قال حین یصبح وحین یمسی (یعني سهار او مابنام لا اله الا هو علیه توکلت وهو رب العرش العظیم اووه واره کفاه الله ما اهمه من امر الدنیا والآخرة واخرج ابن النجار في تاریخه عن الحسین رضی الله عنه، قال من قال حین یصبح سبع مراة حسبی الله لا اله الا هو آه سبع مرات لم یصبه ذالک الیوم وتلک اللیلة کرب (غم)

ولا غرق، او ابو الشیخ د محمد کعب څخه روایت کړی دی چي کوچنی لښکر د مسلمانانو د روم وخوا ته روان ؤ چي یو سړی ناببره له آس څخه راولوېدی او وروڼ بې مات سو، نو ملګرو دی په شان نه سوای وړلای او نه پر آس، نو آس یې دالته ورته وتاړه او یو څه دوډی او اوبه یې ورته کښېښولې او دوی څنی ولاړه، یو سړی ورته راغلی ورته وه یې ویل چي ته دلته څه کوې؟ ده ورته وویل چي زما وروڼ مات سو دلته ملګرو زه پرېښولم دوی ولاړه، هغه سړي راته وویل چي کښېږده لاس دي پر هغه ځای چي درد کوي او ووایه "فان تولوا فقل الآیة" ما چي پر هغه ځای لاس کښېښوی او مذکور آیت مي وو وایه وروڼ مي جوړ سو پر آس سپور سوم او په ملګرو پسي ور ورسېدلم.

(۲) فائدة: في وصف رؤف رحیم" علماً وایي چي دا دوه وصفه په مخلوق کي غیر له رسول الله ﷺ په هیڅ چا کي من العالم العلوي والسفلي نه دي جمع سوي. توجیهات الرواة، بعض روات وایي رؤف بالمطیعین من المؤمنین، رحیم بالمذنبین منهم، وقیل رؤف باقربائه رحیم باولیائه، وقیل رؤف بمن راه ﷺ رحیم بمن لم یره، ولیس في الاحادیث سند لهذه الاقوال والله اعلم.

(۳) فائدة: في وصف العرش بالعظیم.

**پوه سه**: چي عرش ته په لسانه د اهل الارصاد فلک الافلاک او محدد الجهات وایي او په مقدار د عظمت د عرش بېله خدایه هیڅ څوک نه دی خبر په حدیث شریف کي راغلي دي چي کره د مځکي نسبت وه اول اسمان ته لکه یوه حلقه په بیابان کي او دغه رنګه نسبت دی د اول اسمان وه دوهم اسمان ته او دغه نسبت دی د اوو اسمانو د کښته وه لوړ ته او د اووه سره اسمانو نسبت وکرسي ته کحلقة في فلاة او د کرسي نسبت وعرش ته هم نسبت د حلقه وفلات ته. او اهل ارصاد د حکما وایي چي دلاندي سطح د عرش ده لېري والي مقدار د مرکز عالم څخه چي په منځ کي د مځکي دی ثلاثة وثلاثون الف الف وخمس مائة واربعة وعشرون الفاً وستمائة وتسع فراسخ، او د لوړي سطح مقدار یې وډې اندازې ته رسېدلی دی چي بېله خدایه الذي لایغیب عن علمه ذرة من ذرات العالم هیڅ څوک علم نه پر لري کذا في روح المعاني وشرح الچیغني.

(۴) بعض صالح بندگانو ته تنگي د رزق د عيال حاصله سوه نو توصل بذاته الشريفة وخداى ﷻ ته وكړي في سعة الرزق، نو ماښام يې عليه الصلوٰة والسلام په خوب ولېدى عليه الصلوٰة والسلام وه هغه ته وويل لاتحزن يا فلان چي صبا ورځ سي ورسه وه علي بن عيسى ته چي وزير الملک دى او زما سلام ورته ووايه او دا نښاني ورته ووايه چي تا زما له قبر سره پر ما څلور زره واره درود ويلى دى، تاته به سل ديناره دركړي، چي سهار سو هغه صالح سړى على بن عيسى الوزير ته ورغلى او د خوب قصه يې ورته وكړه، نو د علي بن عيسى سترگي د اوښكو ډكي سوې نو دا يې وويل صدق الله تعالى ورسوله وصدقت انت يا رجل، دا څلور زره واره درود زما ويل په نېږ د قبر انور نبوي ﷺ بېله خدايه او عليه الصلوٰة والسلام هيڅ څوک نه دى په خبر، نو پر مريي يې رږغ وكړى چي هغه هميانى راواخله، مريي هميانى ورته راوړه، نو علي بن عيسى درې سوه ديناره، څني راوكښل، سل ديناره يې وركړه او ورته ويې ويل چي درواخله دا خو د عليه الصلوٰة والسلام پر ما باندي حواله ده او بل سل ديناره يې وركړه او ورته ويې ويل چي دا ستا زېرى دى د قبول د درود زما في حضرت النبي ﷺ او دا سل ديناره زما هديه ده وتاته، نو صالح سړي د درې سوه ديناره سره د علي بن عيسى له كوره څخه راووتى او غم د مسكنت او د فاقي يې دفع سو، او خداى ﷻ د علي بن عيسى الوزير سره په مقابل كي د احسان دده د عبد صالح سره دا احسان وكړى چي د وزارت د چوكۍ څخه يې استعفاً وركړه او د تجرد لاره يې خپله كړه او هجرت يې مكې مكرمې او مدينې منورې ته وكړى.

**درويش وايي**: چي ددې حكايت څخه دا معلومه سوه چي رسول الله ﷺ حياً وميتاً بالمؤمنين رؤف رحيم او دا هم واضح سوه چي عليه الصلوٰة والسلام د حاضرينو د قبر انور صلوٰة او سلام د مؤمنانو اوري لانه قد ثبت بالاحاديث الصحيحة واقوال الائمة رحمهم الله انه عليه الصلوٰة والسلام حي في قبره وان الله حرم على الارض ان تاكل اجساد الانبياء ﷺ او هغه مؤمنان چي له روضه مطهره څخه غائب وي.

فقد ورد في الحديث الصحيح چې خدای ﷻ يو جماعت د ملكو پيدا كړي دی چې يبلغوني من امتي السلام وكذا الصلوة. او د علي بن عيسى الوزير د حال څخه د هغه حديث معنى ښكاره سوه چې حديث قدسي دی من تقرب الي شبراً تقربت اليه زراعاً الى اخير الحديث.

(۵) فائده: د لقد جائكم رسول تر اخيره د سورت په فضيلت كي او د درود په فضيلت كي.

**پوه سه:** چې ابوبكر بن مجاهد رحمه الله چې د تعليم د قرآنت لوی استاذ ؤ يوه ورځ وده ته راغلی ابوبكر شبلي قدس سره، نو چې شبلي رحمه الله و مسجد ته د معلم القرآن ورننوتی، نو معلم القرآن ورته ولاړ سو. نو ورسته چې شبلي رحمه الله ملاقات وكړی ولاړی شاګردانو د مقري ابوبكر بن مجاهد رحمه الله ده ته وويل چې تاته چې به علی بن عيسى الوزير راغلی ته به نه ورته ولاړېدې. دې شبلي ته چې په لباس كي د يو ملنګ ؤ ولي ولاړ سوې. نو معلم القرآن وشاګردانو ته وويل چې زه ولي ولاړ نه سم وه هغه چاته چې عليه الصلوٰة والسلام يې د تعظيم سفارش كړی دی، ما عليه الصلوٰة والسلام په خوب وليدی او ماته يې وويل يا ابابكر سبا به درسي وه تاته يو سړی له اهل جنت څخه يعني په نامه د شبلي، نو د هغه تعظيم او اكرام وكړه. ابوبكر المقري وايي چې دوې شپې وروسته ما عليه الصلوٰة والسلام په خوب وليدی فقال اكرمک الله يا ابابكر كما اكرمت رجلاً من اهل الجنة. نو ما ورته وويل يا رسول الله ﷺ په څه شي پيدا كړه شبلي دا درجه د قرب وتاته؟ عليه الصلوٰة والسلام راته وويل چې شبلي يو سړی چې تر پينځو لمونځو وروسته ما يادوي يعني درود راباندي وايي او وروسته بيا وايي "لقد جائكم رسول من انفسكم" تر اخيره پوري د سورت. د اتيا كالو رايسته افلا اكرم من فعل هذا. كذا في عقد الدرر.

**پوه سه:** چې دا حديث چې صاحب كشاف ذكر كړی دی او هم قاضي بيضاوي او هم مولى ابو السعود رحمهم الله من اجلة المفسرين په دې كي علماً ؤ ډېر بحث كړی دی، بعض علماً يې ثابت بولي او بعض يې نفي كوي لكه امام صفاني

وغیره. او نورو علماؤ صفاني رحمه الله ته جوابونه ورکړي دي.

**درویش وايي**: چي چونکه دا بحث د نفي او اثبات د پر طویل ؤ نو ځکه له راوړلو څخه یې درویش معذرت غواړي.

**درویش وايي**: چي سورة التوبة په ورځ د یکشنبې پر نهه بجې د سهار ورځ سه شنبه د عید الضحی پای ته ورسېدی ولله الحمد اوس شروع د سورت یونس کېږي.

**التجاء**: خدایه ته توفیق راکړې چي ددې سورت تفسیر هم په خیر او عافیت وپای ته ورسېږي والله الموفق.

لا إله إلا الله محمد رسول الله




تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا سکین او
pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

احمد حمداً یلیق بشانه وجلیل نعوته وجمیل صفاته والصلوة والسلام علی سید البرية خير الخليقة وآله وصحبه الكملة الجليلة واطلب من الله عزوجل التوفيق والرحمة.

سورة يونس مأة وتسع آية مكية الا ثلث آيات فان كنت في شك فمدنية.

سُوْرَةُ يُوْنُسَ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ مِائَةٌ وَّ تِسْعُ اٰيَاتٍ وَّاَحَدَ عَشَرَ رُكُوْعًا — بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

الٓرٰ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْحَكِيْمِ ①

دديِ متشابهاتو چي په اوائلو کي د بعضې سورتو راغلي دي تحقيق او اختلاف د ائمة رحمهم الله په دې آيتو د سورة البقرة په تفسير کي تېر سو. فلا نعيده الى اخير تفسير الفقير ان شآ الله تعالى.

"تلک" اشاره ده وهغو آيتو ته چي ددې سورت په ضمن کي به راسي، يا اشاره ده وهغو آيتو ته چي په قرآن کريم دي، او بعض مفسرين رحمهم الله وايي چي اشاره وهغو آيتو ته ده چي په نورو سورتو کي تر دې سورت دمخه نازل سوي دي.

**پوه سه:** چي "تلک" مبتدا ده او "آيات الكتاب" يې خبر دی، نو "تلک" که څه هم مبني دی لکن محلاً مرفوع دی. او اضافت د "آيات" و "كتاب" ته په معنى د من ده، او "حكيم" د كتاب صفت دی، توصيف په حکيم سره يې له دې سببه دی چي مشتمل پر حکم دی، او يا له دې جهته دی چي کلام د حکيم رب دی. او که "تلک" اشاره سي الى مافي ضمن هذه السورة چي محکم دی لم ينسخ منها شئ او محکم عن الكذب، او حسن بصري رحمه الله وايي چي په دې سورت کي حکم سوی دی بالعدل والاحسان وايتآ ذی القربى والانتهآ عن الفحشآ والمنكر والبغي، وحكم فيها بالجنة لمن اطاعه وبالنار لمن عصاه.

**درويش وايي:** چي پر هر تقدير د حسن رحمه الله پر ترجمه حکم پر کتاب باندې په حکيم سره په اعتبار سره د بعض آيتو ددې سورت لان ما ذكره الحسن رحمه الله بعض احكام وآيات لهذه السورة.

**حکايت:** امام محمد بن الحسن الشيباني رحمه الله يو وخت د مفلسی له کبله نان وای ته ورغلی چي ماته درې ډوډۍ راکړه زه به تاته د فقهي شريفي درې

مسئلې دروښييم چي تاته به په آئينده کي په ښه درسي! هغه ورته وويل چي زه ډوډۍ په روړيو خرڅوم په مسئلو يې نه خرڅوم.......... بيت:

قيمت دُر گران مايه چه دانند عوام........ حافظا دُر يکدانه مده جز بخواص

خير يو وخت نان واى لور ودول، د يو چا سره يې د لور د کور او د نورو اسبابو په باره کي خبرې کولې، نان واى وويل که ما تولـه مافي الدنيا لـه اسبابو څخه د حاجت ولور ته ورنه کړل پر ما دي په درې طلاقه سره ماينه طلاقه وي، نو بوار يې فکر سو چي جميع ما في الدنيا خو ستا لـه طاقتـه پوره نـه دي، نو پر ملا يانو گرځېدى، ټولو ملا يانو ورته وويل چي پر تا باندي ماينه حتماً طلاقه ده، اخير نان واى امام محمد الشيباني رحمه الله ته رغلى واقعه يې ورته بيان کړه، امام محمد رحمه الله ورته وويل چي هغه ورځ چي ما ستا څخه درې ډوډۍ په تعليم د درو مسئلو غوښتلې يوه مسئله دغه ستا د پوښتنې ځواب ؤ او دوې نوري وې، لکن چي تا په هغه ورځ اهانت امېزه ځواب راکړى، نو زه خپل د مسائلو د تعظيم لپاره ستا څخه ددغې مسئلې پر ځواب باني زر ديناره غواړم، نان واى مجبور ؤ زر ديناره يې ورکړل، اما محمد رحمه الله ورته وويل چي مصحف شريف دي په کور کي لور تـه ورکړه، نو کـه نور شي ورکوې او کـه يې نـه ورکوې لـه طلاقه څخه خلاص يې، د امام محمد رحمه الله معاصرو علماؤ لـه ده څخه پوښتنه وکړه چي دا سړى ولي د مصحف په ورکولو سره لـه طلاقـه خلاص سو؟ ده ځواب ورکړى چي خداى پاک ويلي دي "ولا رطب ولا يابس الا في كتاب مبين" نو قرآن مجيد قائمقام د ټوله مافي الدنيا دى، نو علماؤ دده ځواب قبول کړى.

علم دريست نيک باقيمت......... جهل درديست سخت بې درمان

**يوه سه:** چي ابن جرير رحمه الله بالواسطه لـه ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت کړى دى چي خداى پاک محمد ﷺ رسول راواستاوه، د مکې عربو دده لـه رسالت څخه انکار وکړى، او دوى ويل چي خداى جل جلاله اعلى دى لـه دې څخه چي بشر دي رسول وټاکي؛ فنزلت هذه الآية.

## أَكَانَ لِلنَّاسِ عَجَبًا أَنْ أَوْحَيْنَا

آيا خلگو ته عجيب ايسي (استفهام لپاره د تعجب دی او "عجباً" د کان خبر دی، او د "کان" اسم "اوحينا" دی) دا چي موږ وحي وکړې، يعني بايد دوی دا تعجب نه وای کړی، ابو البقا رحمه الله وايي چي لام په للناس کي متعلق دی په محذوف پوري چي حال دی له "عجباً" څخه والتقدير اکان عجباً واقعاً للناس.

**پوه سه:** چي دليل د انکار د تعجب ددوی دادی چي عادت د خدای ﷻ جاري دی د آدم عليه السلام له وخته څخه چي رسولان به د بشر له جنس څخه وي قال الله تعالی "وما ارسلنا من قبلک الا رجالاً" او د ملکو قديماً او حديثاً دا عادت دی چي کتاب او خطاب ددوی په ژبه دي مخاطبين وي، او رسول ددوی به له جنس څخه د من ارسل اليهم وي تا چي د مناسبت نسبي په سببه ددوی تر منځ افاده او استفاده امکان ولري يدل عليه قوله تعالی "قل لو کان في الارض ملائکة تمشون مطمئنين لنزلنا عليهم ملکاً رسولاً صدق الله العظيم.

## إِلَىٰ رَجُلٍ مِّنْهُمْ

ويوه سړي ته له رجال څخه ددوی.

**فائده:** د "رجل" له لفظ څخه دا معلومه سوه چي ښځي نبي نه سي کېدای لان وظيفة الرسول تبليغ الرسالة في مجامع الناس ومبني حال النساً علی التستر والشهوة بين الرجال والنساً مانعة لکونهن رسولاً اليهم کما لايخفی، د تعجب خبره داده چي کفار د مکي جمادات يعني بتان د زرو يا د اوسپني يا د لرګي په الوهيت او معبوديت منله، او رسالت ته د بشر يې تعجب کاوه"..ع:، بدين عقل ودانش بايد ګريست"" او دوی به دا هم ويله چي که وحي راتلای، نو خو يو عظيم الشان او سرمايه داره ته به د مکې راغلي وای يا د طائف "لو لا نزل هذا القرآن علی رجل من القريتين عظيم" نو پر يتيم د ابو طالب ولي وحي راغلې، او دوی الوهيت او معبوديت په جماداتو کي څرنګه مني چي هغه جمادات بتان خو هم من القريتين عظيم نه وه، بلکې يتيم د ابو طالب اعلی درجةً من الجمادات و او رسالت تر الوهيت ډېره کمه درجه ده.

**پوه سه:** چي ددوی مراد له رجل عظيم څخه وليد بن مغيره و په مکه کي چي

لوی سرمایه دار ؤ، او بل مسعود بن عمرو الثقفي ؤ په طائف کې او دوی جاهلان نه پوهېدله چې رسالت خو د خدای پاک رحمت دی، او د خدای ﷻ رحمت په سرداری، یا په سرمایه داری پورې څه اړه نه لري، نو بل ځای خدای پاک پر دوی باندې رد کړی دی "اهم یقسمون رحمة ربک الآیة"

## اَنْ اَنْذِرِ النَّاسَ وَبَشِّرِ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْٓا

**پوه سه:** چې کلمه د "ان" ومدخولها مفسره د مفعول مقدر دي ای اوحینا الیه شیئاً هو ان انذر الناس، نو مقدر چې شیئاً دی د اوحینا مفعول دی، چې وېیروه خلگ یعني ټوله خلگ لان الانذار یعم جمیع الناس المؤمن والکافر، ولې انذار د مؤمن د تقصیر في العمل څخه دی، او انذار د کافر له کفر څخه دی یعني کافر وېیروه له عذاب همېشه په اور کې، او مؤمن وېیروه له دې څخه چې درجه به دې په جنت کې کښته وي، او زېری وکړه هغو کسانو ته چې ایمان یې راوړی وي په دار النعیم جنت سره، بشارت یې خاص کړی په مؤمنانو سره لان الکافر لیس باهل البشارة؟

**فائده:** انذار یې مقدم کړی اما لعموم متلقة کمامر آنفاً واما لان التخلیة بالخاء المعجمة متقدمة علی التحلیة بالحاء المهملة، ولې مسگر چې دېگ سپینوي لومړی چې یې له خیرو څخه پاک نه کړي کلا یېن نه پورې موړي، او خونه چې له خاور او خاشاک څخه پاکه نه کړي قالین نه پکښې اواروي، او نور مثالونه هم ډېر ستته.

## اَنَّ لَهُمْ قَدَمَ صِدْقٍ عِنْدَ رَبِّهِمْ ؕ

بتقدیر الباء ای بان لهم، نو دا به معفول ثاني د بشر سي.

**پوه سه:** چې مراد له قدم صدق څخه رتبه رفیعه ده، یسبقون الیها ویقیمون فیها، والمراد بها الجنة په نېز د رب ددوی، تعبیر یې په قدم سره چې وکړی له دې کبله چې وړاندې والی وه شي ته په پښو کېږي، او اضافت یې وصدق ته وکړی له دې سببه چې دا وعده رشتیا ده، او لپاره د تنبیه پر دوی چې دوی چې دا رتبه رفیعه پیدا کړه په صدق القول او نیت سره، او بعض مفسرین وایي چې مراد له قدم څخه تقدم ددوی دی په دخول سره د جنت لقوله علیه الصلوة

والسلام نحن الآخرون السابقون (یعني موږ اخیر یو په دنیا کي او دمخه یو په دخول کي د جنت) ولقوله علیه الصلوة والسلام ان الجنة محرمة علی الانبیا حتی ادخلها انا، ومحرمة علی الامم حتی تدخلها امتي (جنت حرام دی حرام دی پر انبیا ﷺ تر هغه وخته پوري چي داخل نه سم جنت ته زه، او حرام دی جنت پر نورو امتو چي داخل نه سي وجنت ته زما امت) ابو عبیده رضي الله عنه وایي چي هر دمخه کار که خیر وي او که شر هغه ته عرب قدم وایي یقال الفلان قدم في الاسلام ای سابقة في الاسلام ولفلان عندي قدم صدق او سوء.

قَالَ الْكٰفِرُوْنَ اِنَّ هٰذَا لَسٰحِرٌ مُّبِيْنٌ ۝

کفارو وویل چي په تحقیق دغه سړی سحر گر دی ښکاره، له هذا څخه ددوی مراد علیه الصلوة والسلام دی، نو دا نوم ولي دوی پر کښېښو؟ له دې سببه چي دوی ولیدلې معجزې د علیه الصلوة والسلام چي خارق العادة وې، او قرآن معجز یې واوریدی چي دوی په مثل د اقصر سورت راتگ نه سوای کولای، نو تعنتاً او عناداً یې د ساحر نوم پر کښېښو، ددوی مراد دا وُ چي موږ چي اتیان بالمثل نسو کولای پر موږ یې سحر وکړی، او بعض له قرآ سبعه وو څخه "لسحر" بېله الفه وایي، نو پر دې تقدیر هذا اشاره وقرآن ته ده، یعنون چي دا قرآن په خپله سحر دی چي موږ یې معارضه او اتیان بالمثل نسو کولای، دا یې د ځان لپاره یو عذر باطل وایه او له ځان څخه یې دفع د خجالت کوله.

اِنَّ رَبَّكُمُ اللّٰهُ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فِيْ سِتَّةِ
ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ

په تحقیق ستاسي تربیه کوونکی الله ﷻ دی هغه چي پیدا کړي یې دي اسمانونه یعني اووه، او مځکه په شپږ ورځي کي وروسته غالب سو پر عرش چي لو یه بنا ده یعني هغه یې هم پیدا کړه.

**یوه سه:** چي اهل السنة والجماعة اجماع کړې ده که متقدمین دي او که متاخرین دي پر دې باندي چي خدای ﷻ منزه دی له صفاتو څخه د اجسامو او له صفاتو څخه د حدوث، په دې کي مجسمه مخالف دي، هغه وای چي خدای جسم

دی او اعضاً لري من الوجه واليدين والقدم، نو دوی آیات وارده په دې باره کې او یا احادیث موجوده په دې باب کې محمول پر ظاهر بولي او تأويل روا نه بولي او نه تفويض د ورته آياتو او احاديثو وخدای او رسول ته کوي.

او اهل سنت په دې باب کې دوې فرقې دي، يو اهل التأويل دي چې د ورته متشابهاتو تأويل کوي بما يناسب بكبريائه ﷻ لکه دلته چې تأویل د استوا په استيلاً او غلبه سره کوي، نو خدای پاک چې پر خلق د اعظم المخلوقات استيلاً وکړه او خلق يې کړی، نو پر ټولو اشياؤ قادر دی وهذا رائ المتاخرين من اهل السنة والجماعة. ومنهم المجدد رحمه الله وهذا الرائ ادفع لشغف الجاهلين، ولي چي دوی په تفويض کې د علم د ورته متشابهاتو وايي، نو فائده د نزول د متشابهاتو څه ده؟

او سلف او متقدمين صالحين رحمهم الله له هر قسم تأويل څخه ډډه کوي او تفويض د علم د ورته متشابهاتو وخدای ﷻ ته کوي يعني وايي الله اعلم بمراده به ونحن نؤمن بما اراد الله ﷻ وهذا المذهب خال عن الخطأ في التأويل.

محمد بن الحسن الشيباني رحمه الله وايي چې فقهاً ټوله له شرق څخه تر غرب پوري متفق دي چې ايمان بالقرآن والاحاديث التي جائت فيها تلك المتشابهات عن رسول الله ﷺ في صفات الرب جل مجده فرض دی من غير تفسير ولا وصف ولاتشبه فمن فسر شيئاً من ذالک فقد خرج مماکان عليه النبي ﷺ وفارق الجماعة فقيه ابو جعفر الطحاوي رحمه الله وايي العرش الكرسي كما بين الله في كتابه وهو تعالى مستغن عن العرش وما دونه محيط بكل شيئ يعني علماً وفوقه يعني قدرة.

**درويش وايي:** چې منشأ د اختلاف د سلف صالحينو رحمهم الله چې تفويض: علم د ورته متشابهاتو وخدای پاک ته کوي او د تأيل کونکو چې مثلاً د استوا على العرش په استيلاً او غلبه سره کوي هغه آيت دی چې د متشابهاتو په باره کې خدای پاک وايي (مايعلم تأويله الا الله، والراسخون في العلم يقولون الاية) نو سلف الصالحين پر الا الله باندې وقف لازم بولي، او "الراسخون" مبتدأ بولي "يقولون" يې خبر بولي، او تأويل و الا الله، والراسخون عطف بولي

پر لفظ الله باندي، والتقدير عندهم لا يعلم تاويله الا الله والراسخون في العلم او يقولون حال له راسخون څخه بولي، والله اعلم بالصواب وعنده ام الكتاب.

**درويش وايي:** چي مظهري رحمه الله ضد او نقيض قولونه رانقل کړي دي، دده له کلام څخه واضح معلومېږي چي دی له اهل تاویل څخه نه دی، او نه د سلف صالحين پر رقم لکه ده چي يې مذهب هم رانقل کړی دی كما يظهر من مطالعة تفسيره في هذا المقام.

**درويش وايي:** ويرحم الله السيد محمود الآلوسي البغدادي رحمه الله حيث قال في تفسيره روح المعاني في تفسير قوله تعالى "ثم استوى على العرش" على المعنى الذي اراده سبحانه آه" وهذا مذهب السلف الصالحين كمامر، بيا يې ويلي دي وقيل الاستوٰی على العرش مجاز عن الملك والسلطن آه، وقيل الاستوا بمعنى الاستيلا وارجعوه الى صفة القدرة آه، او وروسته يې ويلي دي وانت تعلم ان هذا وامثاله من المتشابه وللناس فيه مذاهب وما اشرنا اليه (يعني قوله على المعنى اراده سبحانه) هو الذي عليه اكثر السلف من الامة رضي الله عنهم (چي درويش هم دغه مذهب د سلف صالحينو بيان کړی) ثم قال واختار كثير من الخلف ان المراد بذالك الملك والسلطان (يعني الاستيلا والغلبة) وروسته يې ويلي دي وذكره لبيان جلالة ملكه وسلطانه سبحانه الخ.

**درويش وايي:** چي بغوي رحمه الله چي دا معنى مذهب د معتزله وو بللی دی لا معنى له، ابن الشيخ وايي ومعنى الاستوا على العرش الاستيلا عليه بالقهر (اى الغلبة) ونفاذ التصرف فيه وخص العرش بالاستوا عليه لكونه اعظم المخلوقات فيفيد انه استولى على مادونه.

**فائده:** آلوسي رحمه الله وايي چي مراد له "ستة ايام" څخه مقدار د شپږو ورځو دی چي له ايام څخه د دنيا دي، او خدای پاک ته يې مقدار په علم ازلي کې معلوم ؤ، ولا يمكن آه ان يراد باليوم اليوم المعروف، ولي چي يوم معروف خو عبارت دی له دې څخه چي لمر فوق الارض وي وهو مما لا يتصور تحققه حين لا ارض ولا سما واليوم بهذا المعنى (چي لمر فوق الارض وي) النهار المفرد، وقال

ويطلق اليوم ايضاً على مجموع ذالک النهار وليلية (چي په پښتو يې شواروز بولي) وارادة هذا المعنى ايضاً ممكن ههنا انتهى قول الآلوسي رحمه الله مع زيادة.

**پوښتنه**: خداى پاک په بل ځاى کې د قرآن مبارک فرمايلي دي (اذا اراد امراً فانما يقول له کن فيکون) نو په خلق کې د اسمانو او مځکې د شپږو ورځو د تدريج څه حکمت دى؟

**ځواب**: هو! خداى ﷻ قادر ؤ چي په يوه لمحه کې يې دا خلق کړې واى لکن لپاره د تعليم د تدريج وبندگانو ته يعني چي دوى دي هم په يو کار کې له تلوار څخه کار نه اخلي که قول وي که عمل بلکې په عواقبو کې د کار دي فکر وهي، علماً رحمهم الله وايي چي په ټولو کې يعني عدم العجلة لازم دى مگر نه په توبه کې له گناه څخه او په ورکړه کې د پور چي پر سرې باندې وي حتى الوسع دي کوشش کوي چي ژر يې ورکړي، او د مېلمه په ډوډۍ ورکولو کې مثلاً که چا ډوډۍ د ماښام پر دوولس بجې خوړله چي مېلمانه راغله وختي ډوډۍ ورکړه، ولي چي شايد دوى به ډېر وږي وي، او بل په ورکړه کې د ميت د غسل او په دفن کې د هغه تلوار په کار دى، داسي به نه کوي چي فلانى نه دى راغلى او دفن ورته وځنډوي، او بل په نکاح کې ځنډ نه دى په کار د پاکره لنور وغيره دي تلوار کوي لخوف الفتنة اى الزنا وغيره، والغسل من الجنابة الا بعذر مثلاً البرد او العود الى الوطي، جلال الدين الرومي په مثنوي کې وايي :

مکر شيطانست تعجيل وشتاب ..... خوى رحمانست صبر واحتساب

(يعني تلوار نه کول) کما في خلق السموات والارض.

باتانى گشتِ موجود از خدا ........ تابشش روز اين زمين وچرخها

ورنه قادر بود کزکن فيکون ........ صد زمين وچرخ آوردى برون

اين تانى از پى تعليم تست ........ طلب آهسته بايد بى شکست

**مقوله**: اذا تجاوز السر من اثنين لايمکن کتمانه. چي تېر سي پټ حال تر دوو بيا يې پټوالى ممکن نه دى، ددې مقولې په معنى بعض خلک نه پوهېږي دوى دا خيال کوي چي پټه خبره که دې يوه يا دوو ته وکړه خو د پټوالي امکان

يې سته، او كه دي دريم ته وكړه بيا نو نه پټيږي، لكن دا مراد نه دی بلكې مراد له اثنينو څخه دوه شوندان دي چې معنی يې داده چې تر دوو شونډانو خبره رايستل بيا نه پټيږي. نو بايد په خبرو كولو كې هم انسان تاني كوي او فكر دي پكښې وهي چې دا خبره د كولو ده او كه نه.

يُدَبِّرُ الْأَمْرَ

خدای ﷻ تدبير كوي د امورو د مخلوقاتو، والتدبير النظر في عاقبة الامر حتى يحصل محمودة العاقبة، والحاصل خدای پاک امر د كائناتو څېړي حسب مايقتضيه الحكمة. له عمر بن مرة څخه روايت دی چې تدبير د دنيا د امورو په امر د خدای ﷻ د څلورو ملكو په واک كې دی (۱) جبرئيل ﷺ پر بادو او جنگو مسلط دی وله اتباع كثيرة من الملائكة (۲) ميكائيل ﷺ پر بارانو او نباتاتو څېرندوی دی، وله اعوان ايضاً (۳) عزرائيل ﷺ چې د ارواحو پر وړلو مقرر دی وله انصار كثيرة (۴) اسرافيل ﷺ هغه فوق الذكر ملكو ته راوړي هغه كارونه چې اول درې ملكې په امر سوي وي من عند الله العزيز الجبار.

مَا مِن شَفِيعٍ إِلَّا مِنۢ بَعْدِ إِذْنِهِۦ

نسته شفاعت كونكی د هيڅ چا في وقت من الاوقات، مگر نه په وخت كې د اجازې د شفاعت تر لاسه كولو د خدای ﷻ څخه. له دې څخه دا معلومه او متيقنه سوه چې شفاعت بعد الاذن سته كما يدل قوله تعالى ايضاً في آية الكرسي (من ذا الذي يشفع عنده الا باذنه) والاحاديث في الباب الشفاعة للمؤمنين العاصين وان ماتوا بلا توبة كثيرة شهيرة متواترة المعنى قال رسول الله ﷺ شفاعتي لاهل الكبائر من امتي، وفي هذه الآية رد القول النضر بن الحارث اذا كان يوم القيامة يشفعني اللات والعزى يعني كه قيامت راسي، نو زما شفاعت به لات او عزى وكړي وانما قلنا ذالك لانهم ينكرون القيامة.

ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ

"ذالک" مبتدا ده او لفظ الله يې خبر دى يعني دغه موصوف بالصفات المذكورة في الآيات السابقة الله عزوجل دى يعني مستحق د الوهيت او عبادت "ربكم" خبر ثاني لذالكم يعني ستاسي تربيه كونكى د مور له رحم څخه نيولې بيا تر حلوله د اجل معلوم مقدر، نو چونكه تربيه كونكى بل نشته، نو يې دا پر بنا كړه.

فَاعْبُدُوهُ ۚ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿٣﴾

نو تاسي يوازي او يوازي عبادت د خداى ﷻ كوئ لا غيره، من انسان او ملک او شمس او كوكب او اللات والعزى وغيرهما من الجمادات والاصنام. آيا تاسي مشركان پند نه اخلئ، د "تذكرون" اصل تتذكرون ؤ يوه تا يې څني حذف كړې ده، يعني انسان كه لږ فكر په انفس او آفاتو كي وكړي دا به ورته معلومه سي چي مستحق د عبادت خداى ﷻ دى دون غيره.

إِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا ۖ

خاص وخداى ﷻ ته ده رجوع ستاسي د ټولو (نو مرجع مصدر ميمي دى) يا ځاى د رجوع دى، نو ظرف دى يا په مرګ سره يا په قبر كي او يا په ورځ د قيامت وفي الحديث الصحيح القبر روضة من رياض الجنة او حفرة من حفرات النيران او كما قال ﷺ، نو ددې مرجع لپاره يو تياري وكړئ بالايمان وبعده بالاعمال الصالحة والكف عن المعاصي.

**يوه سه:** چي "جميعاً" منصوب دى على الحالية من الضمير المجرور في مرجعكم، ولي دغه ضمير مجرور فاعل په معنى كي فلا يرد ما يتوهم اى اليه رجوعكم مجتمعين.

وَعْدَ اللَّهِ حَقًّا ۚ

اى وعد الله البعث بعد الموت وعداً "حقاً" اى كائناً لاشک فيه.

**يوه سه:** چي په اصطلاح د نحاتو وعد الله مؤكد لنفسه دى، ولي چي دا قول د خداى پاک "اليه مرجعكم" وعده بالبعث بعد الموت بل احتمال نه لري، او "حقاً" مصدر مؤكد لغيره بولي يعني مادل عليه وعد الله وهو مامر من وعد الله البعث

بعد الموت، ولي چي دې جملې لره نظر ونفس مفهوم ته دی مع قطع النظر عن الواقع احتمال د غیر الحقیة هم سته لانها حکایة والحکایة یحتمل الصدق والکذب بالنظر الی نفس المفهوم کقولنا الاربعة زوج فافهم.

إِنَّهُۥ يَبْدَؤُا۟ ٱلْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُۥ لِيَجْزِىَ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ بِٱلْقِسْطِ ۚ

خدای ﷻ ابتدا ده، ده خلق د مکلفینو کړی دی بالحیوة في الدنیا. نو دا جمله مستانفه ده "ثم یعیده" یعني بعد الموت بالحیوة الاخروي وهي في یوم القیامة تاچي جزا ورکړي وهغو کسانو ته چي ایمان یې راوړی وي او عمل یې کړی وي د ښو کارو من الفرائض والواجبات وغیرها په قسط یعني په عدل سره. یا معنا دا ده چي خدای پاک ثواب بالعدل ورکوي لانه لاظلم الیوم. یا معنا دا ده چي په مقابل کي د عدالت ددوی په امورو کي خپل چي پر صراط مستقیم باندي قائم ده.

وَٱلَّذِينَ كَفَرُوا۟ لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيمٍ وَعَذَابٌ أَلِيمٌۢ بِمَا كَانُوا۟ يَكْفُرُونَ ۝٤

او هغه کسان چي کفر یې کړی وي په دنیا کي دوی لره د غایت تندي په مقابل کي اوبه دي چي په نهایت حرارت کي به وي او نور عذاب مولم هم سته په سبب ددې چي دوی په دنیا کي کفر کاوه.

**پوښتنه:** خدای ﷻ د بدا الخلق او د اعادې په ورځ د قیامت لپاره یې لیجزي الله آه چي لام د غایت او د حکمت یې پر داخل کړی او د کافرانو لپاره یې عنوان بدل کړی یعني داسي یې وویل "والذین کفروا آه" یعني داسي یې نه وویل لیجزی الله للکافرین بشراب من حمیم ﷺ؟

**ځواب:** په دې تغیر کي د عنوان تنبیه پر دې ده چي اصل مقصود د اعادة بعد الموت څخه ثواب ورکول دي او عقاب د کافرانو مقصود بالعرض دی چي د سبب څخه د سوء اختیار ددوی کفر لره په دنیا کي منځ ته راغلی.

هُوَ ٱلَّذِى جَعَلَ ٱلشَّمْسَ ضِيَآءً وَٱلْقَمَرَ نُورًا وَقَدَّرَهُۥ مَنَازِلَ

خدای ﷻ هغه ذات مقتدر دی چي گرځولی یې دی لمر ضیا او سپوږمی نور.

**پوښتنه:** چي حمل د ضیا او نور پر لمر او پر سپوږمی مبالغة لانهما

مصدران کړزيد عدل او يا مجاز دی په حذف د مضاف ای ذات ضيأً وذات نور او يا ضيأً په معنی د مضئ ده او نور په معنی د منور دی، اول ته مجاز في النسبة وايي او دويم ته مجاز بالحذف وايي او دريم ته مجاز في اللغة وايي.

**فائده:** د ضوء او نور تر منځ په نسبت کي قديماً او حديثاً اختلاف دی بعض وايي چي هغه رڼا چي بالذات وي هغه ضيأً بولي لکه د لمر رڼا، او چي بالعرض وي هغه ته نور وايي لکه د سپوږمی رڼا لان نور القمر مستفاد من نور الشمس فالنسبة بينهما التباين. او بعض علمأ وايي چي نور اقوی دی تر ضوء لقوله تعالى الله نور السموات والارض. فهو غلط فحش لان معنى النور في الآية المذکورة منور السموات والارض في النهار بالشمس وفي الليل بالقمر.

**فائده:** د "ضيأ اصل ضواأ ؤ، لانه مشتق من الضوء وهو اجوف واوي، نو واو يې په يأ بدل کړی لکسرة ماقبلها.

**فائده:** في اشرح التقويم ان لفظ الشمس ماخوذ من شمسة القلادة چي هغه لوی غمی او بیش قیمته غمي ته وايي په غارګی. کي چي په منځ کي د غارګی وي. نو لمر چونکه په منځ کي د اوو ستورو دی ولي چي لمر په څلورم اسمان کي دی دري ستوري سياري يې لوړي دي او دري يې کښته دي، له دې سببه يې شمس بولي.

**درویش وايي:** چي دا پر اصطلاح د فلاسفه مبني دی، روح المعاني وايي وهذا امر ظني لاشاهد له من الاثار النبوية ﷺ.

**يوه سه:** چي مفسرين رحمهم الله تولـه وايي چي ضمير د "قدره" يا راجع دی ولمر او سپوږمی. ته په تأويل د کل واحد منهما والمعنى قدر الله كل واحد منهما منازل او قدر کل واحد منهما ذا منازل او يا ضمير راجع دی وقمر ته يوازي، وجه التخصيص چي احکام تشريعيه من الصوم والزکوة والحج ټوله مربوط دي په سير پوري د قمر څکه خدای پاک وايي "لتعلموا عدد السنين" يعني چي دوولس مياشتي قمري تېري سي. نو يو کال پوره سو لکه هم دا وس سنه هجري نبوي ﷺ له مکې مکرمې څخه ومدينې منورې ته سنه (۱۴۲۹ هـ)

ده بالسنين القمرية وبالاشهر والسنين الشمسية اقل من ذالک بکثیر في الحال الحاضر . او تفاوت په منځ کي د قمري کال او د شمسي کال لس ورځي او يوولس ساعته او يوه دقيقه دی. ولي چي قمري کال دري سوه او څلور پينځوس ورځي او اته ساعته او اته څلویښت دقيقي دی. او شمسي کال دري سوه او پينځه شپیته ورځي او پينځه ساعته او نهه څلويښت دقيقي دی لکن معتبره په تاریخ الاسلامي کي عربي سنه قمريه ده.

**درویش وايي:** چي زما عمر تقريباً نوي (۹۰) کاله دی. زما د ځوانی په وخت کي په افغانستان کي شمسي مياشت يا شمسي کال هيڅ چا له عوامو څخه نه پيژندل حتی چي امیر امان الله خان چي د افغانستان بادشاه سو شمسي مياشتي او کلونه يې په افغانستان کي رواج کړل. عوام خلګ په فرق نه پوهېدل لکن امان الله خان د ټوله افغانستان د لسو ورځو تنخا تخميناً چي پر قمري مياشتو به ورکول کېدل د ملازمانو او د افسرانو، وزیرانو وغیرهم يې ودولت ته ګټه ورسول چي په مرور د زمانو او کلو دا ګټه ودولت ته په ملياردو ډالر ځني جوړېږي. خير په افغانستان کي قمري او شمسي مياشتي او کلونه خلګ پيژني او په پاکستان کي مشهور شمسيه او قمريه کلونه هيڅ څوک نه پيژني البته د امور شرعيه لپاره لکه د روژې او حج لپاره قمري مياشتي بعض د هغو خلګو پيژني، او پر حکومتي سطح په پاکستان کي نه شهور قمريه پيژني او نه هم شهور شمسيه پيژني، چي د هجرت سنې دي، بلکې دوی د انګريزانو په متابعت سره مياشتي او کلونه يې انګريزي دي او سنه هم له ميلاد څخه د عيسی ﷺ ده او عربي ممالک صرف شهور قمريه او قمري کلونه او سنه د هجرت نبوي ﷺ هم پر قمري حساب پيژني الا الخواص من علمائهم چي هغوی شمسي حساب هم پيژني لکن رواج يې قمري مياشتي او کلونه دي، او شمسي پر منازلو د شمس بناً دي چي دي ته دوولس برجه وايي چي ابتداً د کال له حمل څخه کوي چي اول دري برجه ربيعي بولي، حمل، ثور او جوزا شروع يې د اعتدال ربيعي څخه کوي چي دا بروج شمالي دي، او دري برجه يعني سرطان، اسد او سنبله چي شروع يې

له انقلاب صیفي څخه کېږي او دا درې هم شمالي بروج دي، او درې برجه خریفي بولي یعني میزان، عقرب او قوس چې شروع یې له اعتدال خریفي څخه کېږي او دا درې برجه جنوبي دي، او درې بیا شتوي دي چې جدي، دلو او حوت دي او ابتدأ ددې درو برجو له انقلاب شتوي څخه کېږي او دا بروج هم جنوبي دي ددې بروجو په تېرېدلو سره یو کال شمسي پوره کېږي.

په نصاب الصبیان کې یې دا دوه بیتونه راوړي دي

بر جها دائم که از براو زند سر
جمله در تسبیح و در تهلیل حي لایموت
چون حمل چون ثور جوزا وسرطان واسد
سنبله میزان وعقرب سی بیست ونه
قوس و جدی بی کمی و بیش

وایضاً في نصاب الصبیان امده است، خور بجوز است سی ودو ویکست حمل وثور وشیر (یعني اسد) باپس وپیش، دلو ومیزان وحوت وعقرب سی بیست ونه، قوس وجدی بی کم وبیش.

**پوښتنه**: عبیدالله تا خو له تفسیر څخه ریاضي جوړه کړه؟

**ځواب**: ما صرف د شهور قمري او د قمري کال او د شهور شمسي او د شمسي کال په باره مختصر بیان وکړی، ته ورسره روح البیان او روح المعاني او تفسیر کبیر مطالعه کړه د درویش د اختصار درک به در معلوم سي هغو په اوراقو بیانونه په دې باره کې کړي دي.

لِتَعۡلَمُواْ عَدَدَ ٱلسِّنِينَ وَٱلۡحِسَابَۚ

چې تاسي پوه سئ د کلو په عدد چې دوولس میاشتې قمري تېرې سي نو یو کال قمري تېر سو وهکذا بل کال بل کال او یا چې دوولس برجه لمر قطع کړه یو کال شمسي پوره سو بیا بل بیا بل او چې تاسي پوه سئ په حساب د اوقاتو یا د ورځې د میاشتې ستاسي په معاملاتو کې د تجارت یا زراعت مثلاً.

مَا خَلَقَ اللّٰهُ ذٰلِكَ اِلَّا بِالْحَقِّ ۚ يُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ ۝

نه دی کړی خدای پاک دا خلق مذکور مګر نه چي متلبس دی په حق سره يعني لاظهار صنعته الكاملة وقدرته العظيمة مراعياً فيه مقتضى الحكمة البالغة خدای ﷻ تفصيل د آياتو قرآنيه وو کوي چي مشتمل پر دلائلو د وحدانيت او د قدرت فائقه او د علم شامل د خدای ﷻ دی د هغه قوم لپاره چي هغه فکر په دغو آيتو کي وکړی.

**فوائد شتى:** (١) پوه سه! چي دنيا مزرعة الآخرة ده يعني د کښت کولو ځای او خدای پاک بیا خلګ ژوندي کوي بعد الموت تا چي حاصلات د دنيا د کښتو تر لاسه کړي، نو که چا کښت د خیر د کار وکړی، نو حاصل به يې سلامت وي من عذاب الآخرة او که چا کښت د شر من الكفر والمعاصي کړی ؤ حاصل به يې ندامت او پښېماني وي ....... سعدي رحمه الله.

جمله میدانند اگر تو نه گروی .......... هرچه میکاریش روزی بد روی

**فائده:** (٢) په بعضي رواياتو کي راغلي دي چي خدای پاک عيسى عليه السلام ته وحي وکړې كن للناس في الحلم كالارض تحتهم وفي الرحمة كالشمس والقمر فانهما يطلعان على البر والفاجر، قال الحافظ الشيرازي رحمه الله.

نظر کرد به درویشان منافی بزرگی نیست
سلیمان باچنین حشمت نظرها بود بامورش

**فائده:** (٣) پوه سه! چي بعض علما سپوږمۍ افضله بولي تر لمر، ولي چي لفظ د قمر مذکر دی او لفظ د شمس مؤنث سماعي دی، والتذكير اصل والتانيث فرع فالفضل للاصل على الفرع قال وهو الاصح الاشهر.

**سوال:** په آيت کي خو يې لفظ د شمس دمخه راوړی دی، نو دا دده د افضليت دليل نه دی؟

**ځواب:** لا! تقديم في اللفظ دليل د فضيلت نه دی ولي چي په قرآن مجيد کي ځای ځای اشرف وروسته سوی وي كما في قوله تعالى "فمنكم كافر ومنكم مؤمن" وقوله تعالى "وجعل الظلمات والنور" هذا ما في اسئلة الحكم. بعض

مفسرینو دا خبره رد کړې ده ولې چې اصالت او فرعیت او افضلیت او مقبولیت په تذکیر او تانیث حقیقي کې دی دون اللفظي او قمر چې مذکر لفظاً دی فضل ددې نه ثابتوي پر مؤنث لفظاً چې شمس دی، ولې چې لفظ د طلحة د نر نوم دی او نر خو تر ښځې افضل دی مع ان طلحة مؤنث لفظي، ولنعم ماقیل:

ولا التانیث عار لاسم شمس .......... ولا التذکیر فخر للهلال.

**إِنَّ فِي اخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَمَا خَلَقَ اللَّهُ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَتَّقُونَ ۝٦**

په تحقیق سره په اختلاف د شپې او ورځې طولاً وقصراً ومساواتاً په اعتبار د سیر د شمس في بروجها وظلمة ونوراً وحرارةً وبرودةً، او په هغو شیانو چې خدای پاک پیدا کړي دي په اسمانو کې من الشمس والقمر وسائر الکواکب المختلفة النور وغیرها التي لایعلمها الا الله او په ځمکه کې من الحیوانات والکنوز والنباتات والاشجار وغیرها من الکائنات، هر آئینه دلائل دي د وحدانیت د خدای ﷻ "لوکان فیهما الهة الا الله لفسدتا" او پر قدرت باهره د خدای پاک او پر علم شامل د خدای پاک وغیرها من الصفات الجمالیة والجلالیة د خدای ﷻ.

برگ درختان سبز درنظر هوشیار ..... هر ورقی دفتریست معرفت کردگار

دا آیات هغه قوم لره دي چې له خدای ﷻ څخه بېرېږي، د تخصیص وجه یې داده چې هغه قوم په دې آیتو کې فکر ووهي.

**إِنَّ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا وَرَضُوا بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَاطْمَأَنُّوا بِهَا**

او هغه کسان چې امید نه لري زموږ د ثوابو په ورځ کې د قیامت خدای ﷻ اعلی د ثوابو ذکر کړی چې ملاقات د خدای ﷻ دی یعني رؤیة تعالی بلا کیف او دوی راضي وي ددې دنیا په ژوند او پر آخرت یې خوښ کړی وي، او دوی مطمئن وي وحیوة الدنیا ته او لذائذ او شهوات د دنیا پر مخ بیایي او هغه شیان چې د اخرت په ورځ فائده لري پرېښې یې وي، نو مراد والله اعلم له دې کسانو

ځکه اهل کتاب دي من الکفار چي دوی صانع هم مني او بعث يوم القيامة هم مني ومع ذالک اختاروا الدنيا على الآخرة واقتصروا على لذائذ الدنيا حتى غيروا التوراة والانجيل لاجل تلک الشهوات کمامر مراراً.

وَالَّذِيْنَ هُمْ عَنْ اٰيٰتِنَا غٰفِلُوْنَ ﴿۷﴾

او هغه کسان چي زموږ د آيات چي دلالت کوي پر وجود د صانع او پر وحدانيت د هغه او پر بعث بعد الموت باندي غافل وي چي مراد ځني مشرکان او دهريان دي.

اُولٰٓئِكَ مَاْوٰىهُمُ النَّارُ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ ﴿۸﴾

دغه کسان يعني دواړي ډلي ځای د ورتلو ددوی اور دی يعني دوږخ په سبب ددې چي دوی يې کسب کاوه په دنيا کي من الکفر والشرک والمعاصي.

**اعراب**: "اولئک" مبتدأ ده او "ماهم" مبتدأ ثاني ده او "نار" يې خبر دی والجملة خبر د "اولئک" ده او دا جمله ټوله خبر د "ان" ده.

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ يَهْدِيْهِمْ رَبُّهُمْ بِاِيْمَانِهِمْ

په تحقيق هغه کسان چي ايمان يې راوړی وي يعني پر وحدانيت د خدای ﷻ او پر رسالت د عليه الصلوة والسلام او پر بعث بعد الموت وغير ذالک مما يجب الايمان به او عملونه کوي صالح من الصلوات وغير ذالک.

**درويش وايي**: چي په اعمال صالحه ژ کي ترک د منهياتو هم مندرج دی. قال الله ﷻ "ان الصلوة تنهى عن الفحشا والمنکر" خدای ﷻ دوی ته هدايت کوي په سبب د ايمان ددوی يعني وداسي لاري ته چي سالک وجنت ته رسوي.

**سوال**: خدای ﷻ جنت صراحةً نه کړی ذکر وجه يې څه ده؟

**ځواب**: وجه يې داده چي په مقابله ډله کي چي کافران دي خدای ﷻ وويل ماوائهم النار، نو د مؤمنانو حال له هغه څخه وفهمېدی چي ماوائهم الجنة وايضاً ان المقام محفوف بالقرائن الدالة على ان المراد الهداية الى الجنة.

**بوه سه**: چي قاضي بيضاوي رحمه الله وايي چي مفهوم د ترتيب د هدايت وجنت ته پر ايمان او عمل صالح که څه هم دلالت کوي پر دې چي سبب د هدايت وجنت

ته ایمان او عمل صالح دواړه دی لکن منطوق ددې آیت یهدي ربهم بایمانهم پر دې دلالت کوي چې ایمان مستقل دی په سببیت کې د دخول د جنت، انتهی بالترجمة او د مظهري رحمه الله مختاره هم داغه ده.

**پوښتنه**: د بیضاوي رحمه الله له قول څخه خو دا معلومېږي چې مطلق ایمان سبب مستقل د دخول د جنت وي وان لم یعمل من العمل الصالح بشئ ولم ینتهی عن المنهیات مع انه تعالی قال ومن قتل مؤمناً متعمداً فجزائه جهنم الآیة؟

**ځواب**: بعض مفسران وایي چې مراد د سببیت د ایمان لدخول الجنة دادی چې ولو بعد حین یعني بعد دخول النار.

**درویش وایي**: چې دا ځواب صحیح نه دی ولې چې په دې کې تقیید د آیت مطلقه دی بلکې صحیح داده چې دا آیت خو دلالت کوي پر سبب د دخول د جنت. لکه بیضاوي چې وویل او تعذیب د مؤمن بالنار د نورو آیاتو او احادیثو څخه فهمېږي یعني که مؤمن عاصي الذي مات بلا توبة ته رحمت عامه د خدای ﷻ په ورځ د قیامت تدارک ونه کړي او شفاعت د سید البشر ﷺ یې هم یاري ونه کړي یدخل النار موقتاً.

**پوه سه**: چې علامه بغداد السید محمود الآلوسي رحمه الله په روح المعاني کې وایي ص (۷۴) والمراد بهذه الایمان الذي جعل سبباً هو الایمان الخاص المشفوع بالاعمال الصالحة لا المجرد عنها ولا الاعم آه.

**درویش وایي**: چې آلوسي رحمه الله ډېر طویل الذیل دلائل پر دې راوړي دي لکن ده متابعت کړی دی د زمخشري په کشاف کې چې صاحب کشاف معتزلي المذهب دی، او د معتزله وو مذهب دادی ي د ایمان سره چې اعمال صالحه نه وي یعني مسلمان مرتکب د کبائرو ګنهو وي او بې توبې مړ سي ځای یې د همېشه لپاره دوږخ دی او مجرد ایمان یې سبب د دخول د جنت نسي کېدای، لکه چې په شرح العقائد او شرح المقاصد کې دواړه تصنیف د علامه ثاني سعد الدین التفتازاني رحمه الله دي مذهب د معتزله وو یې هم لکه چې موږ وویل بیان کړی دی، وهکذا بین مذهبهم القاضي عضد الملة والدین في المواقف وشارحه السید السند الجرجاني وصاحب کتاب الملل والنحل عبد الکریم الشهرستاني.

**سوال**: صاحب د روح المعاني ستا په عقیده معتزلي دی او که څرنګه؟

**ځواب**: حاشاً لله من ان اقول انه معتزلي بل هو سني من اعاظم اهل السنة والجماعة. او آلوسي رحمه الله په خپله په روح المعاني کې ددې خبرې مفصل ځواب ورکړی ان شئت فارجع الى روح المعاني.

## تَجْرِي مِن تَحْتِهِمُ الْأَنْهَارُ فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ ⑨

چې بهیږي به لاندې تر قصرو ددوی بحذف المضاف، ځلور ولې شراب، عسل، شیدې او اوبه په جنتو کې د نعمتو، اللهم اجعلنا منهم بمحض فضلک ورحمتک.

**پوهه**: چې روح المعاني وايي چې دا بل خبر دی د "ان" اول خبر یې "يهديهم" ذ آه، يا بل حال دی له مفعول څخه د "يهديهم" او اول حال یې "تجري" ؤ. او یا متعلق دی په "يهدي" او یا په "تجري" پوري. انتهى مع زيادة وقريب من ذالک قال البيضاوي رحمه الله.

## دَعْوَاهُمْ فِيهَا سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ

یعني دعا ددوی او ذکر ددوی په جنتو کې دادی موږ تنزیه ستا وایو له هر عیب څخه وما لا يليق بذاتک الاقدس.

**پوهه**: چې "دعائهم" مبتدأ ده او "فيها" یې متعلق دی او خبر یې سبحانک اللهم دی.

**سوال**: سبحانک اللهم خو تنزیه او ذکر دی، خواست څرنګه دی؟

**ځواب**: ابن الاثير په خپل تفسير کې وايي، انما سمي التهليل لا اله الا الله، والتحميد اى الحمدلله، والتسبيح اى سبحان الله، والتحميد اى الله اكبر او الله اعظم دعاً لانها بمنزلة الدعا في استيجاب ثواب الله وجزاء.

او بغوي رحمه الله وايي چې دا لفظ يعني سبحانک اللهم يو اشاره ده په منځ کې د جنتیانو او د خادمانو ددوی چې دوی سبحانک اللهم وايي خادمان حاضر سي هر طعام چې یې غوښتی هغه حاضر کړي الى اخيره.

وَتَحِيَّتُهُمْ فِيهَا سَلَٰمٌ

پيش كش ددوى په جنت كي يو د بل سره سلام اى سلام لك من مكروه، نو اضافت د تحية اضافت دى ومصدر فاعل ته او دا هم احتمال لري چي اضافت دي د مصدر ومفعول ته وي يعني تحية الملائكة اياهم قال الله تعالى والملائكة يدخلون عليهم من كل باب سلام عليكم بما صبرتم او ملائكة د خداى ﷻ له خوا هم سلامونه ورته راوړي، او بالذات هم خداى ﷻ ددوى ته سلام عليكم وايي قال الله تعالى سلام قولاً من رب رحيم ........ بيت:

سلام دوست شنيدن سعادتست وسلامت
بوصل يار رسيدن فضليت است وكرامت

**فائده:** په جنت كي مكلفيت په عبادت نسته لان الجنة منزل ثواب العبادات لا موضع التكاليف الشرعية لكن دوى چي دا تسبيح او تهليل او تحميد وايي د خپل شوقه څخه كما قيل.

زوق نامش عاشق مشتا ق را .... از بهشت جودانى خوشتر است
گرچه در فردوس نعمتها بسى است .... وصل او از هر چه دانى خوشترست

وَءَاخِرُ دَعْوَىٰهُمْ أَنِ ٱلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿١٠﴾

او اخيره دعا ددوى يعني ذكر ددوى دغه دى چي تول ثنا وصفت خداى ﷻ لره دى چي تربيه كونكى د تولو عالميانو دى،

**پوهه:** چي جنتيان چي دا دومره نعمتونه په جنت كي ويني او كرامت د خداى ﷻ او بيا سلام د ملائكه كرامو واوري او سلام د رب العزت واوري، نو څكه دوى ثنا او صفت د خداى ﷻ په الحمد لله رب العالمين سره وايي.

وَلَوْ يُعَجِّلُ ٱللَّهُ لِلنَّاسِ ٱلشَّرَّ ٱسْتِعْجَالَهُم بِٱلْخَيْرِ

كه چيري چابك وركولاى خداى ﷻ وخلكو ته شر يعني عذاب، لكه چابك چي وركوي دوى ته خير يعني صحت او رزق وغيرهما چي دوى يې وغواړي له خداى ﷻ څخه، بعض مفسرين رحمهم الله وايي چي دا آيت په شان كي د نضر بن

الحارث نازل سوی دی چي ده وویل "ان کان هذا هو الحق من عندک" که چېرې وي دین د اسلام او قرآن او رسول ﷺ حق ستا له جانبه څخه. غرض دا ؤ چي موږ خو يې نه منو يو له دغو درو څخه. فامطر علينا حجارة من السماً" نو پر موږ دي واوروي ډبري د اسمان له خوا څخه. پوه سه! چي دا خبره یوه نفر ددې لپاره وکړه چي زموږ يقين دی چي دا دين حق نه دی.

**پوه سه:** چي استعجال مصدر مضاف دی ومفعول ته یعني استعجال د خدای پاک ودوی ته د خير چي دوی خير غواړي، نو استعجال په معنی د تعجيل دی، او له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي دا آیت په دې باره کي دی چي سړي ته چي ډېر درد ورسي، نو گاهي زوی ته ووايي چي په سترگو ړوند سې. او گاهي ماینې ته ووايي چي کور دي خراب سه، او دا تفسیر د قتاده رحمه الله دی، نو معنا د آیت داده که چېرې خدای ﷻ خلگو ته ورکړي شر یعني هغه چي دوی په وخت کي د غضب وویل او طلب يې په عجولانه ډول وکړی لکه چي خدای پاک دوی ته ورکوي خير چي دوی يې وغواړي ژر دی. ولي خدای پاک کريم دی د بنده د خير دعاً ژر قبلوي.

لَقُضِيَ إِلَيۡهِمۡ أَجَلُهُمۡۖ

راواستول سوی به وای ودوی ته اجل ددوی یعني دوی به هلاک کړي وای.

**پوه سه:** چي قرائت د ابن عامر او يعقوب بفتح القاف والضاد دی یعني پر صيغه د معلومي چي ضمير د فاعل يې خدای ﷻ ته راجع دی او نور قاریان يې په صيغه د مجهول وايي. نو پر صيغه د معلوم اجل په نصب سره مفعول دی او پر صيغه د مجهول اجلهم په رفع سره دی یعني مفعول مالم يسم فاعله دی.

فَنَذَرُ ٱلَّذِينَ لَا يَرۡجُونَ لِقَآءَنَا فِي طُغۡيَٰنِهِمۡ يَعۡمَهُونَ ⑪

نو موږ پرېږدو هغه کسان چي نه مني ملاقات زموږ یعني نه ېرېږي د بعث بعد الموت له عذاب څخه. والمعنى لا نهلكهم ولا نقضي اجلهم لکه دوی چي غواړي بلکي امهالاً او استدراجاً عذاب يا مرگ نه پر نازلوي، نو ددوی دغه پاته والی امهال دی اهمال نه دی.

**پوه سه:** چي حدادي رحمه الله وايي چي دا آيت عام دی هغه کسان هم پکښي داخل دي چي استعجال د عذاب غواړي چي په سبب د معصيت ددوی لکه يو سړی چي شراب څښي او وايي چي پر ما دي خدای جل جلاله د شرابو عذاب نازل کړي، او هغه کسان هم پکښي داخل دي چي خپل ځان يا اولاد ته ښېراوي کوي كمامر مثاله، او په صحيح حديث کي راغلي دي دعاً المرء علی محبوبه غير مقبول لانه غير راض بقبوله قوله في طغيانهم يعني د سرکښی په سبب د عدم ايمان بالعبث والجزاً نو جار او مجرور متعلق په فنذر پوري دی او يعمهون حال دی له ضمير څخه د هم ای متحيرين مترددين.

**درويش وايي:** چي مفسرين رحمهم الله وايي لا صلاح ولا حکمة في اماتتهم عاجلاً ولي چي عين ممکنه ده چي دغه وروسته سړی به ايمان راوړي، او يا وروسته ددوی له اصلابو څخه مؤمن پيدا سي.

**پوښتنه:** دمخه په صحيح حديث کي تېر سو دعاً المرء علی محبوبه غير مقبول، او په بل صحيح حديث کي راغلي دي دعاً الوالد علی ولده لا يرد، ښېرا د پلار روزوی ته نه رد کېږي، فکيف التوفيق بين الحديثين؟

**ځواب:** په مقاصد حسنه کي راغلي دي چي حديث اول محمول دی پر دې چي پلار په حال کي د غضب ښېرا وکړي زوی ته لکن په زړه کي په راضي نه وي صرف غضب يې ښېرا تر خوله وباسي، او حديث ثاني محمول پر دې دی چي زوی د پلار عاق وي او پلار د زړه له کومي ښېرا ورته وکړي فهو لا يرد والله اعلم.

وَإِذَا مَسَّ الْإِنسَانَ الضُّرُّ دَعَانَا لِجَنبِهِ أَوْ قَاعِدًا أَوْ قَائِمًا

او هغه وخت چي انسان ته ورسېږي يو ضرر يا په جسد کي او يا په مال کي ومثل ذالک، نو دی موږ ته خواست کوي په دفعه کي د هغه ضرر يعني په اخلاص او عاجزۍ سره پر بغل باندي يعني څنګ يې وهلی وي او يا چي ناست وي او يا ولاړ وي، ددې ترديد فائده داده چي فوراً دي په دفع کي د ضرر ماته خواست کوي په ټولو احوالو کي چي ذکر سوله، او صاحب د روح البيان وايي چي فائده د ترديد مذکوره داده چي ګاهي پر انسان باندي دومره لويه ناجوړي

مسلطه سي چي صاحب فراش يې وګرځوي يېلـه اضطجاع پر بل شي قدرت نه لري. او ګاهي څه سپکه ناجوړي وي چي پر ناسته هم قدرت لري. او ګاهي ډېره سپکه ناجوړي وي چي پر ولاړه هم قدرت لري لکن تګ نه سي کولای.

**فَلَمَّا كَشَفْنَا عَنْهُ ضُرَّهُ مَرَّ كَأَن لَّمْ يَدْعُنَا إِلَىٰ ضُرٍّ مَّسَّهُ**

نو هغه وخت چي لېري کړو موږ هغه ضرر چي دی په مبتلاً ؤ او ماته يې د کشف خواست کړی ؤ، نو دی روان وي پر خپل مخه يعني همېشه توب پر خپل کفر په مخه واخلي او شکر ونه وايي. لکه ده چي ماته خواست نه وي کړی.

**درويش وايي:** چي له دې آيت څخه دا معلومه سوه چي مراد له انسان څخه کافر دی. او پر دې قياس دي هغه مسلمانان چي مثلاً لمونځ يې نه کاوه ناېيره لوی تبې ونيوی، نو دی خدای ﷻ ته خواست کوي چي ما له دې رنځ څخه خلاص کړې. او نيت يې دا وي چي زه خدای ﷻ له دې رنځه څخه خلاص کړم. نو پينځه وخته لمونځ په جماعت کوم، نو چي خدای ﷻ يې جوړ او روغ رمټ کړي دی پر خپله لار روان سي يعني بيرته خپلي بې لمانځۍ ته دوام ورکړي الی غير ذالک.

**يوه سه:** چي "کان مخفف د مثقل دی اصل يې کانه ؤ، نو ضمير شان يې څني حذف کړی يعني ځان يې داسي واچوی لکه دی چي يو وخت په بلا نه ؤ مبتلاً او ماته يې خواست نه وي کړی د يو ضرر لپاره چي ده ته رسېدلی ؤ.

**كَذَٰلِكَ زُيِّنَ لِلْمُسْرِفِينَ مَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ⑫**

"کذالک" لکه د دغه مبتلاً په زړه کي چي ناشکري ښائسته وه، ښائسته کړه سوې ده (والمزين هو الشيطان) وه مشرکينو ته (اسراف ای تجاوز عن الحد الشرعي) يعني کافرانو ته هغه چي دوی يې عمل کاوه.

**درويش وايي:** چي مراد له مسرفينو څخه فرد کامل دی چي مشرکان دي چي تجاوز يې وکړی تر عبادت الله وحده څخه وعبادة الاصنام ته. شاعر مشهور صائب وايي

ازين چه سود که در ګلستان وطن دارم .. مرا که عمر چو نرګس بخواب ميګذرد

وَلَقَدْ أَهْلَكْنَا الْقُرُونَ مِن قَبْلِكُمْ لَمَّا ظَلَمُوا

او مونږ هلاک کړي دي ډېر قرنونه مثل قوم نوح ومثل عاد وثمود الى غير ذالک. تر تاسي دمخه هغه چي دوی پر خپلو ځانو ظلم کاوه بالكفر والمعاصي واتباع الشهوات الباطلة. وفيه تنبيه لاهل مكه ان حالهم ايضاً يكون مثل حال الامم الماضية ان لم يؤمنوا بتوحيد الله ﷻ وحقيقة القرآن ورسالة النبي ﷺ.

**پوه سه**: چي مخاطب اهل مكه دي.

وَجَاءَتْهُمْ رُسُلُهُم بِالْبَيِّنَاتِ

عطف دی پر ظلموا او يا حال دی د فاعل څخه د ظلموا په تقدير د قد كما هو القانون النحوي في حالية الفعل الماضي. او راتګ کړی ؤ دوی ته رسولانو ددوی په معجزاتو ظاهراتو سره. ددې جملې فائده داده چي قانون الهي دادی چي پر کافر چي حجت تام نه سي خدای پاک يې نه هلاکوي. كما قال الله تعالى في موضع آخر "وما كنا معذبين حتى نبعث رسولاً" ولي چي کافر ته ځای د عذر پاته نه سي. يعني هل لا ارسلت الينا رسولاً.

وَمَا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا

او نه وه دوی يعني اهل قرون الماضية الظالمة چي دوی دي ايمان راوړي. کلمه د لام لپاره د تاکيد د نفي ده. ولي چي دوی فاسد کړي وه خپل استعدادات فطريه قال رسول الله ﷺ كل مولود يولد على فطرة الاسلام الى آخير الحديث النبوي ﷺ.

كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْقَوْمَ الْمُجْرِمِينَ ﴿١٣﴾

يعني لکه کفارو ته د امم ماضيه مونږ جزا د اهلاک ورکړه وروسته تر ارسال الرسل بالبينات مونږ جزا ورکوو په آئينده کي وه هغه قوم ته چي مجرمان وي لکه مجرمان د امم ماضيه ؤ.

ثُمَّ جَعَلْنَاكُمْ خَلَائِفَ فِي الْأَرْضِ مِن بَعْدِهِمْ

وروسته تر امم ماضيه وو مونږ وګرځولاست تاسي يا کفار مکه خليفه ګان په سرزمين کي د مکې وروسته تر کفار ماضيه وو الهلكة وو.

**سوال:** وروسته والی د اهل مکه خو له ثم څخه فهمېدی نو من بعدهم ته څه ضرورت و؟

**ځواب:** لپاره د تاکید د معنی حرفي ضمني په صریح بعدیت سره او ددې شعر د سعدي رحمه الله به مصداق وګرځي.

پند گیر از مصائب دیگران .......... تا نه گیرند دیگران زتو پند
نرود مرغ سوی دانه فراز .......... چو بیند مرغ دیگر اندر بند

## لِنَنْظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُونَ ﴿١٤﴾

چي مونږ وګورو چي تاسي څه عمل کوئ د خیر عمل کوئ او که د شر، نو تاسي معامله پر موافق د اعمالو ستاسي وکړه سي، او یا تاسي عبرت له دوی څخه اخلئ چي نو تصدیق د رسولانو وکړئ او که نه.

**پوه سه:** چي خدای پاک خو ازلاً پر دوی علم لري، نو مراد له "لننظر" څخه علم بعد وجو المعلوم دی چي منطقیان یې علم تفصیلي بولي، ولي چي مناط د ثواب او عقاب هم دغه علم تفصیلي دی د ابي سعید الخدري رضي الله عنه څخه روایت دی چي علیه الصلوٰة والسلام وویل ان الدنیا حلوة (دنیا شرینه ده) خضرة (سرسبزه ده) وان الله مستخلفکم مناظر کیف تعملون (خدای جل جلاله تاسي د نورو مخني خلګو خلیفه ګان ګرځوي، نو خدای جل جلاله ګوري چي تاسي څرنګه عمل کوئ)

**اعراب:** "کیف" منصوب دی په "تعملون" سره نه په "لننظر" سره، ولي "کیف" چي معنی د استفهام ورسره ده د خپلي جملي صدارت غواړي، حافظ شیرازي:

خوش عرورست جهان از ره صورت لکن
هرکه بدو پیوست عمر خودش کابین داد

کابین مهر ته وایي یعني کابین ولور بولي، مفسرین رحمهم الله وایي چي په دې آیت کي تهدید او ګواښ دی اهل مکه وو ته پر جرم ددوی بتکذیب رسول الله ﷺ تا چي له دې انکار څخه ډډه وکړي، د ېېري ددې چي پر دوی به هم عذاب استیصال نازل سي لکه نازل سوی چي و پر دوی دمخه کافرانو چي تکذیب د رسول به یې کاوه.

## وَإِذَا تُتْلَىٰ عَلَيْهِمْ آيَاتُنَا بَيِّنَاتٍ

چي تلاوت وکړل سي پر اهل مکه باندي يعني د عليه الصلوٰة والسلام له خوا زموږ د آيتو.

**درويش وايي:** چي که څه هم ټوله مشرکانو د مکې دا راتلونکې وينا په کوله لکن په قول د قتاده رحمه الله دغه کسان ډېر سر سخته وه په دې دنيا کې (۱)عبدالله بن ابي المخزومي (۲) وليد بن المغيرة (۳) مکرز بن حفص (۴)عمر بن عبدالله (۵) عاص بن عامر بن هشام.

بينات" چي واضح الدلالة وه پر دې چي دا آيات من عندالله دي خو بيا هم.

## قَالَ الَّذِينَ لَا يَرْجُونَ لِقَاءَنَا ائْتِ بِقُرْآنٍ غَيْرِ هَٰذَا أَوْ بَدِّلْهُ

وېل به هغو کسانو چي عقيده به يې نه درلوده پر ملاقات زموږ مراد ځني يوم القيامه ده او بعث بعد الموت، نو معنا يې داده چي له ملاقات څخه د عذاب زموږ نه بېرېدل چي هغه په ورځ د قيامت نازلېږي پر کافرانو، ته موږ ته راتګ وکړه په قرآن غير د موجوده قرآن څخه يعني چي په هغه کي زموږ د خدايانو عيب بيانول او سپکاوی نه وي، او يا دا چي د ثواب او عقاب تر عقل لوړي خبري نه وي پکښې، يا داغه قرآن رد او بدل کړه يعني پر ځای د آيت عقاب آيت د ثواب کښېږده، او بل ځای د ذم زموږ د خدايانو چي لات، عزی وغيره دي آيت د مدح ددوی ولګوه، او د بعض حرام پر ځای حلال کښېږده وبالعکس.

## قُلْ مَا يَكُونُ لِي أَنْ أُبَدِّلَهُ مِنْ تِلْقَاءِ نَفْسِي

ته ورته ووايه اې محمد ﷺ يعني نه ده صحيح او نه ښايي ما لره چي زه دې قرآن منزل من عندالله بدل کړم يعني من قبل نفسي له طرف څخه د خپل ځان.

**پوښتنه:** کافرانو د مکې د يوه يا د دوو شيانو مطالبه کړې وه چي يا نزول د قرآن آخر وغير له موجوده قرآن څخه او يا رد وبدل ود موجوده قرآن کمامر، خدای ﷻ وه عليه الصلوٰة والسلام ته د يوازې رد وبدل جواب تعليم وکړی حکمت يې څه دی؟

**خواب**: چونکه ردوبدل په قرآن موجود کي د آسان کارو تر نزول د قرآن آخر، نو چي تبديل له طرف څخه د عليه الصلوٰة والسلام ممتنع دی نو نزول د قرآن نوين په طريق اولی ممتنع دی.

## اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوْحٰى اِلَيَّ ۚ

زه متابعت نه کوم مګر نه د هغه شي چي ماته وحي سوي وي.

**پوهسه**: چي دا دليل دی لقوله مايکون لي آه. حاصل د دليل دادی چي هغه څوک چي تابع د بل چا وي هغه نه سي کولای چي بېله امره د متبوع دي استقلالاً دي تصرف په يو شي کي وکړي.

**فائده**: له دې آيت څخه جواب د نسخ د بعض آيتو د قرآن په نورو آيتو سره هم وفهمېدی، ولي نسخ مذکوره خو هم د متبوع چي خدای ﷻ دی تر سره کېږي او دا توهم د کفارو هم دفعه سو چي قرآن اختراع د عليه الصلوٰة والسلام له خوا څخه ده ځکه يې تبديل په دې سره مقيد کړی من تلقائي نفسي.

## اِنِّيْٓ اَخَافُ اِنْ عَصَيْتُ رَبِّيْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿۱۵﴾

په تحقيق زه بېرېږم که زه عصيان او نافرماني د خپل رب وکړم يعني بالتبديل بېله امره د مولی ﷻ له عذاب څخه د ورځي د قيامت نو ددې تبديل په طلب تاسي ګناه کارياست.

## قُلْ لَّوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا تَلَوْتُهٗ عَلَيْكُمْ وَلَآ اَدْرٰىكُمْ بِهٖ ۖ

ته ووايه که د خدای ﷻ اراده وای يعني د عدم نزول د قرآن پر ما باندي او يا عدم تلاوت پر تاسي، ما به تلاوت د قرآن نه کولای پر تاسي ولي چي زه امي يم او د امي له شانه څخه نه ده چي دداسي قرآن تلاوت دي وکړي چي د طوق د بشر خارج وي قال الله تعالى "وان کنتم في ريب ممانزلنا على عبدنا فأتوا بسورة من مثله الآية" او نه به مي خبرولای تاسي په قرآن سره.

**حکايت**: يو شيخ او ولي الله ؤ په قوم کردي ؤ چي عربي ژبه يې هيڅ نه وه زده، يو منکر وده ته د تعصب او د عناد د لاري وويل چي ته خو يو څه نصيحت او وعظ په عربي ژبه موږ ته وکړه، د معاند دا خيال ؤ چي دی به رسوا کړم، ولي چي

دی امي دی وعظ او تبلیغ یې نه دی زده. شیخ وایي چې زه د شپې په ډېر غم کې ډوب بیده سوم، نو ما علیه الصلوٰة والسلام په خوب ولیدی ده مبارک راته وویل چې صبا په عربي ژبه نصیحت ورته وکړه، نو سهار شیخ مذکور د وعظ لپاره پر منبر کښېنستی او په عربي ژبه یې د قرآن تفسیر او تأویل بیان کړی چې خلګ او معاند د تعجب په دریاب کې ډوب سوله، نو شیخ دا خبره وکړه امسیت کردیاً واصبحت عربیاً وذالک من فضل الله والله علی کل شیئ قدیر.

حافظ شیرازي رحمه الله وایي:

فیض روح القدس ارباز مدد فرماید .... دیگران هم بکنند آنچه مسیحا میکرد

یعني عیسی علیه السلام.

## فَقَدْ لَبِثْتُ فِيكُمْ عُمُرًا مِنْ قَبْلِهِ

ما په تاسې کې ژوند تېر کړی دی یعني څلوېښت کاله دمخه د قرآن تر نازلېدلو او تاسې ته مې شی نه وو ایه تر هغو چې ما ته وحي نه وې راغلې او ما نه په یوه مدرسه کې سبق ویل ؤ او نه مې یو عالم لیدلی ؤ او نه مې یو شعر ویلی ؤ او نه مې خطبه او نصیحت کړی ؤ، وروسته خدای جل جلاله داسې قرآن راکړی چې فصاحت او بلاغت ته یې د دنیا ټوله ژبیاران او فصحا د عدنان او بلغا د قحطان حیران دي او ټول له اتیان څخه د مثل د یوه سورت عاجزه سوه حتی چې لپاره د دفع د خجالت یې دا وویل "انهم سحروا تسحیراً" یعني چې محمد صلی الله علیه وسلم په موږ سحر وکړی چې له اتیان څخه د مثل یې عاجزه سولو. نو له دې څخه دا معلومه سوه چې قرآن معجزه د خارق للعادة او قول البشر نه دی بلکې نازل دی له جانبه څخه د خالق مقتدر.

**فائده:** علیه الصلوٰة والسلام قبل الوحي څلوېښت کاله په مکه کې تېر کړه او بیا وحي ورته راغلې، وروسته تر وحي دیارلس کاله په مکه مکرمه کې ؤ او بیا یې هجرت مدینې منورې ته وکړې او په مدینه کې یې لس کاله ژوند ؤ چې دین اسلام شائع سو او فتح د مکې مکرمې هم وسوه او عربو په ډلېیزه توګه اسلام قبول کړی، آیة کریمه "ورئیت الناس یدخلون في دین الله افواجاً" او بیا په دغه سورت کې خدای پاک اشاره دده مبارک رحلت ته وکړه، کریمه "فسبح بحمد ربک واستغفره انه کان تواباً" نو علیه الصلوٰة والسلام د دروشپېته (۶۳) کلو په

عمر كي رحلت د دنيا فاني څخه ودار جاوداني ته وكړي، او د رفيق اعلى په ويلو سره رخصت سو صلى الله تعالى عليه وعلى آله وصحبه اجمعين وارزقنا اتباعه على وجه الاحسان واليقين آمين.

أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿١٦﴾

آيا تاسي كفار عقل نه لرئ چي ددې بيان سوي حالاتو څخه د نبي ﷺ پند واخلئ او ايمان راوړئ.

فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا

الاستفهام للانكار اى لا احد اظلم تر هغه چا چي درواغ وايي پر خداى ﷻ يعني چي خداى ﷻ لره شريك سته لكه مشركين د مكې، يا خداى ﷻ لره ولد سته لكه بعض مشركين د مكې چي ويل به يې چي ملائكه بنات الله دي، او يا يهود چي عزير ابن الله يې باله. يا لكه نصارى چي عيسى ابن الله بولي.

أَوْ كَذَّبَ بِآيَاتِهِ ۚ إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الْمُجْرِمُونَ ﴿١٧﴾

يا درواغ بولي آيات د خداى ﷻ يعني قرآن كريم لكه طوائف ثلثة مذكوره، شان دادى چي فلاح او خلاصون له عذاب الهي څخه نه سي پيدا كولاى مجرمين يعني كفار مكه.

وَيَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنفَعُهُمْ

او عبادت كوي كفار د مكې ددا سي شيانو چي ددوى بتان او اصنام دي ماسوىٰ د خداى ﷻ چي د هغو خدايانو ضرر نه رسېږي ودوى ته چي عبادت يې نه وكړي او نه يې نفع رسېږي ودوى ته كه يې عبادت وكړي لانها جمادات لا يقدرون عن نفع ولاضرر، او معبود بايد مالك د دفع د ضرر او د نفع وي د خپل عابد سره.

وَيَقُولُونَ هَٰؤُلَاءِ شُفَعَاؤُنَا عِندَ اللَّهِ

او دوى وايي دا بتان زموږ شفاعت كونكي دي په نيز د خداى ﷻ په امور دنيويه كي او په اخرويه كي كه چېري اخيرت ؤ ولي دوى خو منكر دي له بعث بعد الموت څخه.

قُلْ أَتُنَبِّئُونَ اللَّهَ بِمَا لَا يَعْلَمُ

ته ورته ووايه دوى ته آيا تاسي خبروئ خداى پاك په داسي شي سره "يعني چي خداى پاك لره شريک سته" چي خداى ﷻ نه دى په خبر يعني په خپل شريک او تاسي وه خداى ﷻ ته ورښياست چي تالره شريک سته؟.

**پوه سه**: چي استفهام لپاره د انكار دى يعني تاسي وه خداى پاك ته داته سي ورښوولاى چي خداى ﷻ علم نه پر لري چي شريک دى، ولي چي علم د خداى پاك پر ممكناتو سته شريک د خداى ﷻ خو ممتنع دى، پر ممتنع باندي خداى پاك علم نه لري لكه اجتماع النقيضين وارتفاعهما وشريک الباري وامثال ذالک.

فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ

نه يې په اسمانو كي يعني چي ملائكه دي او نه په مځكه كي چي ستاسي بتان دي. ولي چي دا ټوله حوادث او ممكن شيان دي او خداى ﷻ قديم واجب الوجود دى.

سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ ⑱

منزه او پاک دى خداى ﷻ له شرک څخه ددوى يعني المشركين، كه كلمه د "ما" په عما كي مصدريه سي او يا د هغو شيانو چي مشركان يې د خداى ﷻ شريک بولي چي بتان دي پر تقدير ددې كه كلمه د ما موصوله وي.

فوائد شتى فيما يتعلق بالآيات السابقة (١) فائده: په حديث شريف كي راغلي دي چي لوى درواغ درې دي، يو دا چي پر خپلو سترګو درواغ ووايي چي ما داسي شئ وليدى يعني په خوب كي او نه يې وي ليدلى، دوهم دا چي پر مور او پلار درواغ ووايي يعني يا مور بدله كړي او يا پلار بدل كړي.

**درويش وايي**: چي دا تبديلي نن صبا په مهاجرينو كي د افغانستان چي پاكستان ته مهاجر سوي دي د روسانو له ظلمه څخه يعني د سنه (١۴٠٠) هـ رايسته، يعني بعض خلګ ما پېژندل چي په افغانستان كي جټان وه او پارسي بانان وه په پاكستان كي يې يا په سيدانو پوري يا په محمدزيانو پوري يا په نور عزت والا قومو پوري ځان پيوند كړى، يعني د قوم بدلول د پلار او نيكه بدلول دي په درواغو، او يا درواغ وايي پر مايقول سمعت رسول الله ﷺ ولم يسمع مني

یعني ولو بالواسطة. لکه بعض جاهلان د مسجدو امامان او د جامع مسجدو خطیبان. نو دوی په خپلو تبلیغاتو او مواعظو کي وايي چي په حدیث شریف کي داسي راغلي دي او هغه درواغ وي یعني موضوع حدیث وي، په حدیث شریف کي چي بعض محدثین یې متواتر حدیث بولي راغلي دي "من کذب علي متعمداً فلیتبوأ مقعده من النار" (که یو چا درواغ وویله پر ما باندي په قصد سره، نو ځان ته دي جوړ کړي د اوسېدلو ځای په دوږخ کي)

**یوه سه:** چي ظاهر ددغه حدیث امر دی لکن په معنا د اخبار دی یعني ځای یې په دوږخ کي جوړ کړی.

**یوه سه:** چي درواغ ویل د یوه فرد د امت د علیه الصلوٰة والسلام پر علیه الصلوٰة والسلام باندي فوق الذکر یې جزا ده، نو څرنګه به رسول الله ﷺ ته دا روا وي چي پر خدای ﷻ دي درواغ ووايي لکه کفارو د مکې چي به ویل "افترى على الله ام به جنة" او سره ددې چي انبیا علیهم السلام امینان د خدای ﷻ پر ما اوحي الیهم لا یزیدون فیه ولا ینقصون ولا یبدلون لکه مشرکانو د مکې چي به علیه الصلوٰة والسلام ته ویل "اوبدله" بلکې اولیا الله الکرام هم ورته کاروبه نه کوي، وفي الحدیث الصحیح قال عمر بن الخطاب رضي الله عنه یا نبي الله مالک افصحنا قال علیه الصلوٰة والسلام جائني جبرئیل فلقنني لغة ابي اسمٰعیل وان الله ادبني فاحسن تأدیبي وامرني بمکارم الاخلاق فقال خذ العفو وامر بالعرف.

**فائده:** یوه سه! چي تاریخ وايي چي اوله بت پرستي له قوخ څخه د نوح علیه السلام منځ ته راغلې ده، او هغه داسي چي د آدم علیه السلام پېنځه زامن وه صالحان ود، سواع، یغوث، یعوق او نسر، نو ود چي وفات سو خلګ ډېر په غمجن سوه فاجتمعوا حول قبره وذالک بارض بابل. نو ابلیس چي محبت او اجتماع دوی پر قبرو ولیدل، نو پر صورت د یو انسان ورته راغلی چي زه به د ود صورت درجوړ کړم هر وخت چي تاسي دې صورت ته وګورئ دی به درپیاد ېږي، خلګو ورته وویل نعم، نو ابلیس صورت د ود ورجوړ کړی، وروسته چي به هر یو مړ سو دوی به خپله د هغه صورت جوړ کړی او د هغه نوم به یې پر کښېښو، تر تمام د پېنځو

کلو، دا کار خو دوی د عبرت لپاره کاوه او د محبت د مړه ورور، نو د زمانو په تېرېدلو سره شیطان وه اخیري نسل ته دا وسوسه ورواچول چي ستاسي آباؤ اجداد ددغه صورتو عبادت کاوه نو خلګو شروع په عبادت د هغو پیل کړه. نو خدای پاک نوح ﷺ په نبوت ودوی ته راواستوی او دوی یې له عبادت څخه د هغو بتانو منع کوله او دوی یې په خوله نه کوله حتی چي ده نه نیم سوه (۹۵۰) کاله تبلیغ ورته وکړی، دل خواه فائده یې نه وکړه حتی چي نوح ﷺ بښېرا ورته وکړه "رب لاتذر علی الارض من الکافرین دیاراً" فانزل الله الطوفان ففرقوا کلهم الا من في سفینة نوح، وهذا مما نزل به القرآن.

**پوه سه**: چي د آدم ﷺ او د نوح ﷺ تر منځ لس قرنه وه چي ټوله پر حق شریعت وه.

**فائده**: دغه بتان ټوله په طوفان نوح کي د دریاب پر غاړه په جده کي تر خټو لاندي وه، نو دغه بتان ابلیس لعین له خټو څخه د جدې وچي مځکي ته راوه ایستل او د عربو په لاس ورغله او د هغو عبادت یې شروع کړی.

(۴) اول سړی چي په مکه مکرمه کي یې بت نصب کړی عمرو بن لحي د خزاعه د قبیلې ؤ په دې ترتیب چي دغه ناموړی سړی له مکې څخه وشام ته تللی ؤ د تجارت وغیره لپاره هورې د بلقاً په ښار کي عمالیق قبیله ولیدله چي د عمالق بن لاوذ بن سام بن نوح اولاد وه او هغو ټولو د بتانو عبادت کاوه. نو ده پوښتنه ځني وکړه چي دا څه شیان دي چي تاسي یې عبادت کوئ هغو ورته وویل چي دا خدایان دي چي پر موږ د باران قحط سي ددوی څخه موږ طلب د باران کوو دوی باران راباندي اوروي، که موږ کومک ځني وغواړو په یو مهم کي دوی کومک راسره کوي، عمرو بن لحي ورته وویل چي ماته به یو بت نه کړې را زه به یې مکې ته یوسم او هورې به یې موږ عبادت کوو، نو هغو یو بت ورکړی د هبل په نامه چي له عقیق څخه جوړ ؤ پر صورت د انسان، نو ناموړي هغه هبل راوړی د کعبې شریفې په خونه کي یې ودراوه او خلګ یې امر کړه په عبادت د هغه او په تعظیم د هغه، نو یو سړی چي به له سفره راغلی نو اول به یې طواف وکړی بیا به یې د هبل عبادت وکړی بیا به کورته تلی، بیا به یې سر وخرایه کذا في انسان

العیون، او اهل طائف په نامه د لات بت عبادت کاوه. او اهل مکه نور بتان هم درلوده چي عزا او منات او د اساف په نامه یادېدل.

**درویش وایي:** چي د داسي قوم د هدایت لپاره خدای ﷻ سید الانبیا محمد المصطفی ﷺ دیارلس کاله مبارزه وکړه او ددغه قوم څخه د دیارلسو کلو په دوران کي پر علیه الصلوٰة والسلام سخت سخت کړاوونه تېر سول حتی چي اخیر وه هجرت ته مجبور سو او مدیني منورې ته یې هجرت وکړی او په مدینه منوره کي د لسو کلو په تېرېدلو سره خدای ﷻ ټوله مشکلات حل کړه او مکه مکرمه فتح سوه. کریمة "اذا جاء نصر الله والفتح ورئیت الناس یدخلون في دین الله افواجاً الی اخیر السورة"

(۵) فائده: حسین کاشفي په تفسیر حسیني کي وایي انتفاً علم بجهت معلوم است یعني شما میگویند که خدایرا شریک است وتکیه بشفاعت بتان میکنید وخداوند که عالمست بجمیع معلومات این رانمی داند پس معلوم شد که شریک اورا نیست وشفاعت بتان نخواهد بود انتهی. قال ابن الشیخ فان من ذالک (ای من الشریک وشفاعت الاصنام) لو کان موجوداً لعلمه الله تعالی ومالا یعلمه الله استحال وجوده انتهی نو معلومه سوه چي شریک او شفاعت د بتانو محال دی.

**وَمَا كَانَ النَّاسُ إِلَّآ أُمَّةً وَاحِدَةً فَاخْتَلَفُوا۟ۚ**

نه وه خلگ مګر نه یو امت یعني پر توحید فطري باندي، او یا متفقه پر دین اسلام چي مشترک دی په منځ کي د ټولو انبیا علیهم السلام یعني په اصولو او عقائدو کي له زماني څخه د آدم علیه السلام تر لږ دمخه تر نوح علیه السلام او یا وروسته تر طوفان او یا له زماني څخه د ابراهیم علیه السلام تر زماني پوري د عمرو بن لحي کمامر قصته. نو دوی یو له بله سره اختلاف شروع کړی وروسته تر دې چي دوی انبیا علیهم السلام خدای ﷻ را استول نو بعضو ایمان راوړی او بعض یې پر کفر باندي پاته سوه نو اختلاف د کفر او اسلام په دوی کي پیدا سو.

**وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِن رَّبِّكَ**

که نه وای یوه خبره چي دوړاندي یعني په ازل کي خدای ﷻ کړې ده چي هغه

خبره داده چي هر امت لره خپل اجل معلوم ستنه. او کلبي رحمه الله وايي چي امهال د
هغه امت او عذاب د دنيا يې نه اخته کوي يعني عذاب چي په اخيرت کي يې
دوی مستحق دي.

لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ فِيمَا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ⑲

نو به فيصله کړل سوې وای په منځ کي ددوی بنزول العذاب الموعود في الدنيا
وتعجيل العقوبة للمکذبين لکن الامهال فضل، چي دوی په هغه کي اختلاف
درلودای يعني الکفر والاسلام.

**يوه سه:** چي مراد له کلمة څخه قضاً الهي ده او مراد له قضاً بينهم څخه دادی
چي مؤمن به يې وجنت ته داخل کړی وای او کافر به يې ودوږخ ته په دې دنيا کي
حکمت الهي په دې کي دادی چي که خدای جل جلاله داغسي کړي وای چي عذاب
الآخرة يې ودنيا ته رانقل کړی وای نو ايمان ضروري گرځېدی او اختياري ايمان
بالغيب له منځه تلی، ولهذا قيل لايدخل النار للتابيد الا مؤمن يعني نه
داخلېږي ودوږخ ته د خلود لپاره مگر نه مؤمن يعني مؤمن د ورځي د قيامت
ولي کافران چي دوږخ ويني او بعث بعد الموت يې په مشاهده وويني، نو خو
گرده ايمان راوړي اضطراراً وهذا الايمان لا اعتبار له بل المعتبر عند الله هو
الايمان الاختياري في الدنيا بالغيب.

**يوه سه:** چي بعضو مفسرينو رحمهم الله په آيت مبارک مذکور کي دا احتمال هم بيان
کړی دی چي انسانان ټوله په اصل خلقت کي خدای جل جلاله پر يوه ملت پيدا کړي دي
چي استعداد د قبول د حق دی وروسته بيا دا ملت سره مختلف سوه په تربيت د مور
او پلار کما قال رسول الله ﷺ کل مولود يولد على فطرة الاسلام فابواه يهودانه
وينصرانه ويمجسانه. وهذا الحديث في غاية الحصحة کما لا يخفى.

**فائده:** دا اختلاف لکه په امم ماضيه وو کي وو زموږ په امت کي هم ستنه،
بعض کافران دي لکه يهود او نصاری او مشرکين او بعض مؤمنان دي او بعض
مبتدعان دي لکه معتزله او روافض وغيرهم.

**يوه سه:** چي مراد د درويش زموږ له امت څخه نفس امت دعوت دی فافهم او به

صحيح حديث كي راغلي دي اوصيكم بتقوى الله (زه تاسي ته وصيت كوم په بېره د خداى ﷻ څخه) الى ان قال في اخير الحديث وانه من يعش منكم فسيرى اختلافاً كثيراً فعليكم بسنتي وسنة الخلفاً الراشدين المهدين عضوا عليها بنواجذ (او شان دادى كه څوك ژوندى پاته سي له تاسي څخه ژر دى چي ډېر اختلاف به ويني، نو پر تاسي لازمه ده اقتداً او پيروي زما د سنت او طريقې او د سنت د خلفاً الراشدينو يعني چي پر هدايت دي او مراد له خلفاً راشدين څخه ابوبكر، عمر، عثمان او علي ﷺ دي) عضوا عليها بالنواجز (ټينګ کړئ تاسي دا سنت د زامي په غاښو كي وهذا كناية عن كمال الاتباع السنة المذكورة.

**درويش وايي:** چي اختلاف په امت مرحومه كي له قديمه څخه واقع دى كالمعتزلة والروافض والشيعة وغيرها لاهل السنة والجماعة او وروسته به هم واقع کېږي تر هغو پوري چي مهدي ﷺ پيدا کېږي او عيسى ﷺ له اسمانو څخه راكښته کېږي. قال الحافظ الشيرازي قدس سره.

تو عمر خواه وصبوری كه چرخ شعبده باز
هزار بازی ازين طرفه تر بر انگيزد
روزی اگر غمی رسدت تنگ دل مباش
رو شكر كن مباد كه از بد بدتر شود

وفي روح البيان بعض علماً وايي چي په دې امت محمديه كي يوه ډله پيدا کېږي چي د علماً سره د دين محمدي ﷺ به بغض لري او د فقهاؤ سره د دين اسلامي به لوى عداوت لري چي دا فرقه په نورو امتو كي نه وه، او داغه رنګه له مجتهدينو څخه د امت مرحومه او د حاميانو څخه د څلور طريقو د تصوف به سخت نفرت لري. حتى چي د سيد طائفة المجتهدين الامام الاعظم ابو حنيفة النعمان رحمه الله هم لوى انكار كوي او د سپكاوي په نظر ورته ګوري.

**درويش وايي:** چي دا ډلې په مختلفو نومانو ځان يادوي (۱) اصحاب ظواهر الحديث" چي دوى بې قرآن او حديثه بل هيڅ مذهب نه مني (۲) وهابيه" چي اتباع د محمد بن عبدالوهاب النجدي دي چي خپل مقتدا مجدد الدين بولي چي په دې كي

دوه احتماله سته فافهم، ددوی د مقتداً په عقیده امت مسلمه تر سنه شپږ سوه کاله (٦٠٠) وروسته تړوله مشرکان دي چي ددې ډلي حال درويش په حواله د تاریخو په یوه رساله کي چي نوم يې "البيانات الصادقة في احوال الفرقة الوهابية" چي طبع سوې ده پوره بيان کړی دی، په حديث صحيح کي راغلي دي چي عليه الصلوٰة والسلام وويل اللهم بارک في شامنا اللهم بارک في يمننا، خلگو ورته وويل وفي نجدنا؟ عليه الصلوٰة والسلام درې واره خپل خبره تکرار کړه او خلگو وفي نجدنا ورسره تکرار کړه، اخير عليه الصلوٰة والسلام دا خبره وکړه هنالک يطلع قرن الشيطان "په نجد کي يو محمد بن عبدالوهاب النجدي پيدا سوی دی (٣) سلفيه" چي ددې ډلي پوره حالات درويش په لويه رساله کي چي نوم يې سيف الكندهاري على عنق السلفي دی چي هغه هم دا اوس چاپ سوې ده او د خواهشمندانو په وړاندي ده (۴) پنج پيريه" دا يوه مرکبه ډله ده له وهابيه او سلفيه وو څخه.

وَيَقُولُونَ لَوْلَآ أُنزِلَ عَلَيْهِ ءَايَةٌ مِّن رَّبِّهِۦ

او وايي کفار د مکې ولي نه نازل کړل کيږي پر محمد ﷺ) يو دليل له جانبه څخه د خدای (جل جلاله) دده.

**يوه سه:** چي له نزول څخه مراد دا نه دی لکه نزول القرآن بلکې مراد وجود د دليل د نبوت دده دی او مراد ددوی هغه دليل دی چي دوی به غوښتي لکه چي بعضو به ويل چي د مکې مځکه تړوله غرو نيولې ده جاري اوبه هم نه لري، نو ته ستا خدای ته ووايه چي دا غرونه ايسته کړي او لويه والې دي د اوبو په مکه کي تېره کړي چي موږ پر دوارو غارو د ولې باغونه جوړ کړو، او بعضو به ويل چي د صفا غر دي د سرو زرو سي چي پر دښمنانو به هغه سره غالب وگرځوو.

فَقُلْ إِنَّمَا ٱلْغَيْبُ لِلَّهِ فَٱنتَظِرُوٓا۟ إِنِّى مَعَكُم مِّنَ ٱلْمُنتَظِرِينَ ۝

ته ورته ووايه چي د غيبو شانو علم خاص په خدای (جل جلاله) پوري دی، يعني مقترحه غوښتني علم يې د خدای (جل جلاله) سره دی، نو خدای (جل جلاله) د حکمت له لاري هغه مقترحه شيان نه نازلوي "فانتظروا" نو تاسي انتظار کوئ و آياتو مقترحه

وته او يا انتظا كوئ، چي خداى ﷻ به محق او مبطل سره جلا كړي. زه ستاسي په انتظار كي يم وقضا الهي ته په احقاق كي د حق او په ابطال كي د باطل. يعني خداى ﷻ حق چي اسلام دى او باطل سره جلا كړى چي حق بې پر باطل غالب كړى وكذالك فعل الله ﷻ.

## وَإِذَآ أَذَقْنَا ٱلنَّاسَ رَحْمَةً مِّنۢ بَعْدِ ضَرَّآءَ مَسَّتْهُمْ

چي مونږ وڅکه وو يعني ورسوو خلگو ته يعني اهل مكه ته وهم المشركون رحمة يعني فراخي د رزق او صحت او عافيت من بعد ضرا "مستهم" ورروسته تر ضرر چي دوى ته رسېدلى وُ. يعني قحط د رزق او يا مرض په بدن كي الى غير ذالك من الاهل والعيال.

## إِذَا لَهُم مَّكْرٌ فِىٓ ءَايَاتِنَا

ناگاه دوى چم كوي په آياتو زمونږ. مجاهد رحمه الله وايي چي مراد له مكر څخه تكذيب د آياتو او استهزاً په آياتو سره ده، چي په ظاهره خو دوى تكذيب د رسول ﷺ او اراده د شر وه عليه الصلوٰة والسلام ته ښكاره كوي دون تكذيب آيات الله سبحانه وتعالى لكن الشر والتكذيب في الحقيقة راجع الى الله تعالى لان الآيات القرآنية كلام الله تعالى. او مقاتل بن حيان رحمه الله وايي چي مكر ددوى دا وُ چي ورروسته تر قحط به خداى ﷻ ښه بارانونه وكړل او قحط به لېري سو. دوى به دانه ويل چي هذا ما رزقنا الله بل يقولون مطرنا بنوا كذا، پر مونږ باران وسو د فلاني ستوري له كبله لكه ثوريا مثلاً په راختلو سره چي پښتانه يې تاپى بولي.

**سوال**: مكه مكرمه خو غرنى ځاى وُ، نو دوى ته باران څه نفع كول چي نه دوى كښت درلودى نه كرونده؟

**ځواب**: په مكه مكرمه كي چي باران پر وخت نه وه اوري. نو مكه چي ډېره گرمه ده نو گرمي يې نوره پسي زياتېږي، او د سختي گرمى په اثر قسم قسم مرضونه پيدا كېږي كالطاعون والحمى المطبقة وغيرهما. او بل ځواب دا هم دى چي اهل مكه ته غزايي مواد له خارجه راتلل، نو چي بارانونه به نه وه لاري به قطع سوې لعدم الماقي الصحارى.

**درویش وایي:** چې بخاري روايت کړی دی چې علیه الصلوٰة والسلام چې ولیدی د اهل مکه ادبار یعني شاګرځول او نه قبلول د قرآن، نو علیه الصلوٰة والسلام وه اهل مکه ته داسي ښيرا وکړه اللهم اعني علیهم بسبع کسبع یوسف (ماته کومک راکړې پر دوی په اووه کاله کاختي، لکه اووه کاله کاختي چي د یوسف ﷺ په وخت کي پېښه سوې وه، نو داسي کاختي پر دوی راغله چي مواشي یې تړوله هلاک سول، او پوستکي به یې خوړل او مردار او بد بویه شیان به یې خوړل، نو ابو سفيان وه علیه الصلوٰة والسلام ته راغلی او ورته وه یې ویل یا محمد ته موږ امر کوې په طاعت د خدای او په وسیله رحمي سره وان قومک قد هلکوا او ستا قوم هلاک سو یعني د قحط له سببه نژدې وهلاک ته دی. نو ته خواست وکړه وه خدای ته ددې لپاره چي دا قحط دفع کړي، او په یوه حدیث کي داسي هم راغلي دي چي کفارو د مکې په حضور کي د علیه الصلوٰة والسلام وویل "قالوا ربنا اکشف عنا العذاب انا مؤمنون" کریمه في موضوع آخر، نو علیه الصلوٰة والسلام د کشف العذاب خواست ددوی په باره کي خدای پاک ته وکړی، نو عذاب دفع سو او قحط ولاړی، نو بیرته هغه دوی وه هغه شرک ؤ. نو خدای ﷻ مکافات له دوی څخه په ورځ د بدر واخستی کمامر.

قُلِ اللّٰهُ اَسْرَعُ مَكْرًا

ته ورته ووایه اې محمده (ﷺ) چي خدای ﷻ ژر عقوبت رسولای سي تر هغه چي تاسي په دفع کي د حق مکر کوئ کمایدل علیه اذالهم مکر آه.

**پوه سه:** چي عقوبت او عذاب ته د خدای ﷻ مکر ولي وایي لوقوعها في مقابلة مکرهم کما في قوله تعالی "صبغة الله ومن احسن من الله صبغة" لوقوعها في مقابلة صبغة النصاری اولادهم في الماء المعمودية الاصفر لونها ويقولون الآن صار نصرانياً حقاً فتدبر، او یا له باب څخه د مشاکله، ولي په ذکر کي تر مکر ددوی وروسته دی، او بعض مفسرین وایي چي له مکر څخه د خدای ﷻ استدارج مراد دی لکه په حدیث مروي کي د حضرت علي ﷺ من وسع الله علیه الدنیا او دی په دې نه پوهېدی چي دا به د خدای ﷻ له خوا استدارج وي یعني چي شکر یې هم وایه فهو مخدوع عن عقله.

إِنَّ رُسُلَنَا يَكْتُبُونَ مَا تَمْكُرُونَ

په تحقیق زموږ حفظه یعني کراماً کاتبین نوشته کوي ستاسي مکر ددې معنا داده چي ستاسي مکر له کراماً کاتبینو څخه نه دی پټ، نو څرنګه به د خالق العالمین څخه پټ وي او تاسي ته به جزا د مکر ژر درنه کړي ولي چي خدای پاک قادر مطلق دی لامعقب لحکمه او تاسي بې قدرته یاست، نو تاسي چي ابطال الحق په باره کي د مکر سنجولی تر هغه دمخه خدای ﷻ تاسي ته عذاب د مکر ستاسي په بدر کي درکړی او حق چي دین اسلام دی پر ځای پاته دی او روز افزون پر ترقي روان دی، کریمه "یریدون لیطفؤا نور الله فافواههم والله متم نوره ولو کره الکافرون".

**پوښتنه**: له دې آیت څخه خو دا معلومه سوه چي د کفارو سره هم حفظه سته، نو ما علی الیمین ملکه چي د حسناتو نوشته پر غاړه لري، نو د کافر کومه حسنه نوشته کوي لعدم الحسنة لهم لان الحسنة مشروط بالایمان؟

**ځواب**: ما علی الشمال په اذن د ما علی الیمین ملکي سیئه د کافرانو نوشته کوي او ما علی الیمین ملکه په ورځ د قیامت پر ما کتب د شمال شاهدي ادا کوي وان لم یکتب ما علی الیمین الکافر شیئا (بستان العارفین)

**فائده**: په عدد کي د کراماً کاتبین اختلاف دی، عبدالله بن المبارک وایي چي پینځه دي دوې د ورځي او دوې د شپې او یوه ورسره ملګرې ده لیلاً ونهاراً، او بعض علماً یې څلور بولي وهو المشهور، سعدي شیرازي قدس سره وایي:

تو پیش از عقوبت درعفو کوب ....... که سودی ندارد فغان زیر چوب
کنون کرد باید عمل راحساب ....... نه روزی که منشور گردد کتاب

هُوَ الَّذِي يُسَيِّرُكُمْ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ

خدای ﷻ هغه خدای ﷻ دی چي تاسي یې روان کړي یاست یعني قدرت یې درکړی دی پر تګ په بیابانو یعني پر مځکه یا پر پښو یا پر اسانو یا پر اوښانو او غیرها، او قدرت د سفر یې درکړی دی په دریاب کي یعني په ذریعه د کښتیو.

**درویش وایي**: چي مقصود په دې آیت کي بیان د نعمت دی پر انسانانو تاچي ددې نعمت شکر په ایمان راوړو پر توحید د خدای ﷻ ادا کړي او د بتانو عبادت پرېږدي.

## حَتّٰٓى اِذَا كُنْتُمْ فِی الْفُلْكِۚ

حتی چي تاسي یاست په کښتیو کي.

**پوه سه:** چي لفظ د فلک مشترک دی په منځ کي د مفرد او جمع فرق یې تقدیري دی یعني که لفظ د فلک مفرد وي، نو پېښ د فا يې لکه پېښ د قُفل دی چي مفرد دی او که جمع وي ضمه د فا يې لکه ضمه د أُسد ده چي جمع د اسد ده.

**پوښتنه:** موږ د مفرد او جمع فرق په څه شي کوو په قرآن مبارک کي؟

**ځواب:** فرق یې یا په صفت سره کېږي او یا په ضمیر راجع سره یعني که یې صفت مذکر وي او یا يې ضمیر راجع مذکر وي، نو فلک مفرد دی، او که یې صفت او یا ضمیر راجع مؤنث وي نو فلک په تأویل د جماعت جمع ده، د مثال په توګه په قرآن مبارک کي راغلي دي "في الفلک المشحون" نو چونکه مشحون چي صفت دی د فلک په هغه ځای کي مذکر او مفرد دی، نو په هغه آیت کي فلک مفرد دی. او په دې آیت کي د فلک لفظ جمع دی، ولي چي ضمیر د جمع یې ورته راجع کړی دی یعني وجرین بهم آه "حتی اذا کنتم في الفلک" حتی چي تاسي یعني په وخت کي د سفر په کښتیو کي، نو دا لفظ د فلک جمع دی داسي تفسیر یې په پښتو نه دی روا په کښتۍ کي بلکې داسي په وایو په کښتیو کي چي د پښتو لفظ د جمع دی. بخلاف لفظ کښتۍ فانه مفرد په پښتو کي.

## وَجَرَيْنَ بِهِمْ

او تګ کوي کښتیاني په دوی سره یعني بمن فیها، لفظ د جرین قرینه د جمع دی.

**سوال:** په "کنتم" کي خطاب وي، نو په بهم کي یې ولي ضمیر غائب راوړی ما فائده ته؟

**ځواب:** مظهري رحمه الله وایي عدل عن الخطاب الی الغیبة مبالغة فانه تذکرة لغیرهم لیتعجب من حالهم وینکر علیهم.

## بِرِيْحٍ طَيِّبَةٍ وَّفَرِحُوْا بِهَا

په نرم باد سره چي د کښتۍ د حال سره لائق وي او د چپه کېدلو بېره نه وي، او سپاره خلګ په دې باد خوشاله وي.

**بوه سه:** چي لفظ د "ريح" مؤنث سماعي دی.

جَآءَتْهَا رِيحٌ عَاصِفٌ

**بوه سه:** چي "جائتها" جواب د "اذا" دی او ضمير مؤنث راجع وه "فلک" ته دی، راسئ ودې کښتيو ته چي خلګ پکښې سپاره دي تند باد چي د کښتيو د ډوبيدلو غالب احتمال دی.

وَجَآءَهُمُ الْمَوْجُ مِن كُلِّ مَكَانٍ

او راسئ وسپرو خلګو ته د کښتيو څپې د درياب چي د تند باد له کبله پيدا کېږي له هر طرفت څخه.

**پوښتنه:** جائها چي ضمير راجع و "فلک" ته وای نه ووايه بلکې ضمير د هم يې ذکر کړی چي راجع وه سواريو ته دی؟

**خواب:** درياب خو کښتيو ته تاوان نه رسوي لکونها جمادات بلکې سپرو خلګو ته چي د مرګ بيره ورسره ده.

وَظَنُّوٓا أَنَّهُمْ أُحِيطَ بِهِمْ

او ددوی ګمان سي يې پر دوی احاطه وکړل سوه يعني څپو احاطه باندي وکړه او د هلاک اسباب موجود سوه.

**بوه سه:** چي "ايقنوا" يې ولي نه ووايه سبب دادی چي د مستقبل شی يقين خو په نفس قرائنو سره پيدا کېږي وغاية امر القرائن افادة الظن في الامر المستقبل کما لا يخفی.

دَعَوُا اللَّهَ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ

دوی خدای ﷻ ته خواست کوي په داسي حال کي چي دوی مخلص وي په دې کي الی الله يعني وه هيڅ چا ته بېله خدايه خواست نه کوي نه وه بتانو ته چي دوی به شريکان د خدای ﷻ بلل په عبادت کي.

لَئِنْ أَنجَيْتَنَا مِنْ هَٰذِهِۦ لَنَكُونَنَّ مِنَ الشَّٰكِرِينَ ﴿٢٢﴾

که موږ ته نجات راکړی له دې تند باد څخه چي هلاک ورسره مظنون دی.

**بوه سه**: چي "لئن انجينا" مقوله د قول محذوف دی، والتقدير يقولون لئن اه. مور هر آئينه ستا شاکر بندګان ګرځو لا لغيرک.

**فائده**: د مکې د مشرکانو عادت و چي په کښتي. کښېني به سپر ېدله يو بت به يې له ځان سره اخستی لکن باد به تند سو او د درياب څپې به پيدا سوې او بېره د هلاک به هم دامنګير سوه هغه بت به يې درياب ته وه غورځاوه وعوا الله مخلصين الآية.

## فَلَمَّآ أَنجَىٰهُمْ إِذَا هُمْ يَبْغُونَ فِى ٱلْأَرْضِ بِغَيْرِ ٱلْحَقِّ

نو هغه وخت چي خدای ﷻ به نجات ورکړی ودوی ته په قبلونه د دعا ددوی نابېره او په تلوار سره به دوی بغي او ظلم پر حقوق د خلګو شروع کړی او حدود شرعيه او شکر د خدای ﷻ لکه دوی چي وعده کړې وه پرېښو او دا ظلم ددوی په ځکه کي بېله حق و او بغير الحق تاکيد دی د "يبغون" ولي چي بغي خو وي ناحقه البتة.

**بوه سه**: چي د "بغير الحق" د قيد فائده داده چي مسلمانانو خو هم د کفارو سره په جنګ کي دوی وژني او کورونه يې نړوي او باغونه يې ورسوځي يا يې رېبي. نو دا که څه هم تجاوز دی پر کافران باندي لکن دا چونکه په امر د خدای ﷻ دی نو دا بغي بالحق ده فافهم.

## يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنَّمَا بَغْيُكُمْ عَلَىٰٓ أَنفُسِكُم مَّتَٰعَ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا

اې خلګو نه ده بغي او ظلم ستاسي مګر پر خپلو ځانو ولي چي وبال د بغي وه تاسي ته راجع کېږي په اخرت کي.

**درويش وايي**: چي ترمذي او ابن ماجه له حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت کړی دی چي رسول الله ﷺ وويل اسرع الخير ثوابا البر وصلة الرحم، واسرع الشر عقوبة البغي وقطيعة الرحم.

**بوه سه**: چي "متاع آه" منصوب دی په عامل مقدر سره ای تمتعون متاع الحيوة الدنيا.

**فائده**: متاع په نصب سره قرائت دی د حفص رحمه الله. او نور قاريان يې تو له په رفع سره وايي چي خبر بعد الخبر يې د بغيکم بولي.

ثُمَّ إِلَيْنَا مَرْجِعُكُمْ فَنُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُونَ

وروسته يعني په ورځ د قيامت رجوع ستاسي ده، نو "رجع" مصدر ميمي دى ومورړ ته، نو مورږ به خبر کړو تاسي په هغه شي چي تاسي يې عمل كاوه په دنيا كي نو پر دې ترجمه كلمه د ما په بما كي موصوله ده او عائد يې محذوف دى اي تعملونه، او "بعملكم" نو ما مصدريه دى، يعني بالجزا على البغي والفساد، په دې آيت كريمه كي فوائد (١) ودې ته اشاره ده چي فلك نعمت دى د خداى ﷻ ولي چي خلگ محتاجه كېږي وفلك ته د درياب په سفر كي في الامور الدينية كالحج والعمرة والغزوة في سبيل الله او گاهي په امور دنياويه كي لكه تجارت لپاره د ضرورت د نفقې د عيال، په انوار المشارق كي وايي چي سفر د كښتۍ ونرو او ښځو دوارو ته روا دى كما هو مذهب الجماهير، لكن ښځو ته سفر مكروه دى، ولي چي ستر په كښتۍ كي غالباً ممكن نه دى خصوصاً په كوچنۍ كښتيو كي لضيق المحل، او بل دا چي ښځو ته ضرورت د قضأ الحاجة پيدا كېږي په حضور كي د نرو، نو غالباً به عورت غليظه ددوى په مخ كي ښكاره سي انتهى.

**درويش وايي**: چي دا حكم د پخوانيو كښتيو دى چي آب بازانو به خپله چلولې او په اوسنۍ زمانه كي هغه كښتۍ چي په نامه د آب گوټ يادېږي دا بهره نسته ولي چي په آب گوټ كي د نرو ځاى جلا دى او د ښځو دا جلا دى او د قضأ حاجت لپاره محفوظ ځايونه سته وكذا للوضو والغسل فليس فيه انكشاف العورة اصلاً (٢) له عبد الله بن عمر ؓ څخه روايت دى چي مرفوع الى النبي ﷺ دى لا يركب البحر الا حاجاً او معتمراً او غازياً في سبيل الله الى اخير الحديث.

**مسئله**: ددې حديث په رڼا كي دا واضح سوه كه پر چا حج فرض وي او يا جهاد ته ځي في سبيل الله، نو پر هغه باندې ركوب د بحر واجب ده كه بله لار نه وه، او داغه رنگه د علوم شرعيه وو د طلب لپاره، او كه د كښتۍ راكب ته په دغه مذكوره امورو كي د درياب په سفر كي دوران الراس يعني سر ځرخي وربېښه سوه او عثيان المعدة يعني خوا گرځي وربېښ سو فله اجر شهيد، او كه يې تجارت كاوه او بله د درياب له لارې بله لار نه وه او تجارت يې هم لپاره د قوة

العيال ؤ لا لجمع المال هغه هم په ذکر سوي ثواب کي داخل دی، او که يو مسلمان په کښتۍ کي سپور ؤ او کښتۍ غرقه سوه دی پکښي مړ سو د دوو شهيدانو د وچي مځکي ثواب خدای ﷻ پاک ورکوي، يو خو نفس غريق شهيد دی کما ورد في الحديث النبوي الصحيح، او بل له دې سببه چي دی په طاعت پسي د خدای پاک روان ؤ کالحج والعمرة والغزوة وورد في الحديث الطويل چي د هغه حديث په يوه برخه کي راغلي دي غزوة في البحر خير من عشرة غزوات في البر، ومن فاته الغزو معي فليغز في البحر، که د چا څخه پاته سوه غزا زما په ملگرتيا کي يعني له وروسته امتيانو څخه ؤ، نو هغه دي غزا ته په درياب کي ولاړ سي يعني ثواب يې دومره دی لکه زما سره چي ملگری وي (۳) يو سړي ته چي د درياب سفر يې کړی ؤ چا ورته وويل چي په درياب کي دي څه عجائبي وليدلې؟ هغه ورته وويل چي دا عجبه مي وليدل چي زه سالم ځني راووتلم. يو قائل دېره په زړه پوري خبره کړې ده.، بيت

بدريا درمنافع بی شمار است .......... اگر خواهی سلامت درکنار است

او سعدي شيرازي رحمه الله بيا وايي:

سود دریا نیک بودی گر نبودی بیم موج
صحبت گل خوش بدی گرنیتی تشویش خار

**شهانه لطيفه**: حکايت دی چي يو نحوي عالم په کښتۍ کي سپور سو، نو ملاح يعني چلونکي ته د کښتۍ يې وويل په علم نحو خبر يې؟ ملاح ورته وويل يا، نحوي ورته وويل چي ستا نيم عمر عبث دی، اخير کښتۍ په درياب کي تر څپو لاندي راغله، ملاح نحوي ته وويل چي آب بازي دي زده ده؟ نحوي ورته وويل يا ملاح ورته وويل ستا ټوله عمر عبث تېر سو (۴) له آيت مبارک څخه معلومه سوه چي بغي او فساد او تعصب وعناد او کفران د نعمت د رب العباد له هېري څخه د عهد د خدای پاک پېښېږي او له همېشه توب څخه پر گنهو، ددې نتيجه موأخذه او انتقام دی اما في الآخرة فقط واما في الدنيا والآخرة کما في غزوة بدر لکفار مکه چي اوويا کسه يې مردار سوه او اوويا کسه يې بنديان سوه.

## إِنَّمَا مَثَلُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا

يعني حال عجيبه د ژوند د دنيا چي حال يې دادى چي ډېر ژر زائلېږي او خلگ په خطاوتلي دي چي زه به ژونی يم تر ډيره پوري.

**بوه سه:** چي مراد له ژر زائلېدلو څخه نسبت وه ژوند ته د آخرت چي هغه زوال ناپذير دى فلا يرد السؤال باعمار الامم الماضية چي په سوو كلونه يې عمرونه وه كعمر نوح عليه السلام وعمر فرعون ونمرود وغيرهم.

## كَمَآءٍ اَنْزَلْنٰهُ مِنَ السَّمَآءِ فَاخْتَلَطَ بِهٖ نَبَاتُ الْاَرْضِ مِمَّا يَاْكُلُ النَّاسُ وَالْاَنْعَامُ

لكه اوبه چي نازلي يې كړو موږ له اسمان څخه او يا له وريځي څخه فان كل ما علاك سماً. نو سره گډوډ په هغو اوبه شنه كېدونكي شيان د مځكي يعني د ډېروالي څخه يو په بل كي جاروځي، له هغو نباتاتو څخه چي خلگ يې خوري يعني مېوه او حاصل د هغو لكه غنم، جوار، اوربشي، مېوه داري درختي، سبزي جات لكه سبزي، روميان، انگور، انځير، پتاتې الى غير ذالك او يا چارپايان يې خوري لكه اوبښ مرغى ځوزان وغيره.

## حَتّٰٓى اِذَآ اَخَذَتِ الْاَرْضُ زُخْرُفَهَا وَازَّيَّنَتْ

تر هغه وخته پوري چي واخلي مځكه خپل حسن او سرسبزي او شادابي په رنگارنگ نباتاتو سره او گلانو سره حتى دښتونه او مځكه ډېره ښائسته سي ولي چي د مځكي ښائست او سرخي وسپېدي هم دغه قسم قسم نباتات او گلان دي.

## وَظَنَّ اَهْلُهَآ اَنَّهُمْ قٰدِرُوْنَ عَلَيْهَآ

او د مالكانو دِ مځكي دا غالب گمان سي چي موږ قادر يو پر دې مځكه يعني پر غلې او حاصلاتو د مځكي يعني موږ به حاصلات د درختو تړله ؤ په شكولو سره او د مځكي د غنمو په لو او غوبل كولو سره او پر دغو حاصلاتو به نفع اخلو او د عيال نفقه بې كوو.

## اَتٰهَآ اَمْرُنَا لَيْلًا اَوْ نَهَارًا فَجَعَلْنٰهَا حَصِيْدًا

نو پر دغه مځكه زموږ قضأ راسي چي كښت د كښتو مرض متوجه سي يا ژلې

پر اوري او يا د درختو بعض آفات پر نازل سي، يا د شپې يا د ورځې نو ګرځو مو ږ دغه کښتونه حصيداً يعني متشابها په رېبل سوي کښت سره.

كَأَن لَّمْ تَغْنَ بِالْأَمْسِ

لکه چي دې مځکي يعني کښت د مځکي بحذف المضاف درنګ او بقايه نه وه پرونه، اى قبيل ذالک الزمان اى القريب الماضي وهو الامس.

**پوه سه**: چي دا تشبيه المرکب بالمرکب ده، نو مشبهه يې حيوٰة الدنيا. د سړي د سره د غفلت او طول دده او ناپيره مرګ راتګ دى پر ده په حال کي د غفلت او مشبه يې مضمون د حکايت دى يعني مځکه سرسبزه او کښتونه پر حاصلاتو راغله او د صاحب د کښت دا ظن غالب ؤ چي حاصلات د مځکي جمع کولاى سم ناپيره آفتونه پر نازل سوه او کښت له منځه ولاړى، نو دا توهم دي څوک نه کوي چي حرف تشبيه خو ماء داخل دى، نو بايد مشبه به ماء سي، ولي چي دلته خو تشبيه د مفرد بالمفرد نه ده بلکې تشبيه د مضمون بالمضمون ده فافهم.

كَذَٰلِكَ نُفَصِّلُ الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَتَفَكَّرُونَ ﴿٢٤﴾

لکه مامر موږ تفصيل د آياتو قرآنيه وو کوو چي مشتمل پر مواعظو او پر اوامرو او منهياتو او پر تمثيلاتو وي د تفهيم لپاره کوو د هغه قوم لپاره چي دوى تفکر په آياتو قرآنيه وو کې کوي يعني په عقل سليم د عناد او حسد څخه خلاص وي و انما خصهم بالذکر لانهم هم المنتفعون بالآيات القرآنية لا اهل الحسد والعناد والشرک.

**درويش وايي**: چي وجه د تشبيه په دې آيت کي داده چي باران چي اوري په قدر د حاجت الناس والزرع فائده کوي او که تر حد د اعتدال بالا سوه ضرر رسوي هم کوروته د خلګو او هم کښتوته، دغه رنګه مال که په قدر ماينفع به ضرورة الاهل والعيال ويحصل به المقاصد الدينية کالحج والانفاق في سبيل الله وغير ذالک والدنيوية کالانفاق على الاهل والعيال کان نافعاً، او که مال زائد وي تر قدر د حاجت وکان موجبا لارتکاب المعاصي کشرب الخمر والزنا وغير ذالک

او دغه رنګه مال کثیر سبب د تفاخر او کبر او ظلم ګرځي کما قال الله ﷻ ان الانسان لیطغی ان رأه استغنی، کما قال الشاعر:

توانګری کشدت سوی عجب ونخوت وناز
خو شست فقر که دار د هزار سوز و نیاز

او بعض مفسرین رحمهم الله وایي چې څه وخت چې باران اوري یو ځای قرار نه نسي بلکې پر اطرافو بهیږي دغه رنګه مال د دنیا یو ځای قرار نه لري یعني د یوه مالک په لاس کي بلکه هر روز در دست دیګری باشد وهر شب با یکی عقد مواصلت بندد، نه عهد او را وفایی ونه وفایی بقایی، قال الشاعر:

ګنج امان نیست درین خاکدان .......... مغز وفانیست درین استخوان
کهنه سرا یست بصد جاګرو .......... کهنه و اندر ګر و نو بنو
مکن عشق باهمچنین د لبری .......... که هر بامدادش بود شوهری

وَاللَّهُ يَدْعُوٓا۟ إِلَىٰ دَارِ ٱلسَّلَٰمِ

او خدای پاک دعوت ورکوي ټولو خلګو ته. فالمفعول محذوف ای الناس لعمومه او دا دعوت پر لسان د علیه الصلوٰة والسلام دی او د تابعانو دده په علم او عمل کي الی یوم نفخ الصور وه دار السلام ته.

**یوه سه:** چي سلام یا مصدر دی یعني دار السلامة من جمیع الآفات والامراض والبلیات والفتن وهو الجنة. او یا سلام صفت مشبه دی او نوم د خدای پاک دی، نو اضافت د دار وخدای ﷻ ته تشریف المضاف د چي دار دی وهي ایضاً الجنة فالاضافة من قبیل بیت الله للکعبة المبارکة. او بعض مفسرین رحمهم الله وایي چي مراد له سلام څخه التیحة دی. نو جنت ته چي دار التحیة وایي له دې سببه چي جنتیان یو وبل ته په وخت کي د ملاقات وایي سلام علیک او ملائکه هم ودوی ته سلام وایي قال الله تعالی "والملائکة یدخلون علیهم من کل باب یعني وتقول سلام علیکم بما صبرتم فنعم عقبی الدار" او په اخیر کي سلام قولاً من رب رحیم په حدیث صحیح کي چي روایت یې جابر رضي الله عنه کړی دی چي علیه الصلوٰة والسلام ته ملکي راغلي او دی مبارک بیده ؤ، نو ملکو سره وویل ان لصاحبکم هذا مثلاً

فاضربوا له (دې صاحب لره ستاسي يعني عليه الصلوٰة والسلام لپاره يو مثال سته ورته بيان يې کړی بعضو ملکو وويل چي دی خو بيده دی يعني نو د مثال ويلو څخه څه فائده ده. او بعضو ملکو وويل چي سترګي يې بيدې دي او زړه يې وينښ دی يعني قابل د فهم خو زړه دی هغه زړه دده وينښ دی، نو دوی وويل چي مثال دده لکه مثال د هغه سړی دی چي سرای جوړ کړي يعني ډېر زيبا او قشنګ. او په هغه کي لويه مېلمستيا جوړه کړي يعني اطعمه لذيذه من کل نوع. او دغه سرای والا يو سړی واستوي چي ټولي محلې والو ته دي عمومي اعلان وکړي چي راځئ فلاني خان عمومي ډوډی کړې ده. نو د اعلان کونکي دعوت که څوک ومني نو به سرای ته ورسي او ورجي وغوښي مثلاً به وخوري او سرای جوړونکی به هم ځني راضي سي چي زما مېلمستيا ته راغلې. او که څوک د داعي ست ونه مني (يعني تکبراً) نو به نه سرای ته داخل سي او نه به د مېلمستيا ډوډی وخوري. بيا ملکو سره وويل چي تاسي ددې مثال ترجمه او تاويل دته بيان کړې چي يعني چي عليه الصلوٰة والسلام په وه پوهېږي؛ بيا بعضو ملکو وويل چي دی خو بيده دی څرنګه به وپوهېږي، نورو ملکو وويل چي سترګي يې بيدې دي زړه يې وينښ دی يعني په تاويل د مثال پوهېږي ولي فهم خو د زړه کار دی. نو ملکو ورته وويل ي دار جنت دی (يعني خدای ﷻ ډېر زيبا جوړ کړی دی چي په جنت کي هغه شيان سته چي نه سترګو ليدلي دي او نه چا تفصيلاً اورېدلي دي او نه د چا په زړه کي ورګرځېدلي دي کما جا في حديث آخر) او داعي الی الجنة ته محمد ﷺ دی فمن اطاع محمداً فقد اطاع الله ومن عصی محمداً فقد عصی الله ومحمد فرق بين الناس (يعني بين المؤمن والکافر) رواه البخاري.

وَيَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٢٥﴾

او هدايت کوي خدای ﷻ يعني دلالت موصله الی المطلوب کوي له خلګو څخه وه هغه چاته چي د خدای ﷻ اراده ورته وسي (يعني چي څوک طالب د هدايت سي) وهغه لاري ته چي سمه لاروي وهو الاسلام ودين محمد ﷺ او لار د وصل کېدو ده و خدای ﷻ ته.

**حکایت**: بمناسبة الآیت، تاریخ اسلامي وايي چي يو باچا وو په پښو امتو کي چي کافر هم ؤ يو ښار گوتي يې جوړ کړی ډېر ښائسته او ډېره جانفشاني يې وکړه په ښائست کي د ښار، وروسته يې عمومي مهماني وکړه خلگ فوج درفوج مهماني او د ښار سېل ته راروان وه په دروازه کي د ښار يې يو نوکر درولی ؤ چي هر سړي چي د ښار گوتي ډوډۍ يې خوړلې وي پر دروازې تېرېږي تاسي پوښتنه ځني وکړئ چي په ښار گوتي کي کوم عیب خو تاسي ونه لیدی، نو خلگو به پهره دار ته ویل چي هیڅ عیب نه وه پکښې، وروسته يو څو کسه په لباس کي د ملنگيانو چي شړي، يې پر اوږو وې راغله چي ډوډۍ يې وخوړله پهره دارانو پوښتنه ځني وکړه چي په ښار کي خو مو عیب ونه لیدی؟ هغو ورته وويل چي دوه عیبه پکښې وه، دربان باچا ته دا خبر ورکړی ددې خلگو د وينا، باچا وويل چي زه په يوه عيب نه وم راضي دوی دوه عيبه پکښي وليدل، حکم يې وکړی چي دا خلگ راولئ، خلگ چي يې وروستل باچا پوښتنه ځني وکړه چي دوه عيبه څه شي وه چي تاسي دعوه کړې وه؟ هغو خلگو ورته وويل چي يو عيب يې دادی چي اخير الامر به دا ښار خرابېږي، او بل عيب يې دادی چي مالک د ښار به يو وخت مري، باچا وويل چي تاسي ته داسي ښار درمعلوم دی چي خرابېږي به نه او نه به يې مالک مړ کېږي؟ هغو ورته وويل هو! نو هغه سرای چي نه خرابېږي جنت دی او د جنت د نعمتو بيان يې ورته وکړی او بادشاه ته يې دعوت د جنت ورکړی، او ورته وه يې ويل چي مالک د جنت خدای پاک دی چي حي لا يموت دی او واحد لاشريک دی، او بادشاه ته يې وويل چي په مقابل کي د جنت بيا مالک د جنت دوږخ پيدا کړی دی چي ځای او بندي خانه د مشرکانو دی، نو دې نصيحت لوی تاثير په باچا کي وکړی، نو ايمان يې راوړی وخرج من ملکه هارباً تائباً.

لِّلَّذِينَ أَحْسَنُوا الْحُسْنَىٰ وَزِيَادَةٌ

**بوه سه**: چي "الحسنی" مبتدأ ده او زيادت پر عطف دی، او "للذين" خبر مقدم دی، والمعنی د هغه کسانو لپاره چي عمل په اخلاص کوي په دنيا کي ښه دار سته په اخرت کي چي جنت دی، او زياتوب هم سته چي ديدار د رب العزت دی.

**پوه سه**: چي احسان په عمل کي هغه دی چي په حدیث طویل کي چي روایت يې بخاري او مسلم کړی دی له عمر ﷺ څخه چي جبرائیل ﷺ چي وه علیه الصلوٰة والسلام ته راغلی په حضور کي د اصحابو ﷺ د علیه الصلوٰة والسلام څخه يې پښتني کولې ماالایمان؟ ماالاسلام، او علیه الصلوٰة والسلام جوابونه ورکوله په اخیر کي د حدیث يې ورته وویل ماالاحسان؟ علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل ان تعبدالله کانک تراه فان لم تکن تراه فانه یراک.

**فائده**: د الحسنی تانیث په اعتبار د موصوف دی ای المثوبة الحسنی چي هغه جنت دی.

**درویش وايي**: چي په رؤیت کي د خدای ﷻ اختلاف دی، معتزله دې څخه منکر دي، او طوسي په خپل کتاب تجرید کي وايي "ورؤیة الله تعالی کمایزعمونه اهل السنة والجماعة باطل" وروسته يې دلائل عقلیه ذکر راوړي دي چي په راوړلو کي يې فائده نسته بېله تشویشه د عمومي افکارو، امام قرطبي چي تفسیر قرطبي دده شاندار تفسیر دی په کتاب الرؤیة کي وايي هذا تفسیر قد استفاض واشتهر فیما بین الصحابة ﷺ والتابعین ﷺ ومثله لا یقال الا بتوقیف انتهی.

ترجمه: تفسیر د زیادت په رؤیت د خدای ﷻ داسي تفسیر دی چي مستفیض او مشهور دی په منځ کي صحابه کرامو ﷺ او د تابعینو او داسي خبره یعني د عقل لار ورته نه وي څوک يې نه وايي بېله علم ورکولو د شارع الشریعة ﷺ له خوا، او په حدیث صحیح کي چي روایت يې مسلم او ابن ماجه کړی دی له صهیب ﷺ عن النبي ﷺ، قال اذا دخل اهل الجنة الجنة یقول الله تریدون شیئاً ازیدکم (چي داخل سي اهل د جنت وجنت ته، نو الله تبارک وتعالی ووايي تاسي اراده لرئ د یو شي چي درزیات يې کړم) فیقولون الم تبیض وجوهنا الم تدخلنا الجنة وتنجینا من النار (جنتیان ورته ووايي آیا تا خدایه زموږ مخان نه دي سپین کړي یعني په نور سره یعني سپین کړي دي دي، آیا موږ دي نه یو داخل کړي وجنت ته یعني داخل کړي دي یو، آیا موږ ته دي نجات نه دی راکړی له اور څخه بلکي راکړی دي دی، ددوی غرض داوي چي تر دې شیانو به نور زائد څه شی وي) فیکشف الحجاب فما اعطوا شیئا احب الیهم من النظر الی ربهم (نو خدای ﷻ حجاب د کبریا د خپل ذات جلیله څخه ایسته کړي، نو دوی ته نه وي ورکړل سوی یو شي چي محبوب وي دوی ته تر

ديدار د خدای ﷻ) ثم تلا هذه الآية يعني "للذين احسنوا الحسنى وزيادة (بيا عليه الصلوٰة والسلام په تفسير د زيادت بروية الله تعالى دا آيت ووايي).

**درویش وایي:** چې امام مظهري رحمه الله په خپل تفسير کې په ډېرو سندو سره تفسير د زيادت په رؤيت سره راوړى دى.

**درویش وایي:** چې دلائل عقليه د طوسي پوچ او بې بنياد دى، مولنا روح رحمه الله په مثنوي کې وايي:

پای استدلال پاچو بين بود ...... پای چوبين سست وبى تمكين بود

جمال يار ندارد نقاب پرده وبى ...... غبار ره نيشان تا نظر توانى كرد (حافظ)

وَلَا يَرْهَقُ وُجُوهَهُمْ قَتَرٌ وَلَا ذِلَّةٌ

نه به وي پټ کړي مخان ددوى گرز چې په هغه کې تور والى وي او نه ذليل والى لکه دوږخيان.

أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿٢٦﴾

دغه موصوف بالاوصاف المذكور كسان دي اصحاب د جنت او دوى په جنت کې همېشه وي، لا يخرجون منها ولا يموتون ولا يمرضون بخلاف الحيوٰة الدنيا.

وَالَّذِينَ كَسَبُوا السَّيِّئَاتِ جَزَاءُ سَيِّئَةٍ بِمِثْلِهَا

دا موصول عطف دى پر "للذين احسنوا آه" پر مذهب د هغه چا چې عطف د معمولي وده عاملينو پر معمولي د عاملين مختلفينو چې مجرور په معطوف او په معطوف عليه مقدم وي روا بولي كما في الدار زيد والحجرة عمرو، كما في الكافية وشرحها لعبد الرحمن الجامي قدس سره.

**بوه سه:** چې "والذين" مبتدأ ده خبر يې "جزأ سيئة" دى. والتقدير جزأ الذين كسبوا السيئات جزأ سيئة بمثلها، يعني مونږ جزأ ورکوو د هغه چا چې سيئه يې په مقدار د مثل د هغې سيئه لا يزاد فيها.

وَتَرْهَقُهُمْ ذِلَّةٌ ۖ مَا لَهُمْ مِنَ اللَّهِ مِنْ عَاصِمٍ

او مخان ددوى به په ذلت ککڼ وي، نسته دوى لره د عذاب څخه د خداى ﷻ ساتونکي يعني نه د دنيا له عذاب څخه او نه د آخرت.

**بوه سه**: چي كلمه د "من" زائده ده استغراق د نفي كما لايخفى.

كَأَنَّمَآ أُغْشِيَتْ وُجُوهُهُمْ قِطَعًا مِّنَ ٱلَّيْلِ مُظْلِمًا ۚ

گويا پټ مخان د دوی تو تو د شپې چي تاريكه وي. قطعاً جمع د قطعة ده مفعول ثان ده اغشيت دی او من الليل صفت د قطعاً دی او مظلماً حال دی د ليل څخه. او مفعول اول د اغشيت وجوههم دی چي په ځای كي د فاعل د اغشيت چي فعل مجهول ودرېدی او مرفوع سو.

أُو۟لَٰٓئِكَ أَصْحَٰبُ ٱلنَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَٰلِدُونَ ﴿٢٧﴾

او دغه كسان دي اوسېدونكي د اور چي دوی به په دغه اور كي همېشه وي لايخرجون ولايموتون.

**درويش وايي**: چي علامة بغدادي السيد محمود الآلوسي رحمه الله په تفسير كي د جزء (۱۱) ص (۱۰٦) كي وايي چي وعيديه چي په بل نامه يې معتزله بولي په دغه آيت سره دليل وايي پر خپل مذهب فاسد چي گناه كبائر والا چي بې توبې مړ سي ځای يې ابدي دوزخ دی؟

**ځواب**: سيئات خو كفر ته هم شامل دي او دغه رنگه كبائر او صغائر ته هم، نو كه آيت پر خپل عموم پاته سي نو بايد گناه صغائر والا هم خالدين في النار وي ولم يقل به احد، نو موږ ته دلائل صحيحه پر دې قائم دی چي اهل معاصي وو ته خلود في النار نسته. فيجب تخصيص الآية بمن عداهم وهم الكفار. او بل ځواب دادی چي اهل كبائر د مؤمنانو داخل په الذين احسنوا كي دي بناً على ما اخرج ابن جرير وابن المنذر وابو الشيخ وغيرهما رحمهم الله عن ابن عباس رضي الله عنهما چي د "الذين يحسنون" څخه مراد قائلون د لا اله الا الله دي ای المؤمنون مطلقاً كه كبائر والا وي او كه نه فلايدخل عصاة المؤمنين في القسم الآخر يعني والذين كسبوا السيئات آه. ولي چي ددې دوو ډلو حكمونه سره منافي دي يعني لايرهق وجوههم الآية، وترهقهم ذلة كانما الآية. او بل ځواب دادی چي الف ولام په الذين كسبوا السيئات آه كي لپاره د استغراق دی يعني من الصغائر والكبائر والكفر او د داسي ځا خلود في النار خو مجمع

عليه لجميع الامة، او امام مظهري په جواب کې د سوال اود دليل ددوی داسې ويلي دي چې په دمخه آيت کې خدای پاک وويل "جزا سيئة بمثلها، فيقضي الآية المذکورة ان جزا اصحاب الکبائر من المؤمنين دون الکفر وفوق الصغائر لايصح الحکم على العموم بالخلود في النار" نو مشار اليه د "اولئک اصحاب النار الآية" قوله من کسب السيئات نه دي بلکې کافران دي، هذا تحقيق هذا المقام ومن الله التوفيق وبه الاعتصام.

## وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا ثُمَّ نَقُولُ لِلَّذِينَ أَشْرَكُوا مَكَانَكُمْ أَنتُمْ وَشُرَكَاؤُكُمْ

هغه ورځ چې موږ حشر او ژوندي کوو دواړې ډلې، حال کونهم جميعاً، بيا موږ وايو وه هغو کسانو ته چې شريک يې وايه خدای ﷻ ته "مکانکم" منصوب دی په فعل مقدر سره ای الزموا امکانکم تاسې پر خپلو ځايو ودرېږئ، او "انتم" تاکيد دی د ضمير د الزموا المحذوف، او شرکائکم عطف دی پر انتم.

## فَزَيَّلْنَا بَيْنَهُمْ

او موږ قطع کړو هغه پيوند چې د عبدة الاصنام او ددوی د معبودينو تر منځ و يعني هر معبود چې بتان دي له خپلو عابدينو څخه وبالعکس، او يا معنى د زيلنا بينهم داده چې جلا کړو موږ مؤمنان او کافران کما في قوله تعالى "وامتازوا ايها المجرمون".

## وَقَالَ شُرَكَاؤُهُم

يعني بتان چې دوی شرکا د خدای ﷻ گرځولي وه.

**سوال**: بتان خو جمادات وه نو څرنگه دوی خبري کوي؟

**ځواب**: هذا من قبيل قوله تعالى انطقنا الله الذي انطق کل شيئ، يعني هغه وخت چې اعضا د گناه کونکي پر ده شاهدي ادا کړي.

## مَّا كُنتُمْ إِيَّانَا تَعْبُدُونَ ﴿٢٨﴾

تاسې نه واست اې عابدينو چې زموږ عبادت مو کاوه يعنې چې موږ له تاسې څخه طلب د عبادت کاوه، د کافرانو مشرکانو د ډېرې ناامېدۍ ځای دی چې دوی به عليه الصلوة والسلام ته ويل هولاء شفعائنا عندالله، يا به يې ويل مانعبدهم الا ليقربنا الى الله زلفى.

فَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ اِنْ كُنَّا عَنْ عِبَادَتِكُمْ لَغٰفِلِيْنَ

كافي دى خداى ﷻ "البا زائدة في الفاعل" شاهد زموږ او ستاسي تر منځ موږ وو يعني بتان وايي د عبادت څخه ستاسي موږ غافل يو. يعني په حقيقت کي تاسي د خپلو اهوا زائغه وو او د شياطين عبادت کاوه چي تاسي امر کولاست زموږ په عبادت سره.

**فائده**: ان يا مخفف د مثقل دى يعني انا کنا او کلمه د لام په لغافلين کي فرق ده په منځ کي د ان شرطيه او مخفف د مثقل، او يا کلمه د ان نافيه ده او کله د لام په لغافلين کي په معنى د الا ده، اى ماکنا الا غافلين عن عبادتکم، ولي چي موږ نه عقل درلودى او نه سمع او بصر، نو موږ څرنګه ستاسي په عبادت پوهېدلو.

هُنَالِكَ تَبْلُوْا كُلُّ نَفْسٍ مَّآ اَسْلَفَتْ

**پوه سه**: چي "هنالک" ظرف مکان دى اى في ذالک المقام الدهش يعني چي ډېر د خوف او دهشت ځاى دى او يا په دغه وخت کي د دهشت او حيرت باستعارة ظرف المکان لظرف الزمان "تبلو" من البلوى والاختبار چي په فارسي يې معنا ده بيازمودن او په پښتو يې معنا ده ازمايښت مکان يا زمان امتحان کبرى "کل نفس" د هر نفس که مؤمن وي او يا کافر او که مطيع وي او که عاصي او خبريږي به "ماسلف" يعني په هغه عمل چي ده په دنيا کي کړى وي او نفع يا ضرر به يې وويني، او بعض مفسرين رحمهم الله وايي چي تبلو په معنى ده تتبع دى والمعنى چي متابعت به کوي هر نفس د خپل عمل به يې بيايي وجنت او يا دوږخ ته.

وَرُدُّوْٓا اِلَى اللّٰهِ مَوْلٰىهُمُ الْحَقِّ

او دوى به رد کړه سي خداى ﷻ ته اى الى جزائه اياهم په هغو عملو چي دوى په دنيا کي کړي وه "مولى هم الحق" چي رب د دوى دى په حق سره لا ماتخذو، اوليا من الاصنام.

**سوال**: په بل ځاى کي خداى ﷻ وايي" وان الکافرين لا مولى لهم.

**جواب**: مولى په هغه ايات کي په معنى ده ناصر دى او په دې آيت کي په معنى د رب او مالک دى فلا منافات بين النفي والاثبات.

وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ

او زائل باطل سي هغه سي چي مشركانو يې دعوه كوله د بتانو په باره كې چي دا شركا الله دي، او يا يې ويله چي زموږ خدايان يعني بتان زموږ شفاعت كونكي دي زموږ دپاره يعني دغه دوې دعوې چي دوى كولې په هغه ورځ د قيامت بې د ده هاغو څخه ووزي، بعض سادات كرام رحمهم الله وايي د غره كينل په نوكانو اسان دي تر زوال د هوا نفساني چي په چا كي تينګ سي كما في المشركين من اتباع الهوى في عبادة الاصنام.

**پوه سه:** ده خداى جل جلاله نه دي خوښ هغه عمل چي په هغه كي التفات وغير الله ته وي كه نفس وي او كه غير د نفس څخه وي، او دغه رنګه د خداى جل جلاله نه دى خوښ هغه زړه چي مشترک په محبت اختياري د غير الله من شهوات النفس وغيرها وي، محمد بن حسان رحمه الله وايي چي زه د لبنان په غره كي ګرځېدم چي يو سړى د يو غاره څخه را ووتى چي ګرمي ده غره يې لګه مخ چي ورسوى وي چي زه يې ولېدم راسه ميدان يې كړه ما پسي ميدان كړه او ورناري مي كړه چي ماته يو نصيحت وكړه، په يوه كلمه سره چي زما ديره فائده په كښې وي ده په څغاسته كي راته وويل چي د خدايه څخه بېرېږې ولي خداى غيور دى نه خوښه دي په زړه كي د بنده ما سوى د خپل ځان.

قُلْ مَن يَرْزُقُكُم مِّنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ

ته ووايه يا محمد ﷺ ودوى ته يعني مشركانو ته څوک دى چي تاسي ته رزق دركوي د آسمان څخه يعني په بارانو يا واوره سره په اورېدو او د مځكي څخه يعني د نباتاتو چي ستاسي غذاوي يا ستاسي د حيواناتو رزق وي يعني دا كارونه خداى واحد لاشريک كوي او كه يې ستاسي خدايان بتان كوي.

أَمَّن يَمْلِكُ السَّمْعَ وَالْأَبْصَارَ

او څوک دى مالک د اورېدو د غوږو، او د ليدلو د سترګو يعني د خلګو" پوه سه سمع يې مفرد راوړه او ابصار يې جمع نكته يې داده چي سمع مصدر دى په استعمال كي مفرد او جمع سره برابر دى، او استعمال يې په قوت سامعه كي نادر

دی، او بصر که څه هم مصدر دی لکن استعمال يې په عضو مخصوص کې دی، او یا معنی داده چې څوک دی چې په غوږنو او رګو او پلو سره دي اوريدل او ليدل وکړي، او یا معنی داده چې څوک دی چې ساتنه د دغو دوو وختو کوي مدةً مديدةً ای مدة العمر او سره ددې چې دغه دوه ظاهر هم دي او د ډېر ضعيف هم دي.

## وَمَنْ يُّخْرِجُ الْحَىَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَيُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ

او څوک دی چې راباسي ژوندی حیوان له مړي څخه چې نطفه د هګۍ ده او یا راباسې مړ شی د ژوندي څخه يعني نطفه یا اګۍ ده د ژوندي حيوان څخه.

**درويش وايي:** چې ظاهره معنی د آيت خو داغه ده او بعض مفسران وايې چې مراد د حي څخه مؤمن دی کابراهیم ﷺ او مراد د میت څخه کافر دی لکه ازر چې پلار د ابراهيم وو، او میت من الحی لکه کنعان زوی د نوح ﷺ وو د نوح علیه السلام او بعض مفسران وايې چې مراد د حی من المیت څخه ولادت د عالم د جاهل پلار څخه او میت من الحی لکه جاهل زوی د عالم پلار څخه وهذا کثير جدا.

## وَمَنْ يُّدَبِّرُ الْاَمْرَ

څوک تدبير او کار سازي او عواقب ته کتل کوي او عالم دی د سمواتو وما فيها او د مځکي وما عليها په احوالو.

## فَسَيَقُوْلُوْنَ اللّٰهُ

**پوه سه:** چې لفظ د الله دا خبر د مبتدأ محذوفي دی يعني ژر دی چې دوی به وايې چې هو الله ولي چې د دې کار نسبت دوی وخپلو خدايانو ته نسي کولای لانه خلاف البداهة الاولية مثل ان يقول احد ان الثلاثة زوج يعني درې جوت دي.

## فَقُلْ اَفَلَا تَتَّقُوْنَ ⑪

آيا تاسي د داسي مقتدر خدای ﷻ د عذابه نه بېرېږئ چې بتان مو ورسره شريکان کړي دي.

## فَذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمُ الْحَقُّ

دغه څوک چې دغه کارونه يې کړي دي او کوي يې او تاسي هم اقرار په وکړی

كما مر قريبا "الله" اى المستحق للعبادة، چي ستاسي تربيه كونكى دى ولي هم يې تاسي پيدا كړي ياست او تاسي ته رزق دركوي نو وجدان او برهان پردې شاهد دى چي معبود بالحق هم داغه ذات دى وحده بلا شريک "الحق" چي وجود يې ثابت دى په اولوهيت كي هيڅ شبه نشته.

فَمَاذَا بَعْدَ الْحَقِّ إِلَّا الضَّلَٰلُ ۖ فَأَنَّىٰ تُصْرَفُونَ ۝

**پوه سه:** چي دا استفهام انكاري دى اى ليس شئ بعد الحق الا الضلال اى الكفر والشرک، چيري تاسي مصروف سواست د حقه وباطل او ضلال ته.

سعدي شيرازي رحمة الله عليه:

ترسم نرسې بكعبه اى اعرابى ... كين ره كه تو ميروى بتركستان است
واقف نمي شوند كه گم كرده اند راه ... تا راه روان براه نمايې نمير سند

كَذَٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِينَ فَسَقُوا أَنَّهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ۝

داغه رنګه حق سوې ده خبره د خداى جل جلاله، پر هغو كسانو چي سركشي په كفر كي كوله او قابل د طلب د صلاح نه دي، چي دوى ايمان نه را وړي.

**پوه سه:** چي ذالک اشاره ده ومصدر مفهوم ته د حق يعني لکه چي ثابت سو حق والى ده ربوبيت د خداى او دا چي ليس بعد الحق الا الضلال.

**پوه سه:** چي مراد د كلمة ربک څخه حكم ازلي د خداى جل جلاله يعني لاملئن جهنم من الجنة والناس.

قُلْ هَلْ مِن شُرَكَائِكُم مَّن يَبْدَأُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ ۚ

ته ورته ووايه يا محمد ﷺ يعني مشركينو ته د مكې چي ايا سته د شركا څخه ستاسي يعني تاسي يې د خداى جل جلاله شريكان بولې د خداى سره په عبادت كي چي اصنام او بتان دي داسي څوک چي ابتدا د خلق د مخلوقاتو دي كړې وي" بيا وروسته دي ژوندي كوي.

**سوال:** مشركين خو د اعادة بعد الموت څخه منكر وه كه څه هم ابتدا د خلق ده د خدايه څخه بلله نو څه رنګه په اعادة بعد الموت دوى ته الزام او قناعت وركړه سو.

**جواب:** بدء الخلق د خداى د خوا خو دوى مانه نو اعادة بعد الموت خو اسانه ده

في الظاهر تر بدء الخلق وان كان بالنسبة الى قدرته تعالى سوا نو الزاما بايد دوى په اعادة بعد الموت هم قانع وي نو ځکه خدای ﷻ ودوى ته په جواب کي خدای ﷻ امر کړی علیه الصلاوة والسلام په جواب ورکولو سره.

قُلِ اللَّهُ يَبْدَؤُا الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ ﴿٣٤﴾

ته ورته ووايه دوى ته چي الله ﷻ ابتدا د خلق د اشيا کړي ده او بيا يې بيرته بعد الموت ژوند ته راګرځوي، نو څه رنګه تاسي صرف نظر ګرځوې د عبادت څخه د خدای ﷻ و عبادت ته د بتانو، چي هغه په بدء الخلق کي هيڅ برخه نه لري او تاسي هم په هغه اقرار کوئ.

قُلْ هَلْ مِن شُرَكَائِكُم مَّن يَهْدِي إِلَى الْحَقِّ

ته ورته ووايه يعني يا محمد ﷺ ودوى ته يعني مشرکانو ته ايا سته د شرکا څخه چي تاسي يې شريکان د خدای بولئ داسي څوک چي هدايت وکړي د خلګو و حق ته چي دلائل ووايي او رسولان را واسته وي او توفيق د نظر صحيح وخلګو ته ورکړي الاستفهام للانکار يعني نسته ولي ستاسي شريکان جمادات لا يقدرون على شئ.

قُلِ اللَّهُ يَهْدِي لِلْحَقِّ أَفَمَن يَهْدِي إِلَى الْحَقِّ أَحَقُّ أَن يُتَّبَعَ أَمَّن لَّا يَهِدِّي

ته ورته ووايه چي خدای ﷻ هدايت ورکونکى دى حق ته يعني بارسال الرسل ونصب الدلائل واعطا المعجزات لا غيره، آيا هغه څوک چي هدايت وحق ته کوي چي خداى دى حق دار د دې دى چي نور خلګ يې متابعت وکړي او يا هغه څوک چي هدايت نسي کولای چي بتان او جمادات دي تاسي فيصله وکړئ.

إِلَّا أَن يُهْدَىٰ

مګر نه چي هدايت ورته وکړل سي" پوه سه! چي استثنا مفرغ ده يعني مستثنى منه يې محذوف دى او دا استثنا منصوب محلا ده پر ظرفيت والتقدير لا يهدي في شئ من الاوقات الا قت هدايته تعالى اياه، نو باره دى پخپله هم پر هدايت ګرځي او بل ته هم هدايت کولای سي:

**پوښتنه:** خبره خو په بتانو کي وه نو هغه څه رنګه پر هدايت کيدای سي او بل ته هم څه رنګه هدايت کولای سي.

**جواب:** دا حال د اشرف د معبوداتو د دوی دی چي ملائکه دي چي مشرکانو به بنات الله بولليې او د دوی عبادت به يې کاوه. او بعض مفسران وايې چي مراد د هدايت څخه نقل دی من مکان الی مکان، نو بتان خو هم مشرکانو د يوه ځای څخه بل ځای ته نقل کول ففيه اشارة الی عجز الاصنام چي دوی نقل مکان هم نسي کولای چي تاسي يې نقل نه کړئ فهم اعجز منکم ولي چي تاسي نقل مکان پخپله کولای سئ.

فَمَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ ﴿٣٥﴾

نو پس څه حال دی ستاسي ای مشرکانو چي دغه حکم باطل بالبداهة کوئ چي دا بتان شرکا د خدای دي او سره د دې چي تاسي اعلی حالاً ياست تر دوی.

وَمَا يَتَّبِعُ أَكْثَرُهُمْ إِلَّا ظَنًّا

او متابعت نه کوي اکثره د مشرکانو په دې باره کي چي بتان خدايان دي مگر نه د گمان بېله تحقيق او يقين څخه بلکه صرف په تقلېد د پلرو او نېکه گانو.

**پوه سه:** چي اکثره د قيد فائده دا ده چي د بعض د دوی پر دې يقين وو چي توحيد حق دی لکن مکابرة او عنادا يې انکار کاوه.

إِنَّ الظَّنَّ لَا يُغْنِي مِنَ الْحَقِّ شَيْئًا

په تحقيق چي گمان تقلېدي سړي ته فائده نه وررسوي د حق او يقين په ځای کي چي توحيد دی وبالفارسية کما في تفسير الحسيني" بې نياز نه گرداند کسي از علم واعتقاد درست. يعني ظن وتخمين لکه مشرکانو چي به تقليد د آباؤ درلودی بجای حق ويقين نخواهد رسيد آه.

**پوه سه:** چي د شيئا معنی دا ده ای شئ من الاغنا نو مفعول مطلق دی، او بعض مفسران رحمهم الله وايې چي ظن د دوی چي اصنام زموږ شفاعت کونکي دي باطل محض چي مبني پر خيال فاسده د دوی دی" اين خيال است ومحالست وجنون.

إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِمَا يَفْعَلُونَ ﴿٣٦﴾

خدای جل جلاله خبر دی په هغه شي چي دوی يې فعل کوي" من اتباعهم الظن الفاسد واعراضهم عن البرهان المفيد لليقين.

**مسئله:** په اصولو کي د دين علم يقين چي د مشکوة سره د قرآن عظيم الشان ماخوذ وي او يا د سننو نبويه ﷺ مشهوره اخستل سوي وي ضروري دی البته په فروع کي د دين ظن کافي دی والتفصيل فی العقائد والاصول.

## وَمَا كَانَ هَٰذَا الْقُرْآنُ أَنْ يُفْتَرَىٰ مِنْ دُونِ اللَّهِ

نه دی دا قرآن يعني المعجز للبلغاً باتيان مثل سورة منه درواغ يعني د خدای ﷻ ما سوی څخه لکه مشرکانو د مکې چي به ويل چي محمد ﷺ دا قرآن د ځانه څخه جوړه وي او افتراً يې وخدای ته نسبت کوي" يعني دا قرآن من عند الله دی والا لما عجزوا عن الاتيان بمثله والحال انکم بلغاً ومحمد ﷺ امي.

**پوه سه:** چي ان يفتری په دخول د ان مصدريه مصدر وګرځېدی او په معنی د مفعول دی ای مفتری خبر د کان دی.

**پوه سه:** چي من دون په تقدير د صادرا من دون الله خبر آخر دی د کان.

## وَلَٰكِنْ تَصْدِيقَ الَّذِي بَيْنَ يَدَيْهِ

لکن دا قرآن مصدق دی د هغو کتابو چي د ده د مخه نازل سوي دي کالتوراة والانجيل وغيرهما من الکتب الالهية يعني مضامين د قرآن موافق دي د مضامينو سره د کتب سابقه وو په اصول او عقائدو کي او په قصصو کي د امم سابقه وو او دا قرآن ښکاره سو پر لاس د دسي چا چي محمد عليه الصلوة والسلام دی چي هيڅ شيئ د علومو ودته حاصل نه وو او نه دی د علماوو سره د کتب سابقه وو يې تماس درلو دی فعلم من کل ذالک ان هذه القرآن من عند الله العزيز العلام ومبلغه رسوله عليه الصلوة والسلام.

## وَتَفْصِيلَ الْكِتَابِ لَا رَيْبَ فِيهِ مِنْ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٣٧﴾

او بيان دی د ما فی اللوح المحفوظ من الحلال والحرام وشرائع الاحکام، هيڅ شک نشته په قرآن کي چي من عند الله دی "من رب العالمين" خبر آخر داخل في حکم الاستدراک ای کائنا من رب العالمين يعني قرآن وحي نازل دي د جانب څخه د رب العالمين.

**پوهه:** چي تفصيل عطف دی پر تصديق تر لكن استدراكي لاندي دی او خبر دی د كان مقدر هنالك لان التقدير هنالك ولكن كان تصديق الخ او بعض مفسرين وايي چي كتاب د كتب څخه ماخوذ دی په معنی د فرض وحكم وقدر دی يعني تفصيل ما حقق واثبت من الحقائق والشرائع والاحكام والمآل واحد.

**پوهه:** چي كلمه ده "لا" دپاره د نفي جنس ده اوريب يې اسم دی او فيه يې خبر دی.

**فائده:** دا جمله خبر ثالث د كان داخل تحت الاستدراك ده، يعني صلاحيت د ريب په قرآن كي نسته لكونه معجزا مطابقا للكتب المتقدمة.

**سوال:** منكران د قرآن ډېر دي فضلاً عن الريب؟

**جواب:** خدای وايي چي قرآن ځای د شك نه دی كما مر لا انه تاب فيه احد" فالريب والانكار راجع الى المرتابين والمنكرين. گفته اند الشمس شمس وان لم يراها الضرير" والعسل عسل وان لم يجد طعمه فاه المرير.

أَمْ يَقُولُونَ افْتَرَاهُ قُلْ فَأْتُوا بِسُورَةٍ مِّثْلِهِ

آيا دوی به ويل چي قرآن كريم په درواغو سره عليه الصلوة والسلام د ځانه څخه اختراع كړي ده، ته ورته ووايه په رد كي قول د دوی چي كه ستاسي خبره رشتيا وي نو تاسي هم راتگ وكړئ په يو سورة سره كه طويل او كه قصير وي، چي مثل د قرآن وي په بلاغت كي او حسن النظم كي ولي چي تاسي خو زما غوندي عرب ياست بلكه تر ما ډېر په نظم او نثر كي اموخته ياست.

**پوهه:** چي كلمه د ام منقطعه ده په معنی د بل آه ده بل يې دپاره د انتقال دی د ماقبله څخه او همزه يې دپاره د انكار دی د واقع څخه"يعني دا خبره دوی بايد نه وای كړی، ولي چي عاقل ادني عقل بايد داسي خبره ونه كړي چي د بداهة څخه خلاف دی لكه دوی چي خبره افتراه كوله.

**پوښته:** دوی يعني قريشو او عربو به يو څه كښني سورة جوړ كړی وای او عليه الصلوة والسلام ته به ويلي وای چي دغه دی د قرآن د سورة مثل"

**جواب:** چي دوی د قرآن كريم په اعلی بلاغت پوهېدله او كې صرف يو شی

جوړ کړی وای د نورو بلیغانو څخه شرمېدله چي اعتراض به را باندي وکړي.

**سوال:** چي د ځان عجز يې ومانه نو دا خو به اقرار په کون د قرآن کلام الله نه وي؟

**جواب:** دوی عجز نه مانه بل قالوا انهم سحروا تسحيرا" يعني موږ خو قادر پر اتيان د مثل د قرآن يو لكن محمد ﷺ په موږ سحر وكړی چي زموږ عقول يې د اتيان بالمثل څخه مصروف كړه.

**فائده:** دوی ظالمانو د عليه الصلوة والسلام په شان كي د هېڅ بد نامی څخه ډډه نه كوله. مثلا شاعر" ساحر" مجنون" مفتر" يعلمه بشر، د لاهور پاكستان په ښار كي د تابعانو د غلام محمد قادياني يو سړی وو هغه وويل چي د قرآن د يو سورة جوړول خو اسانه خبره ده نو ده د القارعة ماالقارعة پر ډول الخ داسي مثل يې جوړ كړی وو. الفيل ما الفيل وما ادراک ما الفيل له ذنب قصير وخرطوم طويل الى آخره لعنه الله تعالى.

وَادْعُوا مَنِ اسْتَطَعْتُم مِّن دُونِ اللَّهِ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿٣٨﴾

او سره د خپل كوششه تاسي را وبولي يعني د قرآن كريم د يوه سورة د جوړېدو دپاره هغه څوک چي تاسي په طاقت پوره وي يعني من البلغا ماسوى د خدای څخه ولي پر دې مثل خو خدای ﷻ قدرت لري لا غيره تعالى كه چيري تاسي صادق ياست" په دې دعوه كي چي محمد ﷺ دا قرآن د ځانه څخه جوړه وي.

**پوه سه:** چي ان حرف شرط دی او د جزا څخه مستغني په ماقبل سره يعني فأتو "لكن دوی پر دې نه سوه قادر.

بَلْ كَذَّبُوا بِمَا لَمْ يُحِيطُوا بِعِلْمِهِ

**پوه سه:** چي كلمة د بل د پاره د اضراب ده ددوی مناظره سره وتشنيع او ذم ته د حال د دوی، يعني چي تكذيب د دوی او انكار كون القرآن كلام الله ﷻ لا كلام البشر په هغه شي چي عبارة د قرآن څخه دي چي دوی يې احاطه نه وكړي پر علم د هغه يعني تكذيب د دوی مبنى پر تحقيق او تدبر نه دی په لطائفو كي د قرآن او په غايت بلاغت كي او په اخبار بالغيب كي د قرآن من القصص الماضية والمستقبلة" بل په اول وهلت كي د اورېدو د قرآن ژبې درازي كړې په انكار د

قرآن، والعاقل ينبغي له ان يتدبر في الشئ ثم يقبله او يرده، والتعجيل من الشيطان حين امر الله بالسجود لادم ﷺ فابى في اول الوهلة من غير تدبر.

وَلَمَّا يَأْتِهِمْ تَأْوِيلُهُ

يعني دوى ته نه وو راغلى علم پر معاني وو د قرآن من الوعد والوعيد" والاخبار بالغيوب من المبدء" نو ده تاويل معنى ما يؤل اليه حال القرآن" او دوى ته علم پر حقيت د قرآن كه يې تلوار بالتكذيب نه واى كړى ممكن وو، چې ملا يانو ته د كتب متقدمه يې رجوع كړې واى او خپل حال يې ورته بيان كړى واى او ورته ويلي واى چې په مونږ كې يو سړى دعوىٰ د نبوت وكړه او داسي يو كتاب يې مابين ته راوړى چې مونږ ټوله يې د اتيان څخه د مثل د يوه سورت عاجزه كړو او سره د دې چې دا شخص په مونږ كې امي هم وو، نو هغو علماؤ به حتما ورته ويلي واى چې دا شخص په خپل اخبار كې صادق دى خصوصا كه دوى يعني مشركانو د مكې قبل هجرته ﷺ الى المدينة و علماؤ ته د يهودو رجوع كړې واى فافهم ولا تعجل.

كَذَٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِينَ مِن قَبْلِهِمْ ۖ فَانظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الظَّالِمِينَ ﴿٣٩﴾

**بوه سه:** چې په دې آيت كې تسلي ده وعليه الصلوة والسلام ته" والمعنى دغه دول لكه كفار د مكې چې ستاسي تكذيب وكړى هم داغسي تكذيب كړى دى كافرانو د امم ماضيه وو من زمن نوح ﷺ ته وګوره چې څه رنګه سوى دى حال د ظالمانو د امم ماضيه چې خداى ﷻ په انواعو سره عذاب د هلاك مبتلى كړه اين كفار قوم نوح ﷺ اهلكهم الله بالطوفان" اين فرعون واتباعه ممن انكرو من نبوت موسى ﷺ اهلكهم الله بالغرق في اليم.

**درويش وايي:** چې په دې آيت كې علاوه پر تسلي اشاره ودې ته ده چې ستا د منكرانو به ورته حال وي. او دا اشاره ته يې وعده خداى ﷻ پر ځاى كړه په بدر كې كمار، او په فتح كې د مكې، نو د وعيد دى د كفارو د مكې.

وَمِنْهُم مَّن يُؤْمِنُ بِهِ وَمِنْهُم مَّن لَّا يُؤْمِنُ بِهِ ۚ وَرَبُّكَ أَعْلَمُ بِالْمُفْسِدِينَ ﴿٤٠﴾

يعني بعض له منكرانو څخه ايمان لري پر قرآن لكنه ينكره عناداً وتعنتاً او يا معنا داده چې بعض له منكرانو څخه في الحال به په استقبال ايمان راوړي بعد

التفکر في معاني القرآن او یا وروسته تر رؤیت د معجزاتو د پرو. له سببه د پېر عبادت او د فکر نه وهلو په حقائقو کي د قرآن. او یا یې په لیدلو سره د پېرو غریبو معجزو کابي جهل والمغیرة وامثالها. او خدای ﷻ ستا خبر دی په مفسدینو سره او یا په معانیدینو سره.

**پوه سه:** چي اعلم پر تفضیلي معنی نه دی بلکې په معنی د عالم دی ولي چي غیر د خدای ﷻ څخه په مفسدینو سره هیڅ څوک نه دی خبر.

**وَإِنْ كَذَّبُوكَ فَقُل لِّي عَمَلِي وَلَكُمْ عَمَلُكُمْ أَنتُم بَرِيئُونَ مِمَّا أَعْمَلُ**

که دوی ستا پر تکذیب اصرار وکړي بعد الزامهم بالحجة المذکورة ورته ووایه دوی ته چي مالره خپل عمل دی ای جزائه او نور بحث مه ورسره کوه. او تاسي لره ده جزا د خپلو عملو ده. تاسي بېزاره یاست زما له عمل څخه چي توحید او اسلام دی یعني زما عمل وتاسي ته نه تاوان رسوي او نه فائده. بل لکل عامل جزا عمله ان کان خیرا فخیر وان کان شرا فشر. لکن ازار مه رارسوئ.

**وَأَنَا بَرِيءٌ مِّمَّا تَعْمَلُونَ ﴿٤١﴾**

او زه بېزاره یم ستاسي له عملو څخه یعني خدای ﷻ ما ستاسي په عملو چي کفر او عصیان نه نسي، ولي چي زما وظیفه د رسالت انداز او تبشیر د هغه ما پای ته ورسول "انما علی رسولنا البلاغ المبین الآیة"

**پوه سه:** چي کلبي او مقاتل وایي چي دا آیت منسوخ دی په آیت سره د قتال.

**وَمِنْهُم مَّن يَسْتَمِعُونَ إِلَيْكَ**

او بعض د مشرکانو هغه کسان دي چي غوږ یې نیولی وي وتاته یعني ته قرآن وایي او شرائع د اسلام بیانوې لکن ظاهري غوږونه یې نیولي وي او د زړه غوږونه یې په عناد او تکبر او شهواتو فاسده وو کانه وي لکه کوڼ چي په ظاهري غوږو نه اوري.

**أَفَأَنتَ تُسْمِعُ الصُّمَّ وَلَوْ كَانُوا لَا يَعْقِلُونَ ﴿٤٢﴾**

آیا ته قدرت پر سماع د "صم" قلبي لري والاستفهام للانکار یعني قدرت نه پر

لري، كه څه هم دوى سره د كوښو الي عقل هم نه لري، او ظاهري كوڼ خو په اشاراتو مطلب فهمولاى سي.

وَمِنْهُم مَّن يَنظُرُ إِلَيْكَ ۚ أَفَأَنتَ تَهْدِى الْعُمْىَ وَلَوْ كَانُوا۟ لَا يُبْصِرُونَ ﴿۴۳﴾

او بعض د منكرانو تاته په ظاهري سترګو ګوري او دلائل د نبوت او معجزاتو هم ويني لكه ابوجهل لكن تصديق ستا د نبوت نه كوي لعدم البصيرة في قلوبهم. آيا ته لاربښوونه كولاى سې وه هغه چاته چي ړوند وي كه څه هم دده ظاهري سترګو وه ړوند تيا ته د باطني سترګو ړوند تيا هم ورجوت سي. نو داسي شخص چي په ظاهري او باطني سترګو ړوند وي ددې هدايت ډېر بعيد دى.

**فائده:** په دې آيت كي تسلي وه نبي ﷺ ته ده، ګويا خداى پاك ورته وايي لاتقدر ان تسمع من سلبت عنه السمع، ولاتهدي من سلبت عنه البصر ولا ان توفق الايمان من حكمت انه لايؤمن. نو هم ددې سببه ته ما امر كړې په تبري ددو څخه بقوله تعالى قل لي عملي ولكم عملكم الآية.

إِنَّ اللَّهَ لَا يَظْلِمُ النَّاسَ شَيْـًٔا وَلَـٰكِنَّ النَّاسَ أَنفُسَهُمْ يَظْلِمُونَ ﴿۴۴﴾

په تحقيق خداى ﷻ ظلم نه كوي پر خلګو شيئاً من الظلم، نو شيئاً مفعول مطلق دى يا په يو شي د عذاب نو شيئاً مفعول به دى، والحاصل چي خداى ﷻ بېله كفره او عصيان څوک دوزخ ته نه اچوي لانه ظلم والله تعالى بريئ من الظلم ولي خداى ﷻ انسانان له ظلمه څخه منعه كوي فكيف يظلم هو، بلكي علاوه پر استعداد فطري رسولان عليهم السلام را استولي دي، كريمه: وما كنا معذبين حتى نبعث رسولاً ومع ذالک انزل عليهم الكتاب وايديهم بالمعجزات الباهرات.

**درويش وايي:** چي چونكه ضرر د كفر او عصيان وه خلګو ته راجع دئ نو څكه خداى ﷻ ووېل ولكن الناس آه.

**فائده:** له دې آيت څخه صراحةً دا معلومه سول چي بنده كه څه هم خالق د خپلو افعالو نه دى لكن مسلوب الاختيار بالكلية هم نه دى بلكي كاسب دى، كما تقرر في كتب العقائد كشرح العقائد للعلامة التفتازاني رحمه الله والمواقف للقاضي عضد الدين رحمه الله وشرحه للسيد الجرجاني وكتاب مسلم الثبوت الفرق بين الخلق

والكسب، هو جبريه ظالمان وايي چي بنده ګان مسلوب الاختياره دي كسباً وخلقاً.

**درويش وايي:** چي مفاسد د مذهب د جبريه وو بيخي ډير دي (١) ارسال الرسل لغوه ګرځي (٢) انزال الكتب السماوية هم لغوه ګرځي (٣) اتصاف الباري عزّوجلّ بذميمة الظلم حين يدخل يوم القيامة بعض الناس الى النار، وقد قال الله تعالى ان الله لايظلم الناس آه (۴) لايصح نسبة الظلم الى الناس لانهم مسلوب الاختيار عندهم مع انه قال ولكن الناس آه، الى غير ذالک من المفاسد والحق انه لاحظ لهذه الطائفة في الاسلام، او ددوى له مذهب څخه دا لازميږي چي هر څو واره چي په قرآن كي راغلي دي جزاً بما كانوا يعملون جزاً بما كانوا يكسبون ټوله ددوى مذهب ردوي فافهم قال الشاهر المحقق رحمه الله:

چشم از براى ديدن آيات قدرتست ... ګوش ازپى شنيدن اخبار حضرتست
هرګه كه حق نبيند وحق نشود كسى ... كورو كرست بلكه ازان هم بتربسى

وفي الحديث النبوي المتفق عليه للبخاري ومسلم بروايت ابو موسى الاشعري رضي الله عنه، قال رسول الله ﷺ مثل مابعثني الله به من العلم (عليه الصلوة والسلام وويل مثال د هغه شي چي زه خداى جل جلاله په راستولى يم د هدايت او علم څخه) كمثل الغيث الكثير اصاب ارضا فكانت طائفة منها طيبة قبلت الما وانبتت الكلأ والعشب (لكه مثال د ډير باران چي پر مځكه وه اوري، نو يوه حصه د مځكي پسته او خوږه مځكه وي چي اوبه جذب كړي، نو راشنه كړي دغه خوږه مځكه كلأ يعني تخمنو چي خلګو پكښي پاشلي وي او عشب چي خدايي تخمونه چي په مځكه كي وي راشنه سي، او بالعكس "وكانت منها اجادب امسكت الما فنفع الله به الناس فشربوا وسقوا وزرعوا" (او بعض ټوټه د مځكي ډب ځاى وي او كلكه ډبرينه وي اوبه د باران خوندي كړي يعني جذب يې نه كړي بلكي حوض مانده پكښي ولاړي وي، نو خلګ يې هم څيښي او خپل حيوانان هم پر اوبه وي او شاوخوا كښت هم ورته كوي) وكانت طائفة منها اخرى انما هي قيعان لا يمسك الما ولاتنبت الكلأ (او بله طائفه د مځكي ښويي ډبري وي چي نه اوبه جذب كوي يعني لګه اوله مځكه او نه اوبه خوندي كوي نه وابنه راشنه كوي يعني لكه دوهمه

مځکه) فذالک مثل من فقه في دين الله ونفعه ما بعثني الله به فعلم وعلم ومثل من لم يرفع بذالک رأساً ولم يقبل هدى الله الذي ارسلت به (نو دغه مثال دی د هغه چا چي فقاهت او دانشمندي حاصله کړي په دین کي د خدای ﷻ او ده ته خدای ﷻ نفع په ور کړی په ما بعثني الله به چي دین او هدیٰ د خدای ﷻ دی، یعني نفع يې داده چي په علم سره عمل وکړي، نو دین زده کړي او بل ته يې هم وروښيي.

**درویش وايي:** چي دا د مځکي طيبه مثال دی چي په خپله هم سرسبزه او شادابه سول، او بل چا هم نفع پر واخستله، او مثل د هغه چا چي نه کړی پورته سر وهدی الله ته کنایه ده د عدم التفاوت، او نه يې کړی قبول هدایت د خدای ﷻ چي زه را استول سوی یم په هغه سره.

**درویش وايي:** چي دا مثال دی د قیعان مځکي کمامر او د دوهمي مځکي چي اجادبه وه متروک دی، او هغه هغه عالم متبحر دی چي علم وبل ته وربښيي او په خپله يې نفع نه وي پر اخستې يعني عمل يې نه وي په کړی.

**درویش وايي:** چي دا قسم علماً په حاضر کي بېخي ډېر دي بخلاف عصر الصحابة ﷺ والتابعين وتبع التابعين رحمهم الله فانهم كانوا من القسم الاول للارض ثم بعد خير القرون ايضاً امثلة كثيرة لهذا القسم كما لايخفٰی، او د قیعان مځکي مثالونه په هر عصر کي بېخي ډېر او ترحد تېر دي من الكفرة الفجرة وهذا تحقيق هذا الحديث مطابقاً لما في شروح البخاري ومسلم وفقنا الله واياكم الى خيرات الدارين.......... بیت:

واعظان کين جلوه درمنبر ومحراب ميکنند
چون به خلوت ميروند کاری ديگران ميکنند

**وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ كَأَن لَّمْ يَلْبَثُوٓاْ إِلَّا سَاعَةً مِّنَ ٱلنَّهَارِ يَتَعَارَفُونَ بَيْنَهُمْ**

او هغه ورځ چي دوی یعني الکفار یعني له قبرو څخه راووځي.

**پوه سه:** چي "کان" مخفف د مثقل دی اسم يې محذف دی ای کانهم، او خبر يې "لم يلبثوا" دی یعني ګویا دوی درنګ نه دی کړی، ابن عباس رضي الله عنهما وايي په قبرو کي او ضحاک رحمه الله وايي په دنیا کي.

**پوښتنه:** عمرونه ددوی که په دینا کي وه او که په قبرو کي ژ دا خو طویل عمرونه وه، نو دوی ولي ساعة من النهار ووایه؟

**ځواب:** باعث ددوی لیدل د هول او سختۍ د ورځي د قیامت وه.

**فائده:** عامل د نصب د "یوم" اذکر مقدر دی، جمله تشبیه د "کان آه" په ځای کي د حال ده له ضمیر منصوب څخه د "یحشرهم" والتقدیر یحشرهم مشبهین بمن لم یلبث الا ساعة "یتعارفون بینهم" او دوی دبله سره پېژني لکه په دنیا کي دوی ته داسي معلومېږي چي موږ لږ زمانه سره جلا سوي یو.

**پوه سه:** چي دا جمله (یتعارفون آه) بیان د "کان لم یلبثوا" ده، په تفسیر زاهدي کي وایي چي معتزله په دغه آیت سره یعني "کان لم یلبثوا آه" سره دلیل وایي چي عذاب القبر نسته، ولي که کفار په قبروکي معذب وایي، نو دا دومره دروازې د عذاب القبر ودوی ته یو ساعت نه معلومېده. بیا زاهدي رحمه الله ځواب ورکړی دی که څه هم کفار ډېره زمانه په قبرو کي معذب هم وه لکن نسبت ولوی عذاب ته د لوی ورځي د قیامت کانه ساعة من النهار فافهم.

﴿قَدْ خَسِرَ الَّذِينَ كَذَّبُوا بِلِقَاءِ اللَّهِ وَمَا كَانُوا مُهْتَدِينَ﴾

**پوه سه:** چي دا شاهدي د خدای جل جلاله پر خسران د کافرانو، یعني تاوان کړی دی هغه کسانو چي کذب یې باله ملاقات د خدای جل جلاله یعني حساب او جزا د خدای او دوی نه وه پوهېدلي د تجارت په لارو یعني په دنیا کي، ولي خرڅ کړی ایمان په کفر سره او تصدیق په تکذیب سره او را یې نیوی دوږخ په جنت سره.

**پوه سه:** چي ما د تجارت لفظ ووایه، ولي خسران په تجارت پوري اړه لري.

چه خوش گفت باکودک آموزگار ...... که کاری نه کردیم وشد روزگار

**ژباړه:** څه ښه وویل وه یوه کوچني ته استاذ دده چي کار د اخیرت مو نه وکړی او تېر سو ژوند یعني په لهو ولعب کي.

﴿وَإِمَّا نُرِيَنَّكَ بَعْضَ الَّذِي نَعِدُهُمْ﴾

یا به موږ په تا ووینو بعض هغه عذاب چي موږ یې د کفارو سره وعده کړې ده لکه په بدر کي چي اوویا رئیسان د کافرانو په شمول د ابوجهل ووژل سول، او

او يا كسه ستاسي په لاس كي بنديان سول.
**يوه سه:** چي اصل د "اما" انما ؤ، "ان" شرطيه دی او ما زائده، جواب د شرط محذوف دی نحو فذاک انمطلوب او انا عليه مقتدرون.

**أَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَإِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ ثُمَّ اللَّهُ شَهِيدٌ عَلَىٰ مَا يَفْعَلُونَ ﴿٤٦﴾**

يا به تا وفات كړو يعني دمخه تر رويت د عذاب ددوی، نو بيا د كفارو رجوع وموږ ته ده يعني په ورځ د قيامت، نو هورې به په تا عذاب ددوی وه وينم، وانا منهم منتقمون، بيا خدای ﷻ شاهد دی پر هغو كارو چي دوی په دنيا كي كوله من الكفر والمعاصي والاستهزاً بک وبالقرآن العظيم، وانكار رسالتک.
**يوه سه:** چي مراد له شهادت څخه نتيجه د شهادت ده وهي الجزاً على افعالهم السيئة ولهذا اورد لفظ د "ثم" الدال على التراخي، ولي كه مراد له شهادت څخه نفس شهادت وای بيا يې عطف په "ثم" نه صحيح كېدی لان الله شهيد حال الرجوع وقبله على ماكانوا يفعلون من التكذيب والمحاربة معک، او په تفسير كواشي كي وايي چي لفظ د "ثم" په معنی د واو دی لان حروف العطف يجيئ كل واحد بمعنى الآخر، او يا "ثم" لپاره د تراخي في الاخبار دی لا في وجود الشهادت نحو زيد قائم ثم هو كريم ای ثم نخبرک بانه كريم.

**وَلِكُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولٌ**

هر امت لره د امم ماضيه ؤ رسول ؤ چي خدای ﷻ د خلگو د دعوت لپاره راستولی ؤ توحيد ته والايمان بالبعث بعد الموت وامثال ذالک.

**فَإِذَا جَاءَ رَسُولُهُمْ قُضِيَ بَيْنَهُم بِالْقِسْطِ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٤٧﴾**

چي رابه غلی رسول ددوی او بينات او معجزات به هم ورسره وه، وههنا محذوف يعني فكذبوه كمايدل عليه مابعده، نو فيصله وكړل سوه په منځ كي د هغه امت مكذبه يعني وبين الرسول په عدل سره يعني هلاک به كړل سوه مكذبين او پاته به سوه رسول والمؤمنون، و پر دوی ظلم نه دی كړل سوی يعني خدای پاک وايي چي په نزول د عذاب موږ پر دوی ظلم نه دی كړی بلكي دوی مستحق ددغه عذاب وه، او

مجاهد او مقاتل وايي چې هر امت لره رسول ؤ چې دوی ته راستول کړل سوی ؤ، نو چي ورځ د قيامت سي، نو رسول ددوی راسي پر بعض شاهدي د ايمان اداکړي او پر بعضو د کفر، نو قضا الهي جاري سي په منځ کي د امتيانو په عدالت سره بادخال المؤمنين الجنة وتعذيب الكافرين بالنار، دا آيت د هغه آيت سره برابر دی فكيف اذا جئنا من كل امة بشهيد (اى رسولهم) وجئنابك على هؤلاً شهيداً.

**پوه سه:** چي بعض راويان وايي چي څرنګه چي هغه مخنی آيت نازل سو اعني فاما نرينک آه، کفارو د مکې استهزاءً او استبعاداً لنزول العذاب، نو د عليه الصلوٰة والسلام څخه يې وغوښتل چي هغه عذاب موعود چي ته موږ په بېروې ژر دی چي نازل سي فانزل هذه الآية.

وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ۝

او وايي کفار د مکې کله دی دغه وعده د عذاب که چېري ته او ستا امتيان رشتيا واياست چي عذاب راتلونکی دی.

**پوه سه:** چي جزأ د شرط محذوفه ده يعني "فاتوا به" يعني ته او امتيان ستا دي هغه عذاب پر موږ نازل کړئ، په دې کي ددوی مطلب انکار ؤ له نزول څخه د عذاب او استهزأ وه.

قُل لَّآ أَمْلِكُ لِنَفْسِى ضَرًّا وَلَا نَفْعًا إِلَّا مَا شَآءَ ٱللَّهُ

ته ورته ووايه يا محمد ﷺ چي زه مالک نه يم د خپل ځان لپاره د دفع د يو ضرر څخه او نه مالک يم چي ځان ته دي يوه نفع راجلب کړم، مګر نه که د خدای ﷻ اراده سي چي له ما څخه دي يو ضرر دفع کړي، او يا دي نفع راورسوي فضلاً چي پر تاسي دي عذاب نازل کړم.

**درويش وايي:** چي پر مذکور ترجمه استثنا متصله ده کما لايخفى، او بعض مفسران وايي چي استثنا منقطع ده والمعنى لكن ماشاالله كائن فهو القادر للضر والنفع وهو تعالى لم يبين لذالک زماناً معيناً.

لِكُلِّ أُمَّةٍ أَجَلٌ إِذَا جَآءَ أَجَلُهُمْ فَلَا يَسْتَـْٔخِرُونَ سَاعَةً وَلَا يَسْتَقْدِمُونَ ۝

هر امت لره د عذاب يو وخت معلوم سته يعني په علم ازلي کي د خدای ﷻ، چي

راورسیږي اجل موعود د هغو، نو نه ځنډول کیږي یو لږ ګړی، او نه دمخه کیدای سي.

**پوښتنه**: ظاهراً خو داسي ښکارېږي چي "ولا يستقدمون" دي عطف وي پر "لا يستأخرون" باندي، نو تقدير د كلام داسي كيږي "اذا جاء اجلهم آه" او دا خو محاله ده عقلاً ونقلاً چي تر اجل موعود او معلوم دی دمخه معذب کړل سي؟

**ځواب**: لا يستقدمون پر جزاء عطف نه دی بلکي پر مجموع جمله شرطيه عطف دی يعني اذا جاء اجلهم، نو معنا يې داده چي تر اجل نه سي دمخه کیدای، ولي دا خو د علم ازلي الهي څخه خلاف ده.

قُلْ أَرَءَيْتُمْ إِنْ أَتَىٰكُمْ عَذَابُهُۥ بَيَٰتًا أَوْ نَهَارًا مَّاذَا يَسْتَعْجِلُ مِنْهُ ٱلْمُجْرِمُونَ ۝

يعني تاسي كفار مكه خبر راكړئ، كه تاسي ته راسي عذاب د خداى ﷻ يعني هغه عذاب چي تاسي يې ژر غوښتونكي ياست "بياتا" يعني د شپې چي تاسي په خواږه خوب بيده ياست "او نهاراً" او يا د ورځي چي تاسي په دكانداري يا تجارت او يا نور د ژوندانه په كاروبار بخت ياست.

**پوه سه**: چي جواب د "ان" شرطيه محذوف دی لظهوره ای لندمتم. تاسي به پښېمانه ياست، او څيله خطاً به په استعجال درته ښكاره سي.

**پوه سه**: چي كلمه د "ما" په "ماذا يستعجل آه" كي استفهاميه ده او استفهام لپاره د تعجب دی، او كلمه د "ذا" په معنى د الذي ده. والمعنى: څه شی دی چي ژر غواړي هغه شی كافران چي دوی به ويل چي هغه شی چي محمد ﷺ يې دعوه كوي من الرسالة والتوحيد والبعث بعد الموت، او خدای دی ستا له خوا داخبري كوي، نو موږ خو يې نه منو فامطر علينا حجارة من السماء او ائتنا بعذاب اليم مضمون الآية الكريمة في موضع آخر، وجه د تعجب داده چي د عذاب او مكروه ژر غوښتل د عاقل سړي كار نه دی، بلكې عاقل بايد همېشه له خدای ﷻ د عافيت غوښتونكی وي.

أَثُمَّ إِذَا مَا وَقَعَ ءَامَنتُم بِهِۦٓ

آيا هلته چي عذاب چي تاسي يې استعجال كوئ واقع سي، نو تاسي ايمان او تصديق يې كوئ، همزه لپاره د انكار دی، يعني هغه وخت خو ايمان فائده نه كوي، سعيد شيرازي قدس سره وايي:

تو پېش ازعقوبت دری عفوه کوب...... که سودی ندارد فغان زیر چوب

**فائده**: يوه سه! چي دا جمله معطوف پر جزا مقدره د "ان" شرطيه ده، والتقدير ان آتاكم عذابه ندمتم ثم آمنتم به اى بالعذاب.

**فائده**: دخول د حرف استفهام پر "ثم" لپاره د انكار د تاخير دی او كلمه د "ما" مزيده ده، والمعنى قل لهم ابعد ما وقع العذاب وحل بكم حقية، تاسي ايمان پر راوړئ چي دغه ايمان فائده نه لري.

آٰلۡـَٰٔنَ وَقَدۡ كُنتُم بِهِۦ تَسۡتَعۡجِلُونَ ۝

آيا اوس تاسي ايمان راوړئ پر عذاب او تاسي واست چي استعجال د عذاب مو كاوه.

**يوه سه**: چي اصل د "الأن" االآن ؤ، نو همزه ثاني يې په الف بدله كړى مع المد اللازم، نو همزه اولى استفهامي دى او الأن منصوب دی په فعل مقدر اى آمنتم دون آمنتم المذكور لان القانون النحوي ان لايعمل ماقبل الاستفهام وهو آمنتم المذكور، په وروسته كي د استفهام چي الآن دی كالعكس فافهم.

**فائده**: دا جمله استفهاميه جمله مستانفه ده له جانبه څخه د خدای ﷻ او تر قل مذكور لاندي نه ده، والتقدير قيل لهم بعد ايمانهم بالعذاب بعد الوقوع الآن امنتم به انكاراً لتاخير الايمان الى وقت الوقوع.

**درويش وايي**: چي امام مظهري رحمه الله وايي چي له عذاب سابق څخه يعني ان اتاكم عذابه آه عذاب د دنيا مراد دی، او په دې آيت اثم اذا ماوقع آه عذاب د اخيرت مراد دی والمعنى ارئيتم ان اتاكم عذاب الله في الدنيا ليلاً او نهاراً، تندموا حينئذ ثم اذا وقع عذاب الآخرة هل تؤمنون به حين لاينفعكم الايمان، ولي مو هغه وخت ايمان نه راوړی چي اوس يې نفع درته كړې وای يعني په دنيا كي لانه الايمان النافع في الآخرة.

**درويش وايي**: چي يو كتاب پر طريقه د رمز ماوليدی "لايدخل النار الا مؤمن انتهى" وروسته تر تأمل او غور په دې قول كي دا په زړه كي راغله چي مراد له قامل مذكور له مؤمن څخه مؤمن الآخرة دی فقط، الكافرون كلهم يؤمنون بالبعث بعد الموت وعذاب النار اذا عاينوها فتفكر هداک الله.

ثُمَّ قِيلَ لِلَّذِينَ ظَلَمُوا ذُوقُوا عَذَابَ الْخُلْدِ هَلْ تُجْزَوْنَ إِلَّا بِمَا كُنتُمْ تَكْسِبُونَ ﴿٥٢﴾

وروسته وويل سي وه هغه كسانو ته چي ظلم يې كړی ؤ يعني پر خپلو ځانو په شرک سره چي اوس نو ورځئ (وليس المراد ذوق الفم) عذاب د همېشه والي يعني په دوږخ كي جزا نه دركول كېږي (نو كلمه د هل استفهام انكاري ده) مگر نه په هغه شي سره چي تاسي يې كسب كاوه په دنيا كي من الكفر والمعاصي (نو ما يا موصوله دی او عائد يې محذوف دی ای تكسبونه. او يا كلمه د ما مصدريه ده ای بكسبكم) "ثم قيل" عطف دی پر قيل مقدر من قبل كما علمت.

وَيَسْتَنبِئُونَكَ أَحَقٌّ هُوَ

يعني مشركان ستا څخه خبر غواړي يعني ته راته ووايه يا محمد ﷺ آيا حق دی دغه شي چي ته موږ وربولې يعني التوحيد والنبوة والقرآن وقيام الساعة والعذاب والثواب او كه باطل ته مسخرې كوي.

**پوښتنه:** مشركان خو د مذكوره امورو څخه منكر وه، نو طلب د خبر يې د عليه الصلوٰة والسلام څخه څرنگه كاوه چي دا امور مذكوره حق دي او كه څه رنگه؟

**ځواب:** دوی دا سوال استهزاءً كاوه.

قُلْ إِي وَرَبِّي إِنَّهُ لَحَقٌّ

ته ورته ووايه هو زما دي په خدای ﷻ قسم وي.

**پوه سه:** چي كلمه د "ای" حرف ايجاب دی په معنی د نعم دی او د قسم خاصه ده كما ان هل په معنی د قد دی په استفهام كي نحو هل اتی على الانسان آه" "انه آه" ضمير راجع دی وه عذاب موعود ته او يا امور مذكوره وو ته په سوال په تاويل د كل واحد لحق ای ثابت حتماً.

**سوال:** د موجوده زمانې عرب په جواب كي د يو چا وايي "ای وا" نو كلمه د ای ذكر سوه او قسم نسته؟

**ځواب:** دا د عربو تخفيفات دي، اصل يې داسي ؤ "ای والله" نو قسم موجود دی لكن دا ددوی تخفيف دی چي "ای وا" او عرب ورته تخفيفات لري لكه دوی چي په ځای كي د "ای شيئ هذا" وايي ايش هذا، او چي يو چا ته مفت شی

ورکوي يعني يو دکان دار، نو په ځای کي د "بلا شيئ" وايي بلاش، وامثال ذالک کثيرة وهذا القليل انموذج للکثير، په فارسي کي وايي مشت نمونه خروار، او په پښتو کي وايي د مرچو له کراره يې وه اټکلوه.

**فائده:** عليه الصلوٰة والسلام ددوی په استهزائي سوال پوه سو، لکن د اسلوب حکيم له لاري يې جواب ورکړی ای ورېي فتدبر.

**وَمَآ اَنۡتُمۡ بِمُعۡجِزِيۡنَ**

تاسي خدای ﷻ نه سئ عاجزه کولای په ماشا کي من العذاب ونحوه.

**وَلَوۡ اَنَّ لِكُلِّ نَفۡسٍ ظَلَمَتۡ**

که چېري هر نفس لره چي ظلم يې کړی وي د خدای ﷻ په عبادت کي يعني شريک ورته گرځولی.

**درويش وايي:** چي دا ترجمه چي ما وکړه اولی ده تر هغه ترجمې چي امام مظهري رحمه الله کړې ده حيث قال ظلمت علی الله بالشرک که څه هم مآل زما د ترجمې او د مظهري د ترجمې يو دی لکن من حيث التعبير بينهما فرق فتامل، او يا يې ظلم کړی وي پر يو چا پر آبروی چي تهمت يې پر ويلی وي، او يا په مال کي بالغصب والسرقة وغير ذالک.

**فائده:** چونکه کلمه د "لو" فعل غواړي نو ځکه يې مفسرين داسي تفسير کوي ولو ثبت ان لکل نفس آه.

**مَا فِي الۡاَرۡضِ لَافۡتَدَتۡ بِهٖ ؕ وَاَسَرُّوا النَّدَامَةَ لَمَّا رَاَوُا الۡعَذَابَ**

هغه شيان چي په مځکه کي وي من خزائنها وما يحبه کل نفس من الذهب والفضة وغيرهما، دی به يې په فديه د عذاب الهي هغه ورکړي او ځان به په خلاص کړي لکه په دنيا کي چي سړی له يو عذابه څخه په فديه ځان له عذابه خلاصولای سي، لکن د اخرت د اور له عذابه څخه په دومره فرضي لويه فديه هم نه خلاصېږي.

**پوه سه:** چي د "واسروا الندامة آه" په تفسير کي اختلاف دی، په تفسير کواشي کي وايي ای اظهروا الندامة يعني ښکاره کړي پښېماني ولي چي د عذاب خو يوه ورځ نه دی چي دوی صبر پر وکړي. په تفسير تبيان کي وايي چي

اسرار د اضدادو څخه دی کالبيع والشرا کما قال الفقهاً رحمهم الله والی هذا ذهب ابو عبيدة رحمه الله، او بعض مفسران رحمهم الله وايي چي د "اسروا" معنی پټ والی دی، او دا پټ والی د دوی اضطراري دی، ولي دوی چي دا عذاب الهي ويني له حيرته يې هيڅ خبره پر ژبه نه راځي لکه په دې دنيا کي چي بعض اشخاص دار ته ورولي په داروي يې باره په ژبه ګونګی سي، او بعض مفسرين رحمهم الله وايي چي اسرار په معنی د ندامت دی رئيسان د کفر چي په دنيا کي خلګ يعني ضعيفان پر کفر مجبوره کول د ضعيفاً د پېغور له سببه ندامت خپل پټ ساتي.

**سوال:** نفس خو مفرد راغلی ؤ، نو ضمير د جمع په اسروا کي څرنګه ورته راجع کړی؟

**ځواب:** جمعيت د ضمير په اعتبار د کل نفس دی چي دال پر کثرت د نفوسو دی.

**سوال:** نفس خو مؤنث سماعي ؤ، نو جمع مذکر يې ولي راوړه؟

**ځواب:** نفس يې په تأويل د شخص کړی دی نو يې جمع مذکر راوړه، او يا يې تغليب د نرانو کړی دی پر ښځو. فتدبر.

وَقُضِيَ بَيْنَهُم بِالْقِسْطِ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ۝

او حکم او فيصله به وکړل سي يعني د خدای ﷻ له خوا په منځ کي ظالمانو او مظلومانو چي د لفظ د ظلم په دمخه آيت کي وفهمېدل. هذا ماقاله المظهري، او ظاهره داده چي له "هم" څخه مراد ظالمان د شرک دي او نور له اقسامو څخه د اهل ظلم په دې معنا به قضاً وکړل سي چي حق به ظاهر سي، که له حقوق څخه د خدای ﷻ او که له حقوقو څخه د عبادو، او باطل چي ظلم دی ښکاره به سي او هر يوه ته به جزاً بما يليق ورکړل سي اما الجنة واما النار "بالقسط" په عدالت سره، او پر دوی به ظلم نه کړل کېږي چي عذاب دي بې ګناه ورکړي. قاضي بيضاوي وايي هذا ليس تکريراً لان الاول قضاً بين الانبياً ومکذبيهم والثاني مجازات للمشرکين علی الشرک انتهی وتبعه المظهري رحمه الله.

أَلَا إِنَّ لِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۗ

آګاه اوسئ چي ته وله مافي السموات والارض ملکاً وخلقاً د خدای ﷻ دي.

**يوه سه:** چي امام فخر الدين الرازي رحمه الله په تفسير کبير کي وايي چي کلمه د

"الا" په قرآن کي ذکر کېږي لپاره د تنبيه د غافلانو له خوب څخه د غفلت. ولي چي عالميان مشغول دي په نظر واسباب ظاهره ؤ ته نو نسبت د شيانو وه ظاهري او مجازي مالکانو ته کوي، نو دوی وايي "الدار لزيد، والغلام لعمرو، والسلطنة للخليفة والتصرف للوزير وامثال ذالک" نو دوی په دې سبب په خوب کي د غفلت دي له مالک حقيقي څخه چي خدای ﷻ دی. نو ددوی د غفلت د لېرې کېدلو څخه خدای پاک وايي "لله مافي السموات والارض"

**درويش وايي:** چي په روح البيان او روح المعاني کي وايي چي کلمه د "ما" چي لپاره د غير ذوی العقول ده په سبب د تغليب د غير ذوی العقول پر ذوی العقول راوړل سوه. او بعض محققين د نحاتو وايي چي کلمه د "من" خاصه په ذوی العقول پوري ده او کلمه د "ما" عامه ده فلاحاجة الى التغليب ويؤيد قولهم قوله تعالى والسمآ ومابناها آه" لان المراد بکلمة ما هو الله تعالى وهو من ذوی العلم. والمراد بذوي العقول هو ذوی العلم فلا يرد مايتوهم والتحقيق في شرح الرضي على الکافية وشرح الجامي على الکافية.

**فائده:** تقديم د خبر چي "لله" دی لپاره د افادې د حصر دی باجماع المفسرين.

**پوه سه:** چي په دې آيت کي اشاره ودې ته هم ده چي خدای ﷻ قادر پر اثابت او تعذيب في الدنيا والآخرة دی.

أَلَآ إِنَّ وَعْدَ ٱللَّهِ حَقٌّ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ۝

آگاه اوسه چي وعده د خدای ﷻ په ثواب سره د مؤمنانو او په تعذيب د کافرانو حق او ثابت خبره ده د خلاف ځای پکښې نسته. لکن ډېر خلگ علم نه لري پر دغه باندي، ولي چي ددوی عقلونه کوتاه دي او يوازي د دنيا ژوند مني او بس. ولنعم ماقيل:

مانده در تنگنای این مجلس ......... غير دنيا نديده ديده احس
چشم دل کوکه پرده‌ها بدرد ......... جانب ملک اخيرت نگردد
مرغ او درقفس زبون باشد ......... چه شناسد که باغ چون باشد

هُوَ يُحْيٖ وَيُمِيْتُ وَاِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ۝

يوازي او يوازي خداى ﷻ دى چي ژوند ورکوي وه ذى روح حيواناتو ته د مور په رحم يا په هگۍ کي، او بيا عند حلول الاجل وژني دواړه په دې دنيا کي او خاص و خداى ﷻ ته رجوع ستاسي کول کېږي، يعني في الاخرة والبعث والنشور په دې اشاره ودې ته ده رجوع وخداى ﷻ ته ضروري ده ولو کان اضطرارياً. مثنوي:

بس رجال از نقل عالم شادمان ........ واز بقايش شادمان اين کودکان

وقت کي د نزع وايي

پيش ترا پيش ترا جان من ........ پيک در حضرت سلطان من

**درويش وايي**: چي علماً وايې چي اجل الموت چي راسي علم کـه څه هم ډېر وي وسرې ته فائده نه کوي لکه د آدم ﷺ چي د ده په حق کي قرآن ناطق دى ﴿وعلم آدم الاسما کلها آه﴾ او نه خلة فائده ورته کوي لکه ابراهيم ﷺ ته ﴿واتخذ الله ابراهيم خليلا﴾ او نه قربت فائده ورته کوي لکه وموسٰى ﷺ ته ﴿وقربناه نجيا آه﴾ او نه فراخه سلطنت فائده ورته کوي لکه داود ﷺ او سليمان ﷺ او ذوالقرنين ته کما حکى الله تعالى وسعة ملک هولاً في مواضع شتى من القرآن. ولا المحبة کما لم تنفع لمحمد ﷺ ﴿قل ان کنتم تحبون الله فاتبعوني يحببکم الله﴾ ولا المال الکثير لکه وقارون ته چي فائده ونه کړه کما حکى الله تعالى منه في القرآن. او نه ډېر جنود لکه د نمرود. او نه جمال فائق کما لم ينفع ليوسف ﷺ الى غير ذلک.

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَتْكُمْ مَّوْعِظَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ

اى خلکو په تحقيق راغلى تاسي ته نصيحت د جانبه څخه د رب ستاسي.

**پوه سه**: چي مراد د دې موعظت څخه قرآن کريم دى پر لسان د محمد ﷺ ولي چي په قرآن دعوت ورکوي هر مرغوب فعل ته او منع کوي د هر بد کار څخه په مرغوب سره امر کوي او د بد کار څخه نهي کوي، نو چونکه خداى ﷻ حکيم دى عليم جواد دى نو حتما مامور به د خداى حسن دى او منهي عنه د خداى ﷻ قبيح دى والحسن والقبيح لايدرکان بالعقل الصرف في الافعال فيجب على الناس ان يرجعوا الى القرآن. نو هغه فعل چي قرآن حسن بللى وي على مراتب الحسن من

الافتراض والوجوب وغیرهما هغه کار وکړي او چې به یې ګنړلی وي علی مراتب القبح من التحریم والکراهة د هغه پرهېز وکړي ولنعم ما نسب الی الامام الاعظم ابي حنیفة رحمه الله "جمیع العلم فی القرآن لکن. تقاصرت عنه افهام الرجال.

**پوښتنه:** ډېر ښه کارونه سته چې په قرآن کې یې ذکر نسته بلکه په احادیث نبویه ﷺ سره ثابت وي؟

**جواب:** هغه هم راجع وقرآن ته دي ﴿ وما آتاکم الرسول فخذوه وما نهاکم عنه فانتهوا ﴾ یعني هغه کارونه چې راتګ وکړي وتاسي ته رسول ﷺ تاسي هغه واخلئ یعني تاسي عمل په وکړئ ، والمراد به الاوامر او هغه کار چې رسول تاسي څني نهي کړي یعني من المعاصي تاسي ځانونه څندي وساتی. ﴿ وما ینطق عن الهوٰی ان هو الا وحي یوحٰی ﴾.

وَشِفَآءٌ لِّمَا فِى الصُّدُورِ ۙ

یعني دوا جوړونکی د د هغو مرضو چې په سینو یعني زړو کې سته یعني الشرک والکفر والعقائد الفاسدة او تعلق د زړه په ماسوی د خدای من الامور الدنیویة الکاسدة الفانیة.

**فائده:** اهل تجربه علما وایې چې په قرآن عزیز کې په شپږو ایاتو کې د شفا الامراض الظاهرة والباطنه لفظ سته. نو که څوک هغه نوشته کړي او د هغو اوبو چې دا آیتونه په کښې وي څو ورځې وچښي خدای جلت قدرته به یې هغه مرض دفعه کړي وقد جربها الفقیر ﴿ وننزل من القرآن ماهو شفا للناس ﴾ ﴿ شفا لما في الصدور ﴾ ﴿ ویشفي صدور قوم مؤمنین ﴾ ﴿ واذا مرضت فهو یشفین ﴾ ﴿ قل هو للذین آمنوا هدی وشفا ﴾ ﴿ شفا ورحمة للمؤمنین ﴾.

وَهُدًى وَرَحْمَةٌ لِّلْمُؤْمِنِينَ

او دا قرآن لارښوونه ده او رحمة د خدای دی د مؤمنانو د پاره ولې چې د قرآن په هدایت او برکت خلګ د ضلال او کفر څخه خلاص سوه، او په اسلام مشرفه سول.

**درویش وایي:** چې په دې آیت کې که موعظة ده او که شفا ده. او که هدي او رحمت دی ټول مصدرونه دي نو صفت د قرآن مبالغة په وسو.

قُلْ بِفَضْلِ اللّٰهِ وَبِرَحْمَتِهٖ فَبِذٰلِكَ فَلْيَفْرَحُوْا

ته ووايه يا محمد ﷺ په جواب کي منت او احسان د خداى چي په دې آيت کي ذکر سو، چي دا ټوله موعظة" شفا" هدى" رحمة" دا ټوله موږ ته په فضل د خداى او د رحمت د خداى را کړه سوه بدون استحقاق منا عليه سبحانه " فبذالک آه" او په دغه فضل او رحمة او نزول القرآن سره خوشاله اوسئ.

**بوه سه:** چي مظهري رحمه الله وايي تقديره فبذالک ليفرحوا فليفرحوا والتكرير للتاكيد انتهى، وروسته يې ويلي دي" فحذف احد الفعلين (يعني ليفرحوا) لدلالة المذكور عليه (يعني فليفرحوا عليه).

**درويش وايي:** چي صواب هغه ترجمه چي روح المعاني او روح البيان کړې ده دوى داسي وايي قل يا محمد ﷺ للناس ليفرحوا بفضل الله وبرحمته، نو حرف جر متعلق په ليفرحوا پوري دى، او دوى وايي چي فبذالک فليفرحوا، تاکيد او تقرير د اول ليفرحوا دى ثم حذف الاول لدلالة الثاني عليه او دوى واي چي فا اولى يعني په فبذالک جزائية ده او شرط يې مقدر دى اى ان يفرحوا بشئ فبذالک اى الفضل والرحمة من عند الله او فا ثانية يعني فليفرحوا د پاره د سببيت ده واصل التقدير هکذا ان يفرحوا بشئ فبذالک ليفرحوا لا بشئ آخر من الامور الدنيوية القليلة الفانية.

**درويش وايي:** چي د دې اعراب او محذوف فعل ډېر گران دى بايد په ماقلنا کي سړى ډېر غور وکړي.

هُوَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ ۝

**بوه سه:** چي ضمير د هو راجع دى وذالک يعني دا فضل او رحمت د خداى ﷻ او نزول د قرآن خير دى تر هغو شيانو چي خلگ يې جمع کوي من حطام الدنيا لانها فانية وما اعطاكم الله باقية.

قُلْ اَرَءَيْتُمْ مَّآ اَنْزَلَ اللّٰهُ لَكُمْ مِّنْ رِّزْقٍ فَجَعَلْتُمْ مِّنْهُ حَرَامًا وَّحَلٰلًا ؕ

ووايه يا محمد ﷺ ومشرکانو ته د مکې چي تاسي خبر راکړئ د هغه شي چي خداى نازل کړى ستاسي لپاره يو رزق چي کښت دى يا مواشي مېږي اوښان وغيره دي، پس تاسي وگرځاوه بعض د هغه رزق حرام اى حکمتم بانه حرام

"وحلالاً" او بعض مو حلال وګرځاه ای حکمتم بانه حلال حیث قالوا هذه انعام وحرث حجر وقالوا ما في بطون هذه الانعام خالصة لذکورنا ومحرمة على ازواجنا والمعنى رزق خدای درکړی دی او تحریم او تحلیل يې تاسي کوئ.

**سوال:** زرع او ضرع خو د اسمان څخه نه دي نازل سوي؟

**جواب:** سبب دنما د زرع او ضرع چي اوبه دي د اسمانه خدای ﷻ نازله وي نو نازلې ده د ابو چي سبب د زرع او ضرع دی چي هغه ستاسي رزق دی تعبیر يې مجازا په انزال د رزق وکړی تعبیرا عن المسبب بالسبب.

قُلْ آٰللّٰهُ اَذِنَ لَكُمْ اَمْ عَلَى اللّٰهِ تَفْتَرُوْنَ۝

ته دوی ته ووایه چي آیا په دې تحلیل او تحریم کي خدای تاسي ته اجازه درکړي ده" اصل أاللّٰه وو یو همزه په الف واړوه، نو مد يې لازم دی، او که پر خدای ﷻ قصدا درواغ وایاست" یعني نسبت د دې تحلیل او تحریم په درواغو و خدای ته کوئ.

**فائده:** په تفسیر کواشي کي وایې چي دا آیت لوی زاجر دی د فتوی ورکولو څخه ببله علم او په حکم او فتوی کي باید سړی د ډېره احتیاط څخه کار واخلي تا چي پر خدای باندي درواغ ونه وایي" د حضرت علي کرم الله وجهه څخه روایت دی (من افتى الناس بغير علم لعنه السماٰ والارض).

وَمَا ظَنُّ الَّذِيْنَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ

**یوه سه:** چي ما" استفهامیه مرفوع محلا مبتدأ د. وظن الذین خبره.

**سوال:** افترأ خو قصداً ودرواغو ته وایې نو د کذب لفظ ته څه ضرورت و؟

**جواب:** لپاره د ډېر قبح د فعل د دوی" ای څه شي دی ګمان د هغو کسانو چي پر خدای ﷻ په قصد درواغ په تحلیل او تحریم کي د شیانو "یوم القیامة" یعني په ورځ د قیامت.

**یوه سه:** چي یوم لفظ منصوب دی په ظن سره" یعني ایا د دوی ګمان دی چي مونږ ته به جزأ او عقاب رانه کړه سي، لا بل الجزأ کائن لا محالة.

**یوه سه:** چي د جزأ نوع بیان نه کړه د پاره د غایت تهدید.

إِنَّ اللَّهَ لَذُو فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَشْكُرُونَ ۝

په تحقيق خداى ﷻ د كوي فضل څښتن دى پر خلكو چي اول عقلونه وركړه او بيا يې رسولان ورته را واستول او پر هغو يې كتابونه نازل كړه، لكن ډېر خلگ د خداى د دې لوى نعمت شكر نه وايې ولي كه دوى شكر ويلاى نو پر توحيد د خداى چي عقل او نقل دواړه دليل دى ايمان راوړي او پر خداى بې درواغ نه ويلاى.

وَمَا تَكُونُ فِي شَأْنٍ وَمَا تَتْلُوا مِنْهُ مِنْ قُرْآنٍ

ته نه يې يا محمد، كلمة د "ما" نافيه ده په يو شان كي.

**پوه سه:** چي شان مصدر دى په معنى د مفعول دى كما في البيضاوي جمع يې شئون ده كما في روح البيان وتفسير الرازي، لكن په نېز د محققينو د شان استعمال په لوى حال او امر كي كېږي كما في المظهري، كما في قوله تعالى كل يوم هو في شان هره ورځ خداى ﷻ يې لوى حال او تدبير كي د خپل مخلوقاتو دى، درويش.

**پوه سه:** چي ضمير د "منه" راجع دى وه "شان" ته، ولي چي اعظم د شئون د عليه الصلوٰة والسلام تلاوت د قرآن ؤ كذا في روح المعاني وروح البيان والمظهري والتفسير الكبير، والمعنى ته نه تلاوت كوې پر خلكو له شان څخه ستا "من" بيان دى د "شان".

**درويش وايي:** چي روح المعاني دا احتمال هم راوړى دى چي ضمير د "منه" دي راجع و خداى ﷻ ته وي نو كلمه د "من" ابتدائيه ده چي داخل پر منشي گرځي.

وَلَا تَعْمَلُونَ مِنْ عَمَلٍ إِلَّا كُنَّا عَلَيْكُمْ شُهُودًا إِذْ تُفِيضُونَ فِيهِ

او تاسي اې خلگو نه كوئ يو عمل كه د خير وي او كه د شر من الكفر وغيره.

**پوه سه:** چي دا تعميم بعد التخصيص دى، ولي چي اول دا آيت مخصوص په عليه الصلوٰة والسلام پوري ؤ او دا عام دى.

**پوه سه:** "الا كنا به آه" استثنا مفرغ ده من اعم الاحوال او متعلق ده په ماقبل پوري اى ماتكون يا محمد في حال من الاحوال وماتتلوا منه في حال من الاحوال ولا تعملون ايها الناس في حال من الاحوال مگر نه چي يو موږ (يعني خداى

پاک وایي) پر هغه باندې شاهدان علم درلودونکي او رقباً يعني د هغه ساتنه کوو چې په اردو (دیکھبال) ورته وایي او په پښتو ځارونکي ورته وایي.

**يوه سه:** چې د نحو په قانون کلمه د "اذ" مضارع ماضي ګرځوي او چې مصدر دی د تفيضون دخول ته په یو عمل کې وایي وقيل الافاضة الدخول بکثرة.

## وَمَا يَعْزُبُ عَنْ رَّبِّكَ مِنْ مِّثْقَالِ ذَرَّةٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ

**يوه سه:** چې کسائي له قرأ سبعه وو څخه "يعزب" په کسره د زا وایي، او نور قرأ يې په پېښ وايي او د دواړو معنی يوه ده يعني لا يغيب.

**يوه سه:** چې مثقال مصدر ميمي دی په معنی د ثقل دی او کلمه د من زائده ده، لپاره د استغراق نفي ده کما تقرر في کتب النحو، او "ذرة" هغه تر ټولو کوچني مېږي ته وایي او یا د ګرځ کوچني اجزاؤ ته وایي.

**ترجمه:** نه غائبېږي له علم شامل څخه د خدای ﷻ ستا یا محمد ﷺ يو شی چې ثقل يې د کوچني مېږي وي يعني په اعمالو کې د بندګانو من خير او شر، په فراخه ځمکه کې ظاهرها وباطنها او نه په سبع سموات کې.

**يوه سه:** چې ځمکه يې تر اسمان دمخه کړه لان کلامه تعالى ههنا مع اهل الارض من شراره وخياره.

## وَلَا أَصْغَرَ مِنْ ذَٰلِكَ وَلَا أَكْبَرَ إِلَّا فِي كِتَابٍ مُّبِينٍ ﴿٦١﴾

او نه کوچني سته تر ذره او نه لوی سته تر ذره مګر نه چې په کتاب مبين يعني لوح محفوظ کې مثبت دي، نو هر شی چې په لوح محفوظ کې مثبت وي، نو څرنګه به يو شی له اعمالو څخه د بندګانو غائب وي، کريمه: وعنده ام الکتاب"

**يوه سه:** چې روح المعاني او مظهري وايي چې دا کلام مستقل دی مقرر د ماقبل دی.

**فائده:** کلمه د "لا" لپاره د نفي جنس ده او "اصغرو اکبر" يې اسم دی او "في کتاب" يې خبر دی.

**درويش وايي:** چې په اعراب کې ددې آيت روح المعاني ډير طويل بحث کړی دی لا ينفع به الا المتبحر في علم النحو، نو ځکه فقير صرف نظر کړی.

**سوال:** "ذرة" خو مؤنث دی. نو څرنګه په "ذالک" سره اشاره ورته وسوه؟

**ځواب:** "ذرة" مؤنث لفظي دی ویجوز الی المؤنث الکذائي الاشارة بالمذکر وکذا ارجاع ضمیر المذکر الیه کما تقرر في النحو.

أَلَآ إِنَّ أَوْلِيَآءَ ٱللَّهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ۝

آګاه وه اوسئ چي په تحقیق سره دوستان د خدای ﷻ نه پر دوی خوف سته یعني نه په ورځ د قیامت کي چي خلګ بېرېږي او نه هم دوی غمجن کېږي

**پوه سه:** چي خوف د مستقبل له خوا څخه وي او حزن د تېر سوي کار له کبله وي. لکه د یو سړي چي زوی مثلاً ناجوړی وي بېرېږي چي مړ نه سي، دا خوف دی، او یا یې زوی وفات سي سړی غمجن سي دا حزن دی، وامثال ذالک. د عمر النباني ﷺ روایت دی چي ما یو راهب په مقبره کي ولیدی چي په یوه لاس کي یې سپیني شیګي وې او په بل لاس کي یې توري سنګرېزې وې. ما ورته چي اې راهبه ته دلته په هدیره کي څه کوې؟ ده راته وویل چي زړه مي پر غلطه لار روان سي، نو مقبرې ته راسم او د مړو له حالته عبرت واخلم او ورک زړه پیدا کړم، ما ورته وویل چي د سپین او توري شیګي څه په کوې؟ ده راته وویل چي یو نېک عمل ظاهري یا باطني وکړم نو سپینه شګه په تورو کي واچوم او که مي بد عمل وکړی توره شګه په سپینو شګو کي واچوم مابنام چي کور ته ځم سپیني او توري شګي سره حساب کړم که سپیني پر ډېري وې نو خوشاله سم چي څه نن ورځ مي حسنات تر سیئاتو ډېر دي. نو روژه ماته کړم او د شپې ورد چي لرم هغه وایم او که توري شیګي ډېري وي، نو پوه سم چي نن دي سیئات ډېر دي، او نه په هغه شپه نه ډوډۍ خورم او نه اوبه څیښم. وهذا حالي والسلام علیک.

اندرین راه میتراش ومیخراش ......... تا دم اخیر دم فارغ مباش

ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَكَانُوا۟ يَتَّقُونَ ۝

هغه کسان دي اولیا الله چي ایمان یې پر خدای ﷻ راوړی وي یعني په توحید سره او په اتصاف په ټولو صفاتو د جلال او جمال او قلباً او لساناً. لا کالمنافق یؤمن باللسان فقط، او وي دوی چي له خدای ﷻ څخه بېرېږي یعني اوامر د

خدای ﷻ تېوله پر ځای کوي او له منهیاتو څخه یکلخته ځان ساتي، په حدیث شریف کې راغلي دي چې روایت یې ابو داؤد کړی دی له عمر بن الخطاب رضي الله عنه څخه، قال قال رسول الله ﷺ ان من عباد الله لا ناساً ماهم بانبیاً ولاشهداً یغبطهم الانبیاً والشهداً یوم القیامة بمکانهم من الله (په تحقیق له بندګانو څخه د خدای ﷻ یعنې د مؤمنانو څخه داسې خلګ شته چې نه انبیاً دي او نه شهیدان دي ومع هذا کست په کبړي چې غبطه یې بولي چې تمنی د حال مغبوط ده نه حسد.
**سوال:** د انبیاً علیهم السلام خو تر ټولو لوړه رتبه ده او د شهداً وروسته تر انبیاً کما نطق به القرآن في موضع آخر، نو ددوی څرنګه کست کبړي په حال د غیر ددوی؟
**ځواب:** د کست معنی داده چې سره د مرتبې د نبوت او د شهادت داغه رتبه هم موږ ته حاصله وای فافهم. په ورځ د قیامت په سبب د قرب ددوی د خدای ﷻ سره: "قالوا یا رسول الله تخبرنا من هم، قال هم قوم تحابون بروح الله علی غیر ارحام بینهم ولا اموال یتعاطونها (ته موږ ته خبر راکړه چې څوک دي دغه کسان؟ علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چې دوی یو قوم دی چې یو له بل سره محبت کوي په محبت د خدای ﷻ ببله دې چې قرابت نسبي سره لري او نه د مالو بیع او شراً سره لري) فوالله ان وجوههم لنور وهم علی نور لا یخافون حین یخافون الناس ولا یحزنون اذا حزن الناس وقرأ الا ان الاولیاً الله لا خوف علیهم ولا هم یحزنون (قسم په خدای ﷻ دی چې مخان ددوی نوراني دي او دوی پر نور دي، دوی نه بېرېږي هغه وخت چې خلګ بېرېږي او دوی به غمجن نه وي چې خلګ لوی غم کوي بیا علیه الصلوٰة والسلام دا آیت تلاوت کړی) یو محقق وایي:

هرکس که ترا شناخت جان چه کند ....... فرزند وعیال وخانه مان چه کند
دیوانه کنی هردو جهانش بخشی ....... دیوانه تو هر دو جهان را چه کند

په تفسیر کواشي کې وایي چې عدم خوف او حزن د اولیاً الله په قیامت کې دی والا فهم اشد حزناً واشد خوفاً في الدنیا ومن اجل ذالک حصل لهم عدم الخوف والحزن في الآخرة فافهم.
**درویش وایي:** چې نبوت کسبي شی نه دی بلکې موهبي مرتبه ده. او ولایت

کښې دی يتعلق بامتثال الاوامر الالیهة والاجتناب عن المنهيات مع توفيق الباري ﷻ، او د نبي په خپل نبوت خبر تيا لازمه ده، او د ولي الله په خپل ولايت خبر تيا لازمه نه ده بلکې على العموم والاغلب عدم علمهم بولايتهم، ولهذا يخافون في الدنيا ويحزنون،،، بيت:

بر فلک بر تر بود اسرار او ......... شيئاً لله شيئاً لله کار او

علماً رحمهم الله وايي چي د خدای ﷻ تر پيژندلو د ولي الله پيژندل گران دی، ولي چي خدای پاک له صفاتو او اخلاقو څخه د مخلوق لکه رنگ اکل او شرب تمکن في المکان وعدم الولد والوالد وغير ذالک مبرأ او پاک دی، او په ولي الله کي دا تولـه شيان سته لکه نور خلگ، خو بيا هم ملاقات د ولي الله په بعضو احاديثو کي راغلي دي، لـه سعد بن جبير ﷺ څخـه روايت دی چي لـه عليـه الصلوٰة والسلام څخه چا پوښتنه وکړه "من اولياً الله؟ قال ﷺ هم الذين يذکر الله برؤيتهم" يعني چي خدای پاک د سړي پياديږي ددوی په ليدلو سره، يعني ددوی په اخلاقو او تواضع او سکون قلبي سره د سړي خدای ﷻ ورپياديږي.

سعدي شيرازي قدس سره وايي:

اسيرش نخواهد رهايی زبند ........شکارش نخواهد خلاص ازکمند
دلارام دربر دلا رام جوی ....... لب از تشنگی خشک بر طرف جوی

**فائده:** علامه د اولياً دانه ده لکه د عوامو چي خيال دی چي خارق العادة شی به ددوی پر لاس ښکاره کيږي، يا به پر غيبو شيانو علم لري، ولي چي دا دوه شيان په ډيرو مجمع عليهم اولياً کي نسته، او گاهي پـه غير کي د ولي بلکې د ساحر پر لاس ښکاره کيږي استدراجاً، او دا چي په بعض اولياً کي ښکاره کيږي دا دليل ددې نه دی چي دا نو علامه د ولايت ده، او سره ددې چي خدای پاک وه عليه الصلوٰة والسلام ته وايي قل انما انا بشر مثلکم يوحى الي" يعني زه ستاسي غوندي بشر يم، لکن بعض د مغيباتو خبر چي تاسي ته درکوم هغه ماته وحي وکړل سي د خدای ﷻ له خوا، کريمه: قل لو کنت اعلم الغيب لاستکثرت من الخير وما مسني السوء کريمه: وقل انما الآيات عندالله بلکې صوفيه کرام

وايي چي كرامت لكه د نورو حيض دی پټ والی يې اولی دی. بعض اولياً كرام چي ظهور د خوارقو ددوی پر لاس دهر كيدی اخير پښيمانه سو. ولي سبب د وسوسې د شيطان او سړی په ذميمه د كبر او خودبيني مبتلا كوي.

**فائده:** "الذين آمنوا" محلاً منصوب دی على المدح. او يا صفت دی د اولياً يا محلاً مرفوع دی خبر د مبتدأ محذوفي دی ای هم الذين كذا في المظهري.

لَهُمُ الْبُشْرٰى فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِى الْاٰخِرَةِ

ددوی لپاره زيری دی په حيوة حاضر كي او په اخرت كي.

**پوه سه:** چي ددې دنيا زيری د اولياً الله لپاره په زمانه كي د عليه الصلوٰة والسلام د ژوند. چي عشره مبشره وو ته يې عموماً وكړی چي ترمذي د عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه او ابن ماجه د سعيد بن زيد څخه رايت كړی دی حيث قال ﷺ (١) ابوبكر في الجنة (٢) عمر في الجنة (٣) عثمان في الجنة (۴) وعلي في الجنة (۵) وطلحة في الجنة (٦) وزبير في الجنة (٧) وعبد الرحمن بن عوف في الجنة (٨) وسعد بن ابي وقاص في الجنة (٩) وسعيد بن زيد في الجنة (١٠) وابو عبيده بن الجراح في الجنة. دغه لس كسه صحابه كرام رضي الله عنهم وه چي پر يوه ځای عليه الصلوٰة والسلام د جنت زيری وركړی. او خصوصي او انفرادي زيری وركړل سوی هغه صحابه كرام رضي الله عنهم دادي. ابو داؤد وايي چي عليه الصلوٰة والسلام وويل. اما انت يا ابابكر اول من يدخل الجنة من امتي. او ترمذي له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت كړی دی چي عليه الصلوٰة والسلام وويل انا اول من تنشق منه الارض ثم ابوبكر ثم عمر.

**درويش وايي:** چي دا حديث د عليه الصلوٰة والسلام معجزه باهره ده. ولي د عليه الصلوٰة والسلام د دفن ځای او بيا د ابوبكر رضي الله عنه ځای او بيا د عمر رضي الله عنه د دفن ځای و عليه الصلوٰة والسلام ته بيله وحي څرنگه معلوم سوه. او په حجره كي د عائشې رضي الله عنها هم اول عليه الصلوٰة والسلام دفن كړل سو. او بيا ابوبكر او عمر رضي الله عنهما دفن كړل سوه. او د يوه قبر ځای پكښي پاته دی چي په هغه كي به عيسى عليه السلام دفن كيږي كما جاً في الحديث المتفق عليه چي زه او عيسى عليه السلام له

يوه قبره يعني تقريباً رابورته كړو، وبين ابي بكر وعمر ، او ترمذي له طلحة بن عبيد الله څخه روايت کړی دی لكل نبي رفيق في الجنة ورفيقي في الجنة عثمان، وفي البخاري ومسلم عن سعد بن ابي وقاص قال عليه الصلوٰة والسلام لعلي انت مني بمنزلة هارون من موسى الا انه لانبي بعدي احمد او ترمذي له زيد بن ارقم څخه روايت کړی دی من كنت مولاه فعلي مولاه، او د مسور بن مخرمة روايت دی چي بخاري او مسلم دواړو راوړی دی چي عليه الصلوٰة والسلام وويل چي فاطمة بضعة مني (يوه ټوټه ده زما) فمن اغضبها اغضبني، وعن ابي سعيد قال عليه الصلوٰة والسلام خير نسائها (اى الامم المتقدمة) مريم بنت عمران وخير نسائها خديجة بن خويلد (اى نساً هذه الامة) وقال فضل عائشة على النساً كفضل الثريد (ښوروا) على الطعام، وقال ان عبدالله يعني ابن عمر رجل صالح (په دوه حديثه متفق عليه کي راغلي دي) وروى الترمذي عن مسور بن مخرمة الحسن والحسين سيدا شباب اهل الجنة (ولي چي دوی دوه په ځوانی کي شهيدان سوي دي) او د عبدالله بن سلام په باره کي عليه الصلوٰة والسلام ويلي دي انه من اهل الجنة متفق عليه، وعن ابي سعيد الخدري رواه البخاري ومسلم. لاتسبوا اصحابي (تاسي زما وه اصحابو ته ښکنځل مه کوئ يعني لا اجتماعاً ولا انفراداً) فلو ان احدكم انفق مثل احد ذهباً مابلغ مد احدهم ولا نصيفه.

**درويش وايي:** چي بې بختان شيعه ګان وه ابوبکر وعمر او عائشي ته سخت پوچ ښکنځل کوي په خپلو محافلو کي، وقال عليه الصلوٰة والسلام الانصار لايحبهم الا مؤمن ولا يبغضهم الا منافق فمن احبهم احبه الله ومن ابغضهم بغضه الله. وورد ايضاً نعم الرجل السعيد بن الحضير نعم الرجل ثابت بن قيس نعم الرجل معاذ بن جبل ونعم الرجل معاذ بن عمر بن الجموع .

**درويش وايي:** چي د نورو صحابه کرامو په باب کي مفصل حديثونه موجود دي او ټولو صحابه کرامو ته خدای پاک داسي زيری کړی دی "وكلاً وعدالله الحسنى" وقال رسول الله اصحابي كالنجوم بايهم اقتديتم اهتديتم

په دې کې شک نسته چې اصحاب ﷺ د رسول الله ﷺ تولـه علی تفاوت درجاتهم اولیاءٌ الله وه، نو ددې آیت مصداق یقیناً دي الا ان اولیاءٌ الله لاخوف علیهم ولاهم یحزنون، او دا آیت مبارک، نور مصداقونه هم لري الی یوم القیامة لکن ورځ په ورځ لږیږي، ولهذا قال علیه الصلوٰة والسلام خیر امتي قرني، ثم الذین یلونهم ثم الذین یلونهم، عن عمران بن حصین بخاري، مسلم.

**فائده:** د دنیا د زیرو په باره کې نور هم په قرآن عظیم الشان کې او په احادیثو کې زیرې موجود دي د متقینو دپاره او د اولیاءٌ الله دپاره او فتح او نصر او غنیمتونه هم د دنیا د زیرو څخه دي لکن دا معدودة زیری خو په زمانه کې د حیوة بابرکاة د علیه الصلوة والسلام او وروسته تر وفات د علیه الصلوة والسلام دنیایي زیری په حدیث شریف چې روایت یې بخاري د ابو هریرة ﷺ څخه کړی دی قال رسول الله ﷺ لم یبق من النبوة الا المبشرات قال الرؤیا الصالحة بغوي وایې چې عبادة ﷺ بن الصامت وایې چې ما د علیه الصلوة والسلام څخه پوښتنه وکړه د دې آیت د معنی (لهم البشری فی الحیوة الدنیا) علیه الصلوة والسلام وویل هی الرؤیا الصالحة یری ها المرءُ (چې سړی په خپله ویني) او ترٰی له (یا د ده دپاره ولیدل سي یعني بل څوک یې د دپاره ویني.

**فائده:** مراد د رؤیا صالحې څخه رؤیا د صالحانو کسانو او د تقوی دارو کسانو لا الرؤیا للعوام والفساق.

**سوال:** خوب خو یقین نه فائده کوي نو څه رنګه بشری بولل کیږي؟

**جواب:** یقین که نه فائده کوي غلبة الظن خو فائده کوي وهذا کاف فی البشارة وفی الحدیث الذي رواه عن ابي سعید الخدري ﷺ وروی عنه البخاري الرؤیا الصالحة جزءٌ من ستة واربعین جزءٌ من النبوة.

**درویش وایي:** چې ددې وجه داده چې علیه الصلوة والسلام قبل النبوة شپږ میاشتې داسي صادق خوبونه لیدل کفلق الصبح او (۲۳) کاله د ده دنوبت دوره وه نو (۲۳) پر مابین هر کال نمې کې (۴۶) څندې جوړیږي.

**فائده:** د خوب ترجمه کول ډېره ګرانه ده ځکه ویل سوي دي چې خوب مه وایه مګر

ته وحبيب يعني دوست ته او لبيب ته يعني هوښيار سړي ته چي په تعبير رؤيا کي مهارت لري د خوبو د ترجماني "کتاب د ابن سيرين رحمه الله چي رئيس المعتبرين للرؤيا دی" او بل د عبد الغني نابلسي کتاب او بل د ابن شاهين کتاب دی چي دا درې سره مجموع په يوه جلد کي چهاپ سوي دي هر څوک ترجمه د خوبو نه سي کولای" گفته اند که انجير خوردن نه کار هر مرغيست" ونيز گفته اند نه هر که سر بتراشد قلندري داند" د مشت نمونه خوار په ډول به زه يو څو مثاله درته ووايم" يو سړي خوب لېدلی وو چي ما پر قرآن شريف بولې وکړې چي را وپښن سو ډېر وار خطا وو علامه ابن سيرين رحمه الله ته ورغلی او دا خوب يې ورته ووايه هغه ورته وويل چي ډېر بهترين خوب دي لېدلی دی تا ته به خدای زوی درکړي زوی به دي حافظ القرآن سي.

**دروېش وايي:** چي که يې دا خوب ما وارو مولايانو ته ويلی وای ترجمه به مو ډېره غلطه ورته کړې وای، او دغه رنگه يو سړي خوب لېدلی وو چي ما ته په خوب کي يو څا سره زر را کړه نو خوب په ظاهره ښه خوب دی يعني چي دولت مند به سي لکن معبرين وايي چي په مقدار د قلت او کثرت د سرو زرو به ده ته غموه پېښن سي وعلی هذا فقس نو څکه خوب دي سړی وهر چا ته نه وايي.

او بعض مفسرين رحمهم الله وايي چي بشری د دنيا ثنا احسن ده د خلگو د خوا، بغوي په خپل سند د عبد الله بن رضي الله عنه څخه روايت کړی دی قال قال ابو ذر رضي الله عنه يا رسول الله الرجل يعمل لنفسه ويحمده الناس (سړی د خپل ځان لپاره عبادات کوي او خلگ يې صفت کوي) قال ﷺ تلک عاجل بشری المؤمن (دا هم د خلگو د ددنيا د زېری د مؤمن يوه حصه ده) او زهري رحمه الله او قتاده رحمه الله وايي چي زېری د دنيا چي ملکي په وخت کي د زکندن ورته راسي زېری پر وکي د طرف څخه د خدای جل جلاله قال الله تعالی تتنزل عليهم الملائکة الا تخافوا ولا تحزنوا وابشروا بالجنة کذا قال عطاً عن ابن عباس رضي الله عنهما.

**دروېش وايي:** چي دا ټولي خبري چي تاسي د زېري د دنيا په باب کي واورېدې، ټوله صحيح دي او منافات نه سره لري" نو د څا دپاره د اولياؤ څخه د خدای جل جلاله يو بشارت د څا دپاره بل بشارت علی تفاوت درجات اولياً الله الکرام کما لايخفی.

**فائده:** روح المعاني په تفسير كي د بشارت الآخرة داسي وايي "فتلقي الملائكة اياهم مسلمين مبشرين بالفوز والكرامة ومايرون من بياض وجوههم (چي علامه د جنتي ده) او عمل نامې په راسته لاس وركول وغير ذلك من البشارت بانهم من اهل الجنة ورضوان الله تعالى عنهم انتهى بزيادة" او روح البيان هم ورته معنى د بشارة الاخرة كړې ده او تفسير قرطبي رحمه الله هم دغه غوره كړې ده او امام رازي رحمه الله هم د دې معنى پخلى كړى دى، او امام مظهري رحمه الله وايي" وفى الاخرة يعني وقت خروج نفس المؤمن يعرج بها الى الله ويبشر برضوان الله عند الخروج من القبر يوم القيامة.

**درويش وايي:** چي وروسته مظهري يو داسي حديث راوړى دى چي د ټولو مؤمنانو مؤمناتو د خوشحالۍ وړ دى كه څه هم ايت قرآني خو په اولياء الله كي وو او مظهري هم د اولياء الله تر نفس مؤمن خاصه ترجمه كړې وه، په روايت د ابن عمر رضي الله عنه وايي قال رسول الله ﷺ ليس على اهل لآاله الا الله، وحشة فى الموت ولا فى القبور ولا فى النشور كاني انظر اليهم حين الصيحة (يعني د اسرافيل د وهم وار پو كل د صور) ينفضون رؤوسهم من التراب، يقولون الحمد لله الذي اذهب عنا الحزن.

**درويش وايي:** چي د خصوص او د عموم په باره كي د هر غور كول پكار دى والله اعلم بالصواب.

لَا تَبْدِيلَ لِكَلِمَٰتِ ٱللَّهِ ۚ ذَٰلِكَ هُوَ ٱلْفَوْزُ ٱلْعَظِيمُ ﴿٦٤﴾

بدلېده نسته د خبرو د خداى نو مراد د دې څخه وعدې د خداى دي د خپلو دوستانو سره او متقينو سره او د اولياء الله سره او دغه بشارة په دنيا او آخرت كي لو يه كاميابي او برى دى.

**فائده:** مؤمن لره اولاً په كار ده چي د اولياء الله پر لار روان سي او د هغو كمالات ځان ته حاصل كړي، او كه يې د هغه توان نه درلودى اقلاً دوني خو دې وكړي چي د اولياء الله محبت دې په زړه كي ساتي لانه قد ورد ان المرء مع من احب" اميد ستة چي د محبت د سببه به يې خداى جل جلاله د دوى په ډله كي وباځه وي، وهابي هم مگر څه" سلفي هم مگر څه" پنج پيرى هم مگر څه" او نوري ډلې



Scanned by CamScanner

چي اولياً الله نه مني او بد بد نومان پر ايږدي عصمنا الله من خرافاتهم في حق الائمة المجتهدين رحمهم الله واولياً الله الكاملين قدس الله اسرارهم.

## وَلَا يَحْزُنْكَ قَوْلُهُمْ

تا دي اى محمد ﷺ غمناكه نه كړي خبري د مشركانو چي ستا د توحيد لاره غلطه بولي او ستا تكذيب كوي او علاوه تاته تهديد د قتل دركوي.

**يوه سه:** چي لا تحزنک په فتحه د يا او په ضمه د زا چي د بابه د مجرد سي، او په ضمه د يا او په كسره د زا چي د بابه د افعال سي دواړه روا دي او معنٰى د دواړو يوه ده او دواړه قرأات متواتر دي.

## اِنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ

جمله مستأ نفه ده په معنٰى كي تعليل ده قبل ده" والمعنٰى لا تحزن، غم مكوه ولا تبال بهم په دوى باک مه كوه او د دوى د پېشرو پروا مه كوه ولي چي غلبه خداى لره ده او خداى خپل رسول ساتي او تاته به غلبه دركړي پر دوى كما في بدر وفتح مكه وغيرهما من المغازي، خداى اورېدونكى دى د اقوالو د دوى ستا په شان كي او پوره علم لري د دوى پر نيتو" فيجازيهم عليها وقد اوفى الله تعالى بوعده فى الدنيا وسيعذبهم فى الاخرة.

## اَلَآ اِنَّ لِلّٰهِ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِى الْاَرْضِ

آگاه اوسه چي خداى لره دي يعني خلقا وملكا وعبيدا. هغه ذوي العقول چي په اسمانو كي دي من الملائكة او هغه ذوى العقول چي په مځكه كي دي من الانس والجن دليل د ذوى العقول لفظ د من دى چي اغلب استعمال يي په ذوى العقول كي دى او څوک چي وايي مراد تولـه ممكنات دي كه ذوى العقول او كه غير او استعمال د من تغليبا دى لذوي العقول مناسبة د دې ځايه سره نه ده.

**يوه سه:** چي تخصيص د ذوى العقول چي خداى ﷻ وكړى دپاره د دې چي د غير ذوى العقول وذكر ته ضرورت نسته، ولي چي ذوى العقول سره د شراقت د دوى چي عبيد او بندگان د خداى سره فما عداهم من الموجودات عبيد لـه تعالى بالطريق الاولى.

**پوه سه**: چي دا جمله سره د تاکيد ه په حرف تنبيه او په ان سره تاکيد د ماسبق من اختصاص العزة به تعالی چي په دې سره به تسلي د عليه الصلوة والسلام وسي، او په خبرو د مشرکينو به باک نه کوي، او دغه رنګه وروستني جملې ته تمهيد دی.

**پوه سه**: چي د تمهيد لفظ ما متابعة د روح المعاني ووايه او مظهري رحمه الله چي وايي هذه الجملة کالدليل لما بعده خلاف الظاهر خبره ده کما لايخفى.

وَمَا يَتَّبِعُ الَّذِينَ يَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ شُرَكَاءَ

**پوه سه**: چي کلمه د ما نافيه ده او لفظ د شرکا مفعول د يتبع دی او مفعول د يدعون محذوف دی لظهوره والتقدير نه دي هغه شيان يعني بتان چي کفار مکه يې خدايان بولي شريکان په حقيقت کي د خدای که يې څه هم دوی شرکا بولي لان شرکة الله في الربوبية محال عقلا ونقلا ﴿قل لوکان فيهما ای الارض والسما الهة من دون الله لفسدتا﴾.

**درويش وايي**: چي وهذا برهان التمانع وتفصيله مشهور وفي کتب العقائد مذکور.

إِنْ يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ ﴿٦٦﴾

کلمه د ان نافيه ده دوی متابعت نه کوي هولاً الاصنام الجمادات شرکا الله في العبادة مګر د ګمان يعني په تقليد د آبا واجدادو، نه دي دوی مګر درواغ وايي فيما ينسبونه اليه تعالى من الشرکا عرب وايي خرص يخرض خرصا ای کذب من باب نصر، والخراص الکذاب، په وروسته آيت کي خدای تنبيه کوي چي خدای جل جلاله متفرد دي په قدرت کامله سره او په نعمة شاملة سره لجميع الناس چي کفار مکه وو ته دلالت او ښوونه وکړي پر واحدانيت د ده په استحقاق سره د عبادت فقال.

هُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ اللَّيْلَ لِتَسْكُنُوا فِيهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا

خدای هغه واحد لاشريک ذات دی چي تاسي ته يې ګرځولې ده شپه د دې دپاره چي تاسي آرام په کښي وکړئ او استراحت په کښي وکړئ د سر ګردانيو څخه د ورځي او د ستړيا د ورځي او ګرځولې يې ده ورځ روښانه او سبب د لېدلو د شيانو تا چي تاسي مزدوري، تجارت، دکانداري وغيرها پکښي وکړئ.

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَسْمَعُونَ ۝٦٧

په تحقيق په خلق كي د دغو لويو لويو شيانو موافق د حكمت سره او موجب د فوائدو دلائل دي د هغه قوم لپاره چي اوري كلام په غور سره، ، سعدي:

برگ درختان سبز درنظر هوشيار ...... هر ورقي دفتريست معرفت كردگار

قَالُوا اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا ۗ سُبْحَانَهُ ۖ

او وايي مشركان د مكې چي خداى ځان لره اولاد لري چي دوى وايي ملكي د خداى لوڼي دي، او خداى ﷻ د رئيسانو د جنياتو نجوني په نكاح كړي دي او ملائكه ځني پيدا سوي دي "سبحٰنه" پاک دى خداى ﷻ له ولاد څخه مطلقاً كه نر اوي او كه ښځي او "سبحنه" د تعجب لپاره هم دى يعني تاسي د دوى و خبرو ته تعجب وكړئ چي څرنگه په امر مستحيل سره حكم كوي.

هُوَ الْغَنِيُّ ۖ

خداى ﷻ احتياج نه لري په هيڅ شي له اشياؤ څخه هيڅ چا ته او ماسوٰى دده تول ممكنات دي په وجود كي، په بقا كي او په تربيه كي بلكې په هر صفت كي خداى ﷻ ته محتاجه دي، نو څه مناسبت دى تر منځ د واجب الوجود او د ممكن ولابد من المناسبة بين الوالد والمولود، وايضاً ولد زېږول يا د شهوت له غلبې څخه پيدا كېږي، يا د ولد سبب دادى چي ضعيف پلار ځان په قوي كوي او يا فقير د زوى په گټه ځان غني كوي، او يا بې كسه وي او يا مالداره وي ځان ته وارث پيدا كوي وروسته تر مرگ وكل ذالک محال على الله الواجب الوجود عقلاً، او بيا دې خرگرئ ته وگورئ چي د مشركانو له لوڼو څخه داسي بد راتله چي بعضو به عند الولادة ژوندۍ په خاورو كي ښخولې بلكې نر عيال ددوى خوښ ؤ او خداى ﷻ ته لوڼي واى، كريمه: الكم الذكر وله الانثى تلک اذا قسمة ضيزى".

**فائده:** د ولاد په موضوع كي يهود او نصارى هم د مشركانو سره همنوا دي يهودان عزير ابن الله بولي، او نصارى عيسى ابن الله بولي.

**فائده:** ملائكه بنات الله د تولو مشركانو عقيده نه وه بلكې د نبو مدلج په نامه

د يوې قبيلې عقيده وه، كما في روح البيان، لكن روح المعاني وايي چې د قريشو ټولو دغه عقيده وه.

لَهُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ

خدای ﷻ لره دي هغه شيان چې په اسمانو کي دي او هغه شيان چې په ځمکه کي دي يعني د خدای ﷻ مخلوق، او مملوک او عبيد دي، نو ځرنګه د اسمانو يو شی چې ملکي دي په قول د قريشو ولد کېدای سي، ولې چې خالق ځرنګه د مخلوق پلار کېدای سي؟.

اِنْ عِنْدَكُمْ مِّنْ سُلْطٰنٍ بِهٰذَا

کلمه د "ان" نافيه ده، او کلمه د "من" زائده ده لپاره د تاکيد د نفي ده، او "سلطان" محلاً مرفوع مبتدأ ده او "عندکم" يې خبر دی او "بهذا" متعلق په سلطان پوري دی، والمعنى نسته ستاسې سره يو دليل قاطع پر دغه قول باطل کذاب چې ملکي د خدای ﷻ لوڼي دي.

اَتَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ۝

**پوهنه**: چې په "اتقولون آه" کي همزه لپاره د انکار دی او لپاره د توبيخ دی پر جهل ددوی او تنبيه پر دې چې په عقائدو کي برهان قاطع په کار دی او په عقائدو کي تقليد نه دی روا.

**پوښتنه**: عوام خو ټوله تقليدي ايمان لري؟

**ځواب**: په ايمان کي پر وجود د خالق العالم ايمان برهاني دی ( د صحرائي عامي بحث څخه چا پوښتنه وکړه چې ته څه دليل لرې پر وجود د خالق العالم. صحرائي ورته وويل البعرة تدل على البعير والاقدام على المسير فكيف لا يدل هذا العالم الكبير على العالم الخبير، والى هذا اشار السعدي الشيرازي:

برگ درختان درنظر هوشيار ....... هر ورقي دفتريست معرفت کردگار

البته ايمان تفصيلي به نه لري، وفي تحفة النصائح:

گر انبياً هم نامدی نی شروع بودی درجهان
واجب شدی برمؤمنان ايمان بخالق مقتدر

**مسئله**: په فروعو د دين تقليد روا دی اجماعاً.

قُلْ إِنَّ الَّذِينَ يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ لَا يُفْلِحُونَ ﴿٦٩﴾

ته ورته ووايه اې محمد ﷺ يعني كفارو ته د مكې چې په تحقيق هغه كسان چې قصداً درواغ وايي پر خدای ﷻ لكه خدای پاک ته شريک ويل. يا خدای پاک ته ولد ويل، الكذب د تاكيد د "يفترون" لپاره دی فلاح او خلاصون نه سي پيدا كولای له عذاب څخه د خدای ﷻ بالنار ولا يفوزون بالجنة دار الابرار.

مَتَاعٌ فِي الدُّنْيَا ثُمَّ إِلَيْنَا مَرْجِعُهُمْ ثُمَّ نُذِيقُهُمُ الْعَذَابَ الشَّدِيدَ بِمَا كَانُوا يَكْفُرُونَ ﴿٧٠﴾

خبر د محذوفي مبتدأ دی يعني دا افترأ ددوی سبب تمتع دی په دنيا كي چي دوی په دې افترأ سره ساتي خپل رياست في الكفر كي وروسته ددوی رجوع موږ ته ده يعني في يوم القيامة (مرجع مصدر ميمي دی) بيا به موږ په دوی وڅكو يعني ورسوو عذاب سخت چي عذاب د جهنم دی په سبب د كولو ددوی كفر.

**پوه سه**: چي "كان" چي پر مضارع داخل سي د استمرار فائده كوي، او كلمه د ما مصدريه ده فافهم، ولنعم ماقيل:

مردمان غافلند از عقبی............ همه گويی بخفته گان مانند
ضرر وغفلتی كه ميورزند ............ چون بميرند آنگهی دانند

وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ نُوحٍ

او ته يا محمد ﷺ تلاوت وكړه كفارو ته د مكې اخبار د نوح سره "قومه" تا چي ستا قوم ددې خبر په اورېدلو سره به عبرت واخلي له كفر او عناد څخه، په بستان العارفين كي وايي چي اصلي نوم د حضرت نوح ؑ شاكر وو، نوح يې لقب دی لكثرة نوحه وبكائه من خوف الله تعالى.

**فائده**: نوح ؑ اول نبي دی چي بعض احكام شرعي قبلي يې منسوخ كړل مثلاً نكاح د خور دده تر زماني پوري رواه وه، ده منسوخه وګرځول وبقی حرمة نكاح الاخت الى يوم القيامة في سائر الاديان، بعض مفسران رحمهم الله وايي چي نوح ؑ پر څلور سوه اتيا (۴۸۰) كاله عمر باندي نبي سو.

**پوه سه**: چي بغوي او اجهوري وايي چي د نوح ؑ قوم له اولاد څخه د قابيل

بن ادم وه، لکن مظهري رحمه الله په ډېرو سختو الفاظو سره دا خبره رد کړې ده حيث قال وهذا لا يتصور، ولې چې نوح علیه السلام له اولاد څخه د شيث علیه السلام لا من ولد قابيل فاضافة القوم اليه يعني في قوله عزوجل.

إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ يَٰقَوْمِ إِن كَانَ كَبُرَ عَلَيْكُم مَّقَامِى وَتَذْكِيرِى بِـَٔايَٰتِ ٱللَّهِ فَعَلَى ٱللَّهِ تَوَكَّلْتُ

"اذ قال لقومه" يدل على كون القوم من اولاد شيث علیه السلام، اي قومه يعني زما که پر تاسي سخته پرېوځي اوسېده زما (نو مقام مصدر میمي دی) يعني ستاسي په مابين مدت مديده او زما نصيحت کول وه تاسي ته په آياتو د خدای جل جلاله او يا په دلائلو د خدای جل جلاله يعني نو قصد د ضرر ماته لرئ، نو خاص پر خدای جل جلاله توکل دی (نو تقديم د جار ومجرور لپاره د حصر دی).

فَأَجْمِعُوٓاْ أَمْرَكُمْ وَشُرَكَآءَكُمْ

**درویش وايي:** چې په محاوره کې د عربو وايي اجمع فلان امره چې ده به يو کار ته ټينګ قصد وکړی اوسره جمع کړي شرکا ستاسي (نو واو په معنى د مع دی او "شرکائکم" مفعول معه دی) او بعض قرا "شرکائکم" په رفع سره وايي، عطف يې پر ضمير د "اجمعوا" بولي.

**سوال:** عطف پر ضمير متصل مرفوع خو تاکيد په ضمير منفصل غواړي؟

**ځواب:** که فصل په منځ کې د معطوف او معطوف عليه وي بيا تاکيد نه غواړي کما تقرر في علم النحو والفصل هـ امركم دی، نو پر دې قرائت يې معنى داده چې تاسي او شرکا ستاسي دې زما د قتل عزم وکړي او يا د يو مکروه د رسېدلو وه ماته يعني زه باک نه په کوم لاني على الله توکلت کمامر.

ثُمَّ لَا يَكُنْ أَمْرُكُمْ عَلَيْكُمْ غُمَّةً ثُمَّ ٱقْضُوٓاْ إِلَىَّ وَلَا تُنظِرُونِ ﴿٧١﴾

او بيا دې نه وي هغه شی چې تاسي يې ماته اراده لرئ من اهلاکي وغير ذالک عليکم يعني پر تاسي پټ يعني هغه کار پټ مه ساتئ بلکې ظاهر او مکشوف يې ماته واياست، ولې له چا څخه چې اراده د مکروه وده ته رسول پټ ساتي ددې

لپاره چي دی نباید وه نه تښتي، او زه خو تښتم نه. بیا ورسوي هغه کار چي تاسي یې اراده لرئ ماته او هیڅ مهلت ماته مه راکوئ.

**پوه سه:** چي دا خبري د نوح ﷺ وه قوم ته اخبار دی د خدای ﷻ د نوح ﷺ له حال څخه چي دی دومره معتمد د خدای ﷻ پر نصرت ؤ او له ضرر او کید څخه د قوم او ددوی د خدایانو څخه نه بیرېدی، ولي چي دده یقین ؤ چي قوم او ددوی خدایان نه مالکان د نفع او نه د ضرر دي الا ماشاءُ الله.

فَإِنْ تَوَلَّيْتُمْ فَمَا سَأَلْتُكُمْ مِنْ أَجْرٍ

که تاسي اعراض او روی گرداني وکړئ زما له قول او نصیحت څخه، یعني وروسته تر دې چي زما د قول او نصیحت صدق تاسي ته په معجزاتو ثابت سو.

**پوه سه:** چي جزاءُ د شرط محذوفه ده "ای یعذبکم الله" او دلیل د جزاءُ په ځای کي د جزاءُ راوړی دی وهو فما سئلتکم من اجر، یعني که ما ستاسي څخه پر تبلیغ د امر الله مزدوري او تنخواه غوښتای، نو ستاسي انکار حق په جانب ؤ چي ستا مزدوري پر موږ درنه ده، نو چي اجر هم په منځ کي نسته نو ستاسي انکار او نه منل زما تذکیر بلا مانع دی نو تاسي ته به خدای ﷻ ددې سببه عذاب درکوي.

**درویش وایي:** چي واعظ او امام المسجد دي پر مقتدیانو اجر معلوم نه شرطوي، ولي دا اجر که څه هم په فتوی د متأخرینو روا دی، لکن پر مقتدیانو تاثیر نه کوي، ولي د مزدور خبره پر سړي تاثیر نه لري.

إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَى اللَّهِ ۖ وَأُمِرْتُ أَنْ أَكُونَ مِنَ الْمُسْلِمِينَ ﴿٧٢﴾

نه ده زما مزدوري یعني ثواب د تبلیغ مگر پر خدای ﷻ ده، نو خدای پاک ماته ثواب د تبلیغ راکوي که تاسي ایمان راوړئ او که نه، وما علینا الا البلاغ، او زه امر سوی یم یعني د خدای ﷻ له خوا چي زه به فرمان برداره د حکم د خدای یم په ایمان کي او په اعمالو کي او په دعوت کي د خلگو وه خدای ﷻ ته هغه وظیفه ما حتی الوسع وه پای ته ورسول. شیخ سعدي قدس سره د اخذ الاجر پر تبلیغ وایي:

زیان میکند مرد تفسیر دان ........ که علم وادب میفروشد بنان
بدین ای فرومایه دنیا محز ........ چو خربا بخیل عیسی محز

فَكَذَّبُوهُ فَنَجَّيْنَٰهُ وَمَن مَّعَهُۥ فِى ٱلْفُلْكِ

یعني دوی پر هغه تکذیب د نوح ﷺ ثابت وه. وروسته چې حق ورته ښکاره سو بمعجزات نوح ﷺ تکبراً وعناداً.

**درویش وايي:** چې ما تفسیر په "ثبات" پر تکذیب وکړی ولي چې نفس تکذیب خو د ابتدأ د دعوې د نوح للنبوة دوی کړې وه، نو موږ نجات ورکړی و نوح ته او هغه کسانو ته چې دده سره پر ایمان وه چې په روایت د مفسرینو اتیا نفره وه ثلوېښت نر او ثلوېښت ښځي "في الفلك" په کښتی کي چې تر طوفان دمخه په امر د خدای ﷻ او په ښوونه د جبرئیل ده جوړه کړې وه.

وَجَعَلْنَٰهُمْ خَلَٰٓئِفَ وَأَغْرَقْنَا ٱلَّذِينَ كَذَّبُوا۟ بِـَٔايَٰتِنَا ۖ فَٱنظُرْ كَيْفَ كَانَ عَٰقِبَةُ ٱلْمُنذَرِينَ ﴿٧٣﴾

موږ وګرځول اهل د کښتی خلیفه ګان د ځمکي د مغرقینو په عوض کي او غرق کړل موږ هغه کسان چې تکذیب د آیاتو د خدای ﷻ یې کاوه، نو ته وګوره یعني فکر ووهه اې محمد ﷺ او یا اې صاحب النظر والفکر چې څرنګه سو آخر کار د هغه کسانو چې دوی وېرول سول له عذاب څخه د خدای ﷻ پر لسان د نوح ﷺ.

**پوه سه:** چې په دې قصه کي ېېرول د کفارو د قریشو دي چې دوی تکذیب د رسول کریم ﷺ کاوه یعني تاسي ته هم ورته یو عذاب درکړل سي په دنیا کي.

**فائده:** په بستان العارفین کي وايي چې څه وخت چې اتیا کسه نر او ښځي له کښتی څخه پر ځمکه پیاده سول په مرور د زمان هغه بېګانه خلګ ټوله مړه سول اولاد د نوح ﷺ سام، حام او یافث پاته سوه کما قال الله تعالی "وجعلنا ذریته" (ای نوح) هم الباقین" نو دا ټوله انسانان چې تر غرق وروسته پر ځمکه وه یا دي، نو دا ټوله اولادونه د دغو دروزامنو د نوح ﷺ دي. نو له دې کبله نوح ته آدم ثاني ویل کېږي والله اعلم.

د نجات نوح په مناسبت دا بیت د سعدي رحمه الله د هر په زړه پوري دی:

محال است چون دوست دارد ترا ......... که در دست دشمن گذارد ترا

# ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْ بَعْدِهِ رُسُلًا إِلَىٰ قَوْمِهِمْ

وروسته بیا مونږ راواستول تر نوح ﷺ وروسته، رسولان وه خپلو قومو ته یعني هر رسول وخپل قوم ته لکه هود ﷺ وه عاد قوم ته. او صالح ﷺ وثمودیانو ته، او ابراهیم ﷺ د بابل قوم ته چي مشر او شاه یې نمرود ؤ، او شعیب ﷺ و اهل مدین ته وغیر ذالک ممن قصهم الله اولم یقص.

# فَجَاءُوهُمْ بِالْبَيِّنَاتِ فَمَا كَانُوا لِيُؤْمِنُوا بِمَا كَذَّبُوا بِهِ مِنْ قَبْلُ

نو راغله هر رسول وخپل قوم مخصوص ته په معجزاتو ظاهراتو سره، نو نه وه دغه اقوام د رسولانو په هیڅ ډول چي ایمان دي راوړي، پر هغه دین چي تکذیب کړی ؤ په هغه دین سره قوم نوح ﷺ دمخه تر راتګ ددوی د رسولانو ودوی ته.

**سوال:** قوم د نوح خو تکذیب د نوح کړی ؤ په راوړي دین کي، نورو رسولانو وخپلو اقوامو ته خو جلا جلا ادیان راوړي، نو وجه د اشتراک د نورو قومو د نورو رسولانو د قوم سره څه شی ده؟

**ځواب:** ټوله رسولان په اولین حالت کي خدای ﷻ د شرک په مقابل کي را استولي دي، نو قوم نوح او نور اقوام په شرک کي متساوي الاقدام دي، بلکې په اصولو کي د دین ای المعتقدات ټوله ادیان او رسولان سره همنوا او شریکان دي، نو انکار د هر قوم د خپل نبي له دین څخه انکار عن جمیع الادیان فافهم.

# كَذَٰلِكَ نَطْبَعُ عَلَىٰ قُلُوبِ الْمُعْتَدِينَ

دغسي لکه پر قوم نوح پر زړونو او د اقوامو د نورو رسولانو پر زړونو چي مهر د ضلال په سبب د کبر او عناد د رسولانو خدای ﷻ لګولی ؤ دغه رنګه خدای پاک مهر لګولی پر زړونو د ظالمانو او تجاوز کاران او د حسد کارانو ستا د امت یا محمد ﷺ وفیه تسلیة للنبي ﷺ ولي چي د عالمه سره غم نه غم دی کما قیل.

# ثُمَّ بَعَثْنَا مِنْ بَعْدِهِمْ مُوسَىٰ وَهَارُونَ إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَئِهِ

وروسته مونږ راواستاوه یعني په رسالت سره، وروسته تر ذکر سوو رسولانو موسی یعني ابن عمران او هارون چي د موسی مشر ورور ؤ، وه فرعون ته او اشراف د قوم دده، دا فرعون ولید بن مصعب ؤ علی المشهور.

**پوه سه**: چي ملأ چي يې ذکر کړه لپاره د تمهيد وه ذکر ته د استکبارهم "بآياتنا" سره د معجزاتو متفرقه وو د فرعون تر غرق پورې، (۱) اى العصى (۲) واليد البيضا (۳) والطوفان، اى المطر الكثير حتى دخل المأ في بيوتهم الى حلوق الجالسين (۴) والجراد، ملخ چي ددوى کښتونه او د درختو بلگونه يې تولله وخوړل (۵) والقمل، او شپوږي چي ددوى په غنمو کي به پيدا سوې او د غنمو مغز به يې تولله وخوړل خالي خوروکي به يې پاته سوه (٦) والضفادع، او چونگوښې چي ددوى په اوبو او په تولو خوراکي شيانو کي به ناستي وې، او د اوبو دمخه به چونگوښه په خوله ورننوتل، که څه به هم د ابو د لوښي سر پټ واى (۷) والدم، ويني چي اوبه او نور خوراکي شيان بې سرې ويني وې (۸) والطمس، چي پر مالو يې هلاک خداى ﷻ مسلط کړى (۹) وفلق البحر، اخيره معجزه يې دا وه چي درياب ودوى ته تيوته سو او کوڅې کوڅې سو ليدخلوا فيه فيغرقوا اجمعين.

بِاٰيٰتِنَا فَاسْتَكْبَرُوْا وَكَانُوْا قَوْمًا مُّجْرِمِيْنَ ۝

نو فرعون او اشرافو د قوم دده کبر وکړى له متابعت څخه د موسى او هارون عليهما السلام او وه دوى يو قوم مجرم يعني جرم او کبر ددوى پېشه وه، ځکه يې د رسالت د خداى ﷻ تهاون او سپکاوى وکړى او هغه يې رد کړى.

فَلَمَّا جَآءَهُمُ الْحَقُّ مِنْ عِنْدِنَا قَالُوْٓا اِنَّ هٰذَا لَسِحْرٌ مُّبِيْنٌ ۝

نو چي ودوى ته راغلى دين حق زموږ له خوا څخه چي د خداى ﷻ وجود او توحيد ؤ او ددوى دا حق وزړو ته تېر هم سو له ليدلو د معجزاتو باهراتو کثيراتو، نو دوى وويل په باره کي د معجزاتو چي دا سحر دى ښکاره.

قَالَ مُوْسٰٓى اَتَقُوْلُوْنَ لِلْحَقِّ لَمَّا جَآءَكُمْ ؕ اَسِحْرٌ هٰذَا ؕ وَلَا يُفْلِحُ السّٰحِرُوْنَ ۝

دا جمله استيناف بياني دى، جواب دى د ماقيل چي نو موسى عليه السلام به څه ورته وويل چي دوى پر معجزاتو د سحر نوم کښېښو "اتقولون آه" د استفهام لپاره د تعجب او انکار دى، آيا تاسي وايابست وه حق ته وامر ثابت محقق ته من عند الله چي تاسي ته راغلى "اسحر هذا" آيا سحر دى دا "ولا يفلح الساحرون" يعني برى

او کامیابي نشي پیدا کولای ساحران، دا جمله له تمامه څخه د قول د موسی ده للدلالة علی انه لیس بسحر.

**درویش وایي:** چي مقوله د قول محذوفه ده (ای انه سحر) او حال دادی چي سحر خو صرف تمویه د حقیقت نه لري، نو مقوله د قول یې حذف کړه لدلالة ماقبله علیه.

**پوه سه:** چي دا جمله مستأنفه ده لپاره د انکار د ماقالوا او مقوله د قول نه ده، ولي ددې د استفهام خو ضرورت نسته، ولي خو دوی اول وویل ان هذا السحر مبین.

قَالُوٓا أَجِئۡتَنَا لِتَلۡفِتَنَا عَمَّا وَجَدۡنَا عَلَيۡهِ ءَابَآءَنَا وَتَكُونَ لَكُمَا ٱلۡكِبۡرِيَآءُ فِي ٱلۡأَرۡضِ وَمَا نَحۡنُ لَكُمَا بِمُؤۡمِنِينَ ﴿٧٨﴾

وویل فرعون او قوم دده وه موسی علیه السلام ته چي ته راغلې موږ ته چي ته موږ ته واړوې له هغه دین څخه یعني الشرک چي موږ پیدا کړي دي پر هغه دین پلرونه زموږ، او تا او هارون لره پر موږ سلطنت او حکومت سي په مځکه کي د مصر، که موږ چېري ستاسي د دوو تصدیق وکړو په هغه خبره کي چي تاسي راتګ په کړی دی یعني توحید د خدای جل جلاله او چي موږ د خدای جل جلاله له جانبه څخه رسولان یو.

**پوه سه:** چي جمله د "قالوا" استیناف بیاني ده د هغه پوښتنې په ځواب کي چي موسی علیه السلام چي هغه دمخه خبري ودوی ته وکړې، نو دوی په جواب کي څه ورته وویل، یعني دوی قالوا الخ ورته ووایه.

وَقَالَ فِرۡعَوۡنُ ٱئۡتُونِي بِكُلِّ سَٰحِرٍ عَلِيمٍ ﴿٧٩﴾

(وفي قرائة بکل سحار په صیغه د مبالغې) فرعون وویل وقوم ته چي تاسي راولی ماته هر سحر ګر چي په سجر کي ښه معلومات لري یعني تا چي مقابله د سحر د موسیٰ خپل په ساحرانو سره وکړو.

**فائده مهمة:** د خدای عادت په جاري دی چي هر قوم ته چي رسول را استوي داسي یې را استوي چي په هغه قوم کي چي هر شی د پر رواج او هغه قوم په کښې مهارت درلودی د هغه د جنس څخه فی الظاهر معجزه ورکوي مثلا په قوم کي د فرعون سحر او جادو د پر مروج یعني چي یو شی بې مخالف د خپل حقیقة څخه

د خلګو په نظر کې ښکاره کړي. نو موسی ﷺ معجزه في الظاهر د هغه د قسم ورکړه لکه لکړه به مار وګرځیدله او ید بیضا چې اولې دوې معجزې د موسی وې او د عیسی ﷺ په عصر کې طبابت او ډاکټري ډېره پر مخ تللې وه چې د قسم قسم ناجوړېو علاجونه به کول. نو عیسی ﷺ ته معجزه احیا الموتی ابرا الاکمه" او د فس د علاج معجزې ورکړې" نو موسی ﷺ په پیش رفته کار کې د قوم فرعون چې سحر وو پر ساحرانو د فرعون غالب وګرځاوه کما سیاتي.
او عیسی ﷺ په طبابت کې دوی ویار په کاوه غالب وګرځاوه چې احیا الموتی او ابرا الاکمه والابرص وه چې د عیسی د قوم د طبابت د کاره څخه خارج کار وو.
او د علیه الصلوة والسلام په قوم عربو کې د فصاحت او بلاغت لویه چرچه وه کما یدل علیه هغه اوه قصیدې چې نام ورو شاعرانو په خپل نوبت سره د مکې مکرمې پر دیوال ځړولې وې د مقابلې دپاره چې هغه اووه (۷) مقالې او قصیدې اوس په شکل د کتاب چې معلقات سبع یې نوم دی موجود او بعض نام داره علما یې درسولای سي. نه هر که سر بتراشد قلندري داند" گفته اند انجیر خوردن نه کار هر مرغیست" نو علیه الصلوة والسلام ته خدای ﷻ قرآن معجز لبلغا عدنان وفصحا قحطان ورکړه. او اعلان یې وکړی ﴿ان کنتم في ریب مما نزلنا علی عبدنا فاتو بسورة من مثله آه﴾ او دوی ټوله ورته عاجزه سوه.

**درویش وایي:** چې دا څو خبرې په طور د جمل معترضه په مابین کې ما راوړې اوس بېرته د تفسیر پر لور.

﴿فَلَمَّا جَاءَ السَّحَرَةُ قَالَ لَهُم مُّوسَىٰ أَلْقُوا مَا أَنتُم مُّلْقُونَ﴾

هغه وخت چې د فرعون جمع کړه سوي ساحران "چې تعداد یې اویا زره ته بالغ وو" راغله وویل موسی ودوی ته چې ښکاره کړئ هغه څه چې تاسې ښکاره کوئ په میدان کې د مقابلې وخلګو ته.

**سوال:** موسی ﷺ ته خو معلومه وه چې دوی سحر کوي او سحر خو حرام دی، نو څه رنګه موسی ﷺ دوی ته امر د القو ورکړی؟

**جواب:** ساحرانو د فرعون د موسی سره مشوره وکړه چې ته د مخه خپل کار

ښکاره کوي که یې موږ ښکاره کړو نو موسیٰ علیه السلام ورته وویل القوا. نو دا امر د تقدیم دی امر د سحر کولو نه دی.

## فَلَمَّآ أَلْقَوْا قَالَ مُوسَىٰ مَا جِئْتُم بِهِ ٱلسِّحْرُ ۖ

چې سحر ګرانو خپلې لکړې او رسۍ پر میدان وغورځولې او ټولې د خلګو په سترګو کې ماران ورغله ﴿واسترهبوهم وجاوا بسحر عظیم﴾ او خلګ یې وېرول او راتګ یې وکړی په یوی لوی سحر سره، موسیٰ علیه السلام ورته وویل چې دغه تاسې چې راتګ په وکړی دغه سحر دی لا ما سماه فرعون سحرا من المعجزات من عند الله.

## إِنَّ ٱللَّهَ سَيُبْطِلُهُۥٓ ۖ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُصْلِحُ عَمَلَ ٱلْمُفْسِدِينَ ﴿٨١﴾

خدای جل جلاله ژر دی چې دا ستاسې سحر به باطل او محوه کړي چنانچه موسیٰ علیه السلام چې لکړه وغورځول هغه، مار سول او د دوی لکړې او رسۍ او د جادو ماران یې ټول وخوړل، خدای جل جلاله نه اصلاح کوي یعنې نه کامیابه کوي عمل د مفسدانو چې سحر ګران دي.

## وَيُحِقُّ ٱللَّهُ ٱلْحَقَّ بِكَلِمَٰتِهِۦ وَلَوْ كَرِهَ ٱلْمُجْرِمُونَ ﴿٨٢﴾

او خدای حق ګرځوي یعنې ثابت ګرځوي او قوة ورکوي و حق ته په خپلو ایاتو سره یعنې په معجزاتو سره که څه هم مجرمان یې مکروه بولي" حافظ شیرازي رحمه الله وایې.

**اسم اعظم بکند کار خود ای دل خوش باش ..... که بتلبیس وحیل دیو سلیمان نه شود**

**حکایت**" تاریخ وایې چې شیخ جنید عجمي څلوېښت کاله کوشش وکړی چې سلطنت لاسته وروليي لکن نه سو کامیاب وروسته په اولاد کې د ده بادشاهان پیدا سوه چې ټول رافضي المذهب وه لکه "شاه اسماعیل" "شاه عباس" "شاه طهماس" لکن مللوک عثمانیه وو دا فتنه د رافضیت یک لخته ختم کړه فحق القول" لکل فرعون موسیٰ" وذالک في کل عصر الی ان ینزل عیسیٰ ویقتل الدجال. تاریخ اسلامي خبر کوي، وایې حضرت امیر المؤمنین عمر رضی الله عنه ته خبر ورسېدی چې عراقیانو پر دوی حاکم چې د عمر رضی الله عنه له خوا پر دوی مقرر سوی ؤ په ډبرو سنګسار کړی، نو عمر رضی الله عنه په ډېر غضب د مدینې څخه حرکت وکړی، په لار کې په یوه

لمانځه کي سهوه وربښه، سوله د غم او فکر څخه تر لمانځه وروسته يې داسې ښرا وکړه چي عراقيانو پر ما لمونځ ګډ وډ کړی ته د دوی کاروته ورګډ وډ کړې او غلام ثقفي پر دوی حاکم کړې چي د جاهليت پر طريقه حکم راني پر وکړي بان لا يقبل من محسنهم ولا يتجاوز عن مسيئهم، وذالک قبل ان يولد الحجاج بن يوسف اظلم الناس هغه ؤخدای وروسته تر ډېري زماني د ښرا د عمر ﷺ حجاج بن يوسف پر مسلط کړی وظلم الحجاج مشهور وفي کتب التواريخ مسطور.

**درويش وايي:** چي د غلام سقفي خبره چي عمر ﷺ وکړه د مشکوة د نبوت د انحضرت ﷺ ور رسېدلې وه فافهم.

## فَمَآ اٰمَنَ لِمُوْسٰٓى اِلَّا ذُرِّيَّةٌ مِّنْ قَوْمِهٖ

نو ايمان يې نه راوړي او تصديق يې نه وکړی د موسى يعني وروسته تر دې چي د موسى ﷺ معجزې يې هم ولېدلې چي ساحران د فرعون نا کامه سوه، مګر يو لږ کسان د قوم څخه د ده چي هغه عبارت دی د هغو مؤمنانو څخه د بني اسرائيلو چي په مصر کي وه او د موسى ﷺ سره د مصره ووتل.

**درويش وايي:** چي دا ترجمه پر دې تقدير ده چي ضمير د قومه وموسى ته راجع سي او بعض مفسران وايي چي د قوم د فرعون چي قبط وه دوی ضمير د قومه وفرعون ته راجع بولي" د ابن عباس ﷺ څخه په يوه روايت کي راغلي دي چي دا قبطيان" (۷۰) اويا کسان وه چي آبا يې قبطيان وه او مندي يې د بني اسرائيلو د قوم څخه وې، نو هر قبطي په مور او ماماګانو پسي روان وو يعني يعني د هغو په دين به وه چي د موسى ﷺ دين وو په دې مؤمنانو کي د قبط د فرعون ماينه" او ماشته" اوخزانه دار د فرعون" او د هغه ماينه" او مؤمن آل فرعون هم داخل دی

**پوښتنه**: ساحران چي فرعون جمع کړي وه وروسته تر معجزې ده لکړي خو تولو ايمان را وړی کما في موضع آخر من القرآن" کريمه" ﴿ انه لکبيرکم الذي علمکم السحر﴾ ﴿ ولا صلبنکم في جزوع النخل﴾ چي فرعون و ساحرانو ته چي ايمان يې راوړی دا دوې خبري يې وکړې، نو څرنګه حصر مذکور دی يعني په روايت کي د ابن عباس ﷺ چي (۷۰) اويا کسان وه؟

**جواب:** ضمير د قومه خو يا موسٰى ته راجع دى يا و فرعون ته" ساحران خو نه د قوم د موسى ﷺ او نه د فرعون فافهم فانه سانح عزيز.

عَلٰى خَوْفٍ مِّنْ فِرْعَوْنَ وَمَلَا۟ئِهِمْ اَنْ يَّفْتِنَهُمْ ؕ

سره ديرى د فرعون او د قوم څخه د ده يعني اشراف د قوم كما هو معنى الملأ، چي دوى دي په فتنه او عذاب كي واقع نه كړي په سبب د ايمان.

**پوه سه:** چي ضمير مستتر د فاعل په يفتنهم كي راجع وفرعون ته دى.

**سوال:** وړاندي يي وويل من فرعون وملأهم" او دلته يې ضمير يوازي وفرعون ته راجع كړى؟

**جواب:** خوف د ملأ څخه خو په سبب د فرعون وو.

وَاِنَّ فِرْعَوْنَ لَعَالٍ فِى الْاَرْضِ ۚ وَاِنَّهٗ لَمِنَ الْمُسْرِفِيْنَ ۝

په تحقيق فرعون لوى متكبر وو په مځكه كي د مصر او دى تجاوز كونكى وو تر خپل حد ولي چي سره د عبوديت يې دعوه د ربوبيت او خدايي كړې وه.

وَقَالَ مُوْسٰى يٰقَوْمِ اِنْ كُنْتُمْ اٰمَنْتُمْ بِاللّٰهِ فَعَلَيْهِ تَوَكَّلُوْٓا اِنْ كُنْتُمْ مُّسْلِمِيْنَ ۝

يعني څه وخت چي بني اسرائيلو د مؤمنانو خوف د عذاب د فرعون موسى وليدى، نو يې داسي ورته وويل، اى قومه زما كه تاسي چيري ايمان پر خداى ﷻ راوړى وي، نو پر خداى ﷻ تكيه او اعتماد وكړئ چي زموږ ناصر دى او له فرعون څخه او له ملأ څخه دده مه بيريږئ كه تاسي مسلمين او وخداى ﷻ ته ظاهراً او باطناً تسليم ياست، ددې شرط جزا محذوفه ده چي سياق د كلام دلالت پر كوي، يعني توكلتم عليه.

**درويش وايي:** چي په دې آيت كي دا توهم كيږي چي يو توكل على الله مشروط په دوه شرطه سره دى يعني الايمان والاسلام، نو سوال دادى چي يو شرط به په توكل كي كافي نه واى؟

**جواب:** ددې سوال جواب پر تمهيد د يوې مقدمې موقوف دى هغه دا چي د عقائدو په كتابو كي وايي چي ايمان او اسلام خو په حقيقت كي يو دي لكن اغلب

استعمال د ایمان په معتقداتو کي دی او د هر استعمال د اسلام په عملیاتو کي دی کما یدل علیه الحدیث الطویل المتفق علیه المروي عن عمر ﷺ چي جبرئیل ﷺ په صورت کي د انسان په مجلس کي د صحابه کرامو ﷺ له علیه الصلوة والسلام څخه یې پوښتنه وکړه ما الایمان؟ قال ﷺ الایمان ان تؤمن بالله وملئکته الی اخیره. فقال الرجل ما الاسلام قال ﷺ ان تشهد ان لا اله الا الله وتقیم الصلوة الی اخیره. وبعد التمهید حاصل د جواب فیما نحن فیه دادی چي په دې آیت کي تعلیق د یوه حکم په دوه شرطه نه دی بلکې تعلیق د دوو شیانو دی په دوه شرطه سره. ولې چي اعتقاد د وجوب توکل یې معلق کړی دی په ایمان سره کما هو المفهوم من الامر وتقدیم المتعلق یعني علیه پر توکلوا باندي او وجود د توکل د عمل په میدان کي یې په اسلام او اخلاص پوري مربوط کړی ددې مثال داسي دی ان دعاک زید فاجبه ان قدرت علیه که زید دعوت درکړي یعني د مهمانۍ نو قبلونه یې وکړه که چیري قادر وې فافهم المثال تفهم الآیة.

**درویش وایي:** چي دې ځواب ته په مختصره توګه مظهري ﷫ اشاره کړې ده او روح المعاني په مفصله توګه لړ، او روح البیان بین بین بیان کړی دی لکن دومره تفصیل لکه فقیر چي وکړی هیڅ چا نه دی کړی ولا فخر. واما بنعمة ربک فحدث کریمه.

فَقَالُوا عَلَى اللَّهِ تَوَكَّلْنَا رَبَّنَا لَا تَجْعَلْنَا فِتْنَةً لِلْقَوْمِ الظَّالِمِينَ

دوی وویل چي خاص زموږ پر خدای ﷻ توکل او اعتماد دی. ولې چي دوی مخلص د اصحابو د موسیٰ وه علی نبینا وعلیه الصلوة والسلام. بیا دوی وه خدای ﷻ ته په دې الفاظو خواست وکړی. اې زموږ ربه ته مه ګرځوې موږ فتنه یعني ځای د عذاب د هغه قوم چي ظالمان دي یعني فرعون او اتباع دده. یعني دوی مه مسلط کوې پر موږ چي ددوی له لاسه موږ په فتنه یعني عذاب کي واقع سو. او بعض مفسرین ﷭ ترجمه داسي کوي ته مه ګرځوه موږ سبباً لپاره د فتنې د فرعونیانو او د زیادت د کفر او طغیان ددوی چي یا ستا له خوا پر موږ مسلط سي او یا د فرعونیانو له خوا. نو دوی به وایي چي که موسی او مؤمنان پر حق وای ما عذبوا فیزید فتنهم وطغیانهم.

وَنَجِّنَا بِرَحْمَتِكَ مِنَ الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ

او موږ ته نجات راکړې د هغه قوم څخه چې کافران دي يعني ددوی د کړاو او خپلو څخه.

**پوه سه:** چي توکل يې تر دعاً دمخه راوړی تنبيه پر دې ده چي دعاکونکی اولاً بايد توکل پر خدای ﷻ وکړي او بيا دعاً وکړي تا چي دعا يې قبوله سي.

**پوه سه:** چي توکل حقيقي دادی چي بېره او اميد چي خوف او رجاً ده ماسوی له خدايه له زړه څخه و باسي، محي السنة بغوي رحمه الله وايي چي بني اسرائيلو چي به لمونځ کاوه په خپلو عمومي عبادت خانو کي به يې کاوه چي بيع او کنائس يې بولي چي جمع د بيعة او کنيسة ده چي دا عبادت خانې د مصر په عمومي بازارو کي ښکاره وې چي موسی ﷺ په نبوت سره فرعون ته خدای ﷻ راواستاوه، فرعون امر وکړی چي د بني اسرائيلو عمومي عبادت گاهوي ورنړوي او د ښکاره لمانځه او عبادت څخه يې بني اسرائيل منع کړه.

**درويش وايي:** لکه څرنگه چي په ابتداً کي د اسلام چي قريشو عليه الصلوٰة والسلام او اصحاب ﷺ دده په حرم شريف کي نه پرېښول چي علانيه لمونځ وکړي، نو ځکه دوی په سرای کي د زيد بن الارقم ﷺ لمونځونه په پټه کول. نو خدای ﷻ بني اسرائيل امر کړه چي په خپلو کورونو کي مسجدونه جوړ کړئ يعني يوه يوه خونه د لمانځه او عبادت لپاره وټاکئ خوفاً من فرعون وذالک معنی قوله تعالی.

وَاَوْحَيْنَاۤ اِلٰى مُوْسٰى وَاَخِيْهِ اَنْ تَبَوَّاٰ

موږ وحي وکړې وه موسی ﷺ ته او ورور ته دده يعني هارون ﷺ چي تاسي مبائة جوړ کړئ يعني ځای د رجوع.

**پوه سه:** چي بوء رجوع ته وايي مراد ځای د رجوع دی لپاره د سکنی او عبادت.

لِقَوْمِكُمَا بِمِصْرَ بُيُوْتًا وَّاجْعَلُوْا بُيُوْتَكُمْ قِبْلَةً

لپاره د خپل قوم په مصر کي خونې.

**پوه سه:** چي خطاب د "اجعلوا" په صيغه د جمع موسى او هارون عليهما السلام او قوم ته دى فلا يرد چي مخاطب په لقومكما خو موسى او هارون عليهما السلام وه، والمعنى نو اجعلوا په صيغه د جمع ولي راغلې ده، تاسي وگرځوئ هغه خونې تا او هارون عليهما السلام ددوى لپاره مبانئة يعني قبله يعني ځاى د لمانځنه، لكن مفسرين وايي چي بني اسرائيلو په امر د موسى او هارون عليهما السلام اولاً لمونځ وكعبې شريفي ته كاوه.

## وَأَقِيمُوا الصَّلٰوةَ ۗ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٨٧﴾

او تاسي لمونځونه كوئ په هغو خونو كي او د فرعون څخه به په امن كي ياست، او زيرى وكړه يا موسى و مؤمنانو ته په دې سره چي دښمن ستاسي يعني فرعون وقومه به خداى جل جلاله هلاک كړي او خلافت د ارض مصر وما حولها به وتاسي ته وسپاري، او خداى پاک دا وعده پوره كړه بغرق فرعون وقومه في البحر ونجاة بني اسرائيل، دا زيرى خو دده په دنيا كي ؤ او په اخيرت كي به فوز بالجنة در كړي.

## وَقَالَ مُوسٰى رَبَّنَآ إِنَّكَ اٰتَيْتَ فِرْعَوْنَ وَمَلَأَهٗ زِينَةً

وويل موسى "ربنا" يعني يا ربنا بحذف النداء په تحقيق تا وركړى دى وفرعون ته او دده اشرافو ته د قوم "زينة" مصدر دى په معنى د مايتزين به من اللباس والحلي (زېورات) والفرش الفاخرة واثاث البيوت او د سپرتيا شيان او خادمان نوكران او دبدبه الى غير ذالک من انواع النعم.

## وَأَمْوَالًا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۙ رَبَّنَا لِيُضِلُّوا عَنْ سَبِيلِكَ ۚ

او مالونه دي وركړي دي په دې دنيا كي يا ربنا ددې لپاره چي گمراهي او انكار مختاره كړي ستا له لاري څخه يعني الاسلام.

**پوه سه:** چي لام د "ليضلوا" لپاره د عاقبت دى متعلق په "اتيت" پوري دى يعني حتى صار عاقبة امرهم الضلال والطغيان كما في قوله تعالى "فالتقطه (اى موسى حين كان رضيعاً) آل فرعون ليكون لهم عدواً وحزناً (يعني موسى په عاقبة الامر چي لوى سي او بيا نبي سي د آل فرعون دښمن او غم به سي وكما في قول من قال لدوا للموت وابنوا للحرب، او بعض مفسرين رحمهم الله وايي چي

لام په معنی د کی دی، والمعنی اتیتهم کذا وکذا استدراجاً لیثبتوا علی الضلال، او قاضي بیضاوي رحمه الله وایي چي "لیضلوا" ښېرا ده ودوی ته په لفظ د امر، والله تعالی اعلم بمراده في کتابه.

## رَبَّنَا اطْمِسْ عَلَىٰ أَمْوَالِهِمْ

ته هلاک مسلط کړې پر اموالو ددوی کذا قال المجاهد. او اکثر مفسرین یې دا معنی کوي چي مسخ کړې ددوی مالونه او له خپل هیئته یې واړوې، او قتاده وایي چي ددوی سره زر، سپین زر او جواهرات تول له منقوشه ډبري سي.

**درویش وایي:** چي دنیا په خپل ذات کي بدي نه لري لکن تر حاجاتو ډېره په دې زمانه کي سبب د ضلال گرځي، کریمه: ان الانسان لیطغی ان راه استغنی" دا هغه انسانان دي چي حب د دنیا یې وه اعمالو ته د زړه رسېدلی وي لکه کوزه چي په اوبو کي ډوبه کړې د اوبو ډکه سي او غرقه سي، عبدالرحمن شاعر وایي:

ښه ده ښه ده دا دنیا ............ چي توښه ده د عقبیٰ
که فقیر ته یې ته ور کړي ............ فقیر دروmي په خندا

دا هغه دنیا ده چي په لاره کي د خدای ﷻ مصرف کېږي، کریمه: وَيُطْعِمُونَ الطَّعَامَ عَلَىٰ حُبِّهِ مِسْكِينًا وَيَتِيمًا وَأَسِيرًا ﴿٨﴾ إِنَّمَا نُطْعِمُكُمْ لِوَجْهِ اللَّهِ لَا نُرِيدُ مِنكُمْ جَزَاءً وَلَا شُكُورًا ﴿٩﴾ (سورة الدهر)

## وَاشْدُدْ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ

او قسوت او غلظت پیدا کړې پر زړونو ددوی حتی چي ایمان ته نرم نه سي.

**سوال:** موسی ﷺ خو رسول ؤ د خلکو د دعوت لپاره خدای پاک راستولی ؤ نو څرنگه ده ته دا ښېرا جواز لري چي زړونه سخت کړي چي ایمان ته نرم نه سي؟

**ځواب:** دا ښېرا ده هلته وکړه چي خدای ﷻ په وحي موسی ﷺ خبر کړی چي فرعونیان ایمان نه راوړي.

**پوښتنه:** ددې ښېرا فائده څه ده؟

**ځواب**: فائده يې اظهار د بغض ده "عدأ الله" لله لان الحب في الله والبغض في الله من مقتضى الايمان كما ورد مضمونه في الحديث النبوي ﷺ مثلاً ټوله مسلمانان وايي لعن الله ابليس مع انه معلوم انه ملعون، دا ددې آيت امتثال مونږ کوو ان الشيطان عدولكم فاتخذوه عدواً، نو مونږ په لعن الله ابليس کې اظهار د خپل عداوت کوو.

فَلَا يُؤْمِنُوا حَتّٰى يَرَوُا الْعَذَابَ الْاَلِيْمَ ﴿۸۸﴾

تا چې ايمان نه راوړي تر هغه وخته پورې چې عذاب دردناکه ويني بعد الموت او في الدنيا بالغرق.

قَالَ قَدْ اُجِيْبَتْ دَّعْوَتُكُمَا

خدای ﷻ وويل دوی ته يعني موسى او هارون ﵉ ته چې قبول کړه خواست ستاسې.

**سوال**: دعا کونکی خو يوازې ؤ كما يدل عليه قوله وقال موسى آه، او دلته ضمير د تثنيه راوړل سو؟

**ځواب**: موسى ﵇ خواست کاوه او هارون ﵇ امين کاوه، او تأمين هم دعا ده ولې چې معنى د امين داده اللهم افعل كما قال الداعي، په بعضې نادرو قصو کې راغلي دي چې د موسى ﵇ د دعا او د اجابت تر منځ څلوېښت کاله تېر سوه.

فَاسْتَقِيْمَا وَلَا تَتَّبِعٰٓنِّ سَبِيْلَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۸۹﴾

نو تاسې خپل دعوت الى الله او رسالت ته دوام ورکړئ تر هغو چې پر فرعونيانو عذاب نازلېږي، او تاسې هرګز متابعت مه کوئ، د لارې د هغو کسانو چې نه پوهېږي.

**پوه سه**: چې "ولاتتبعان" صيغه د نهي ده مؤكد په نون ثقيله.

**فائده**: پوه سه! چې يو مسلمان ته چې كوم ضرورت پيښ سي که ناجوړي وي او که فقر او مسكنت يا د دښمن ېيره وي الى غير ذالک من الحاجات تر ټوله وسائلو دمخه بايد لاسونه د دعا په دربار کې د قاضي الحاجات رب البريات القادر على الاطلاق الرحمن على المخلوقات پورته کړي،

**پوه سه:** چي دعا کول وه خدای ﷻ ته د ټولو انبیا علیهم السلام له وخت څخه د آدم ابو البشر الی اخیر المرسلین محمد ﷺ پوري سنت قدیمه دی کما حکی الله ﷻ في مواضع من القرآن العزیز بتلک ادعیة الانبیا علیهم السلام، وفي الحدیث الصحیح ما من داع (نسته یو دعا کونکی) یدعوا الا استجاب الله دعوته (چي خواست وکړي یعني خدای ﷻ ته مګر خواست یې خدای پاک قبلوي دعا دده یعني هغه مطلوب دده ورکوي) او صرف عنه مثلها سوء (او یا به خدای پاک دفع کوي په قدر دده دعا یو ضرر چي د متوجه وي) او حط من ذنوبه بقدرها (او یا به بخښي له ګنهو څخه د دعا کونکي په قدر د دعا دده) مالم یدع باثم او قطیعة رحم (تر هغه پوري چي خواست د ګناه ونه کړي مثلاً د شرابو یا هروینو پیسې راکړې یا د قطع د وصیله رحمي خواست ونه کړي مثلاً زما ورور مړ کړې چي ماینه یې ماته را پاته سي) کذا في شرح العقائد لرمضان.

**فائده:** یو له شرطو څخه د دعا ذلت دی ولي چي اجابت مرتب پر ذلت دی قال الله تعالی "ولقد نصرکم الله ببدر وانتم اذلة" قال الحافظ الشیرازي رحمه الله:

فقیر وخسته بدرګاهت آمدم رحمی ... که جز دعایی توام نیست هیچ دست آویز

## وَجَاوَزْنَا بِبَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ الْبَحْرَ

موږ تېر کړه بني اسرائیل تر دریاب چي دا دریاب بني اسرائیلو او موسی علیه السلام ته دوولس کوڅې سوې په عدد د اسباطو د بني اسرائیلو او دوی د روډ هغه بلې غاړي ته ورسېدل.

**پوه سه:** چي "جاوز" باب د مفاعلې دی لکن دلته په معنی د مجرد دی نحو عاقب الامیر اللص، وقد صرح به ابن الحاجب في خواص الابواب في الشافیة.

## فَأَتْبَعَهُمْ فِرْعَوْنُ وَجُنُودُهُ

وروسته تر عبور د بني اسرائیلو فرعون او دده لښکر یعني په ډېر لوی عدد پسې ورورسېدله.

**پوه سه:** چي "اتبع" دلته په معنی د مجرد دی ای تبع.

بَغْيًا وَّعَدْوًا

په بغي او ظلم سره، نو "بغيا" يا حال دى له فرعون وجنوده څخه، والمعنى باغين وعادين، او يا مفعول له دى اى للبغي والعدوان على بني اسرائيل.

په صحيح حديث کي راغلي دي چي فرعون او جنود دده چي درياب ته ورسېدله او درياب يې کوڅې کوڅې وليدى فرعون وبېرېدى او دا يې يقين سو چي د هلاک دام درته ولاړ دى، نو يې د آس کيزه ټينګه کړه او پر لښکر يې امر وکړى چي ورسئ دا زموږ مريان راواپس کړئ، نو جبرئيل عليه السلام پر ښځه ماديان سپور ؤ د فرعون تر نر آس يې دمخه کړه د فرعون آس بلا اختياره د فرعون پسي ګډ سو يعني په يوه کوڅه کي او د شا له خوا ميکائيل عليه السلام د فرعون جنود هڅول چي ټوله درياب په کوڅو ورګډ کړه، او د فرعون آس هغې بلې غاړي ته د درياب چي ورسېدی موسى عليه السلام په امر د خداى پاک درياب ته د جريان حکم ورکړى.

حَتَّىٰٓ إِذَآ أَدْرَكَهُ ٱلْغَرَقُ

هغه ؤ چي ونيوى فرعون غرقيدلو يعني يو وار په اوبو کي ډوب سو چي راپورته سو داسي يې وويل.

قَالَ ءَامَنتُ أَنَّهُۥ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱلَّذِىٓ ءَامَنَتْ بِهِۦ بَنُوٓا۟ إِسْرَٰٓءِيلَ وَأَنَا۠ مِنَ ٱلْمُسْلِمِينَ

فرعون وويل چي ايمان ما راوړى دى چي شان دادى چي نسته معبود مګر هغه ذات چي ايمان پر راوړى دى بني اسرائيلو او زه د مسلمانانو له ډله څخه يم. يعني خپل د خدايي تر دعوه تېر سو، نو جبرئيل عليه السلام يې په خوله د درياب ختي او لوشي ورتخته کړل، نو مړ سو دمخه د توبې تر قبول، لکن دا توبه د اضطرار د حالت خداى پاک نه قبلوي کما قال.

ءَآلْـَٰٔنَ وَقَدْ عَصَيْتَ قَبْلُ وَكُنتَ مِنَ ٱلْمُفْسِدِينَ

آيا اوس ته ايمان راوړې چي له ژونده نا اميده سوې او اختيار دي سلب سو او د اضطرار په دام کنښېوتې، او په تحقيق تا عصيان کاوه "طول عمرک" او ته وې د مفسدانو له ډلې څخه يعني ګمراه وې، او نور خلګ دي چي ستا جند او اتباع وه

هم په گمراهي او کفر اخته کړي وه حتی چي ځان دي رب او معبود باله، سعدي شیرازي قدس سره وایي:

تو پیش ازعقوبت دری عفو کوب ...... که سودی ندارد فغان زیر چوب

**پوه سه:** چي اصل د "آلئٰن" الئٰن ؤ په دوه همزه یو د استفهام ؤ او بل د نفس کلمه، نو دوهم همزه یې په الف بدل کړی.

د تعجب وړ فائده: پوه سه! چي جلال الدین الدواني په شرح العقائد الجلالي کي ویلي دي چي فرعون مات مسلماً لانه بکلمة التوحید حال حیاته انتهی.

**درویش وایي:** چي دا خبره د صحیح احادیثو او اجماع ځخه د امت مخالفه ده، دواني په دې سره دلیل وایي چي په قرآن کي هر ځو واره چي وعید بالنار راغلی دی په حق کي د آل فرعون راغلی دی د فرعون په باره کي نه دی راغلی، قال الله تعالی "ادخلوا آل فرعون اشد العذاب" وقال الله ﷻ وحاق بآل فرعون سوء العذاب، دی وایي چي فرعون ته عذاب د قبر نسته فانه قد آمن بل علی عصیانه وظلمه في حق العباد فان حقوق العباد لا یغفرها الله انتهی.

**درویش وایي:** چي دلائل د دواني پوچ دي اما اولاً فلان ایمان فرعون کان حین الغرق ایمان اضطراري کما یؤمن کل کافر یوم القیامة حین رؤیة العذاب ولا اعتدا بایمان فرعون حین رؤیة الغرق اضطراراً کما لا اعتداد برؤیة سائر الکفرة یوم القیامة وقدمر بنذ من ذالک قریباً، واما ثانیاً خدای ﷻ وایي فحشر (ای جمع الناس فرعون) فنادی فقال انا ربکم الاعلی فاخذه الله نکال الآخرة والاولی (په دې آیت کي ضمیر د اخذ راجع دی وفرعون ته د آل ذکر هیڅ نسته ددې آیت ځرخه صراحةً دا معلومه سوه چي فرعون معذب دی په اخرت کي په سبب د کفر او دنیا کي یعني الغرق هم په سبب د کفر دده دی) واما ثالثاً په هغو آیتو کي چي ذکر د آل فرعون راغلي دي هغه هم پر عذاب د فرعون دلالت کوي، ولي چي آل د فرعون په سبب د متابعت د فرعون مستحق د عذاب الآخرة وګرځېدله. نو فرعون خو په طریق اولی معذب بالنار یوم القیامة کما لایخفی علی من له ادنی عقل. واما رابعاً فقد قال الله تعالی حکایة عن قول موسی ﷺ ربنا انک اتیت فرعون وملأه زینة الی قوله ربنا اطمس علی اموالهم واشدد علی قلوبهم فلا یؤمنوا الی ان قال الله

تعالی قد اجيبت دعوتكما وقد مر هذه الآيات من قبل وهي صريحة في ان موسى دعا على فرعون ان يموت على الكفر او خدای ﷻ دا دعا د موسى ﵇ مجابه وبلل، فانكار موته على الكفر انكار من هذه الآية، دا ؤرد د قول د دواني.

**پوښتنه:** مثل د قول د جلال الدين الدواني خو د شيخ محي الدين ابن العربي څخه راغلي ده حيث قال مات فرعون طاهراً ددې به څه جواب وي؟

**ځواب:** د شيخ محي الدين ابن العربي اكثره خبري په حال كې د سكر واقع سوي دي چي د شرعي شريفي سره مطابقت نه لري فلا اعتداد بها ايضاً. وحكم بهذا المظهري رحمه الله في تفسيره في هذا المقام، والله اعلم بالصواب بمراد العباد.

## فَالْيَوْمَ نُنَجِّيكَ بِبَدَنِكَ

نو نن ورځ چي ته مړ او غرق سوې پر نجوة يعني پر لوړ ځای به دي راوغورځوو، او يا معنی داده چي تا به له قوم څخه لېري كو چي هغه به په قعر كې د بحر پاته وي او ته د ابو پر سر يې چي طافي يې په عربي بولي "ببدنک" ستا بدن خالي له روح څخه او يا معنی داده چي ستا بدن به پوره وي شی به يې كم نه وي، او يا معنی دا چي بدن به دي سره زغري وي، او د فرعون يوه زغره وه د سرو زرو چي قيمتي قيمتي غميان يې پكښي نصب كړي وه، بغوي رحمه الله وايي چي موسى ﵇ چي بني اسرائيلو ته خبر وركړی چي فرعون غرق او مړ سو بني اسرائيلو ورته وويل چي فرعون مړ نه دی، نو باره درياب په څپه سره پر غاړه را وغورځاوه.

**فائده:** فرعون په رنګ سور ؤ او په قامت ببخي لندی ؤ لكن د خلكو لپاره لندی وه چي يو زهري وږونكی مار دی.

## لِتَكُونَ لِمَنْ خَلْفَكَ آيَةً

او چي ته سې د وروستو خلكو دپاره عبرة.

**پوه سه:** چي مراد د من خلفک بني اسرائيل دي، او يا وروسته خلكو دا علامه د عجز د بشر سي او دليل د قدرت د مقتدر سي يعنس بشر كه هر ځای ته ځان ورسوي حتی چي لكه نمرود او فرعون د خدايي په دعوه كې هم كامياب او ومنل سي په خلكو كې لاهم د قدرت څخه د خدای ﷻ بما اراد به به ځان نه سي خلاصولای.

نادره خبره: درويش وايي: چي ما په يوه حاشيه کي د جلالين دا خبره ولېدل چي د فرعون قد اووه (۷) لوېشتي وو او ږېره يې اته (۸) لوېشتي وه، نن په روح البيان کي مي ورته عبارت ولېدی لکن په روايت مجهول سره عبارته هذا" ويروى ان قامته فرعون سبعة اشبار ولحيته ثمانية اشبار آه لکن د د عقيدې او عملو ور خبره نه ده والله اعلم.

وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ النَّاسِ عَنْ آيَاتِنَا لَغَافِلُونَ

او په تحقيق ډېر انسان يعني کافران زموږ د آياتو څخه د قدرت غافل دي، مراد د آياتو څخه دلائل د قدرت د خدای عز وجل دي... سعدي رحمه الله

پند گير از مصائب ديگران ...... تا نگيرند ديگران زتو پند
نرود مرغ سوي دانه فراز ....... چو ديگر مرغ بېند اندر بند

وَلَقَدْ بَوَّأْنَا بَنِي إِسْرَائِيلَ مُبَوَّأَ صِدْقٍ

موږ نازل کړه، بني اسرائيل په ځای کي د صدق يعني چي صالح د دوی د عيش او ژوندانه د چارو وو" بعض مفسرين وايي چي مراد ځندي مصر دی او بعض وايي چي اردن او فلسطين دی او بعض وايي چي بيت المقدس دی التي كتب الله ميراثا لابراهيم وذريته، نو وروسته عمالقه او فراعنه وو بني اسرائيل د دې ځايو مملکت په واک کي واخستی.

**فائده:** فرعون د موسی عليه السلام خو په حال کي د اضطرار امنت بالله ويل که څه هم قبوله نه سوه لکن فرعون د دې امت يعني ابو جهل چي په بدر کي سخت ټپي وو دا بني عفرا د خوا او رمق د زکندن په کښېږ وو هم يې کلمه او آمنت نه ووايه بلکه دا يې وويل فلو غير اكار قتلني که غير د کښته گروزه وژلی وای ښه به وای. مراد د ابو جهل ابني عفرا وه چي د مدينې منورې وه او د مدينې خلگ قريشو کښته گر بلل مطلب دده دا ؤ چي د مکې قريشو مسلمانانو وژلي وای ښه به وای.

وَرَزَقْنَاهُم مِّنَ الطَّيِّبَاتِ

او موږ دوی ته په رزق ورکړي د حلالو او لذيذ شيانو څخه من الماكولات والمشروبات.

فَمَا اخْتَلَفُوْا حَتّٰى جَآءَهُمُ الْعِلْمُ

نو اختلاف نه درلودی هغه بني اسرائيلو چي په زمانه کي د عليه الصلوة والسلام وه دمخه تر نبوت او تر راتگ د ده ﷺ بلکه ټوله متفق پر دي وه چي په نامه د محمد ﷺ يو نبي منعوت في التوراة رسول خدای ﷻ عمومي انسانانو ته را استوي او يو وبل ته بې زيري کول چي زمانه د نبي موعود نژدې ده او د مشرکينو سره بې جنگ سو د عليه الصلوة والسلام په برکت بې فتح پر هغو غوښته کريمه﴿ وكانوا يستفتحون على الذين كفروا﴾ "حتى جاءهم العلم" تر هغو چي دوی ته راغلی علم.

**يوه سه:** چي علم دلته په معنی د معلوم دی والمراد به محمد ﷺ كا الخلق بمعنى المخلوق في قوله تعالى ﴿هذا خلق الله﴾ او هغه نعوت چي په تورات کي وه د دې معلومه سره برابر وه، نو بعض يهوادانو ايمان پر راوړی لکه عبد الله بن سلام ؓ او د ده دا کا زامن او بعض انکار د ايمان راوړو څخه وکړي عنادا او حسدا ولبقأ رياستهم على العوام کريمه﴿ فلما جائهم ما عرفوا كفروا به﴾.

إِنَّ رَبَّكَ يَقْضِىْ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ﴿۹۳﴾

په تحقيق رب ستا به حکم وکړي په مابين کي د دوی په ورځ د قيامت په هغه شي کي چي د دوی په کښي اختلاف ايمانا وكفرا" يعني بادخال المؤمن الجنة وادخال الكافر دار البوار جهنم دار الكفار.

فَإِنْ كُنْتَ فِىْ شَكٍّ مِّمَّآ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ فَسْئَلِ الَّذِيْنَ يَقْرَءُوْنَ الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكَ ۚ

که ته يې ای انسان فالخطاب عام، په شک د هغه قرآن او هدايت چي پر ځپه د رسول زموږ چي محمد ﷺ دی، نو ته پوښتنه وکړه په دې باره د هغو کسانو څخه چي وايې کتاب يعني التورات والانجيل تر تا د مخه.

**يوه سه:** چي ابن عباس او مجاهد او ضحاک وايې چي مراد د الذين يقرؤن څخه هغه کسان د اهل کتاب چي ايمان يې را وړی وي لکه عبد الله بن سلام او د ده اصحاب، نو هغه به شاهدي ادا کړي چي دغه قرآن نازل پر محمد عليه

الصلوة والسلام موعود دی په توراة او انجیل او موافق دی د کتب متقدمه سره په قصو کي او په عقائدو کي حاصل دا چي خطاب واهل شک ته دی من الناس ولي خلګ په زمانه کي د علیه الصلوة والسلام مصدقان یعني مومنان وه او بعض یې مکذبان یعني منکران وه. او بعض شک والا وه نه مؤمن او نه منکر بلکه ګاهي به په زړه کي تصدیق وروګرځېدی او ګاهي تکذیب.

**فائده:** په دې آیت کي تنبیه ده پر دې که د یو مؤمن په زړه کي شک په یو شي د احکامو د قرآن او د اسلام پیدا سو فورا به رجوع کوي وجید او صالح عالم ته تا چي خپل د شک ازاله ورته حاصل او شک ته دي دوام نه ورکوي چي نباید شک په انکار بدل نه سي، او بعض مفسرین وايې چي مخاطب په دې خطاب سره علیه الصلوة والسلام دی لکن پر طریقه د فرض او تقدیر او یا لپاره د زیادت د یقین وانما قلنا علی طریق الفرض لان رسول اللهﷺ لم یکن شاکا فیما انزل الیه بل کان في غایة التصدیق والایقان بما انزل الیه کما لا یخفی.

والدلیل علیه: هغه حدیث دی د عبد الرزاق او د ابن جریر عن قتادة ده وویل چي علیه الصلوة والسلام چي دا آیت نازل سو وي ویل لا اشک ولا اسئل. او بعض مفسرین وايې چي خطاب خو ونبي علیه الصلوة والسلام ته دی لکن مراد نور شک کونکي دي علی عادة العرب یې خطاب د یوه سره او مراد یې غیر وي لکه چي په قرآن مبارک د دې مثال قال الله تعالی ﴿ یا ایها النبي اتق الله﴾ چي خطاب یې نبيﷺ ته وکړی او مراد څنډي امت دی، بدلیل قوله تعالی في اخیر الآیة "ان الله کان بما تعملون خبیراً" حیث لم یقل بما تعمل بصیغة خطاب المفرد ، وبدلیل قوله تعالی ﴿یا ایها النبي اذا طلقتم النسا﴾ مخاطب یې علیه الصلوة والسلام وګرځاوه وروسته لفظ د طلقتم جمع راوړی. او فرا رحمه الله وايې چي خدای جل جلاله خو په دې خبر وو چي علیه الصلوة والسلام شاک نه دی لکن بنا پر عادت د عربو یې وویل وان کنت" چنانچه عرب وخپل مربي ته وايي ان کنت عبدي فاطعني یا زوی ته پلار وايې ان کنت ابني فصل الصلوات بالجماعة او سره د دې چي باداړ په مربوب کي مربي شک نه لري او نه پلار په زوی والي کي د زوی شک لري.

**درویش وايي:** چي دا جوابونه او تفسيرونه مظهري رحمه الله او روح البيان او روح المعاني په ګډه راوړي دي. او دا تفسير هم ډير په زړه پوري دی چي کلمه د ان شرطيه د پاره د مجرد احتمال ده حتی چي په محال شيانو کي هم مستعمليږي "نحو ان کان زيد حمارا کان ناهقا وامثال ذالک فافهم هداک الله.

لَقَدْ جَآءَكَ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ ﴿۹۴﴾

په تحقيق وتاته راغلی يعني نازل سو يعني قرآن مبارک چي امر ثابت دی د جانبه څخه د رب ستا او تاته په دلائلو قاطعه وو سره دا ثابت سوه چي دا کتاب من عند الله دی او ځای د شک او شبهې نه دی نو ته مه ګرځه د شاکينو د ډلې څخه.

وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَتَكُوْنَ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۹۵﴾

او ته مه ګرځه د هغه خلګو څخه چي تکذيب کوي د اياتو د خدای، نو به وګرځي د تاوانيانو د ډلې څخه.

**پوه سه:** دا خطاب هم پر منوال او طريقه د ماسبق يا خطاب دی و شک کونکو خلګوته. او يا خطاب دی وعليه الصلوة والسلام ته مراد ځنډي نور کسان دي يا وعليه الصلوة والسلام ته دی بناً پر فرض او تقدير" وقد مر تفصيل جميع هذه الاحتمالات فيما مر عنقريب فتذکر.

اِنَّ الَّذِيْنَ حَقَّتْ عَلَيْهِمْ كَلِمَتُ رَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۹۶﴾

په تحقيق هغه کسان چي پر دوی واجبه سوې ده خبره د رب ستا يا محمد ﷺ هغه ايمان نه راوړي ولي چي قضاً د خدای ﷻ نه بدليږي.

**درویش وايي:** چي روح المعاني د کلمة ربک په حکم او قضاً الهي سره تفسير کړی دی او د زياته کړې ده چي د قضاً آلهي تفسير اشاعرة وو يعني اهل سنت که حنفيان دي او که شافعيان په اراده ازلي سره د خدای ﷻ کړې ده چي تعلق لري په تولو شيانو پوري خصوصا په انسانانو پوري پر هغه ډول چي په مستقبل کي به په خپل اختيار سره به ايمان راوړي او پر ايمان به مړه کيږي او اهل د جنت به وي او يا به په خپل اختيار کفر مختاره کوي او پر هغه کفر به مري او اهل النار به وي.

**درویش وایي:** چي دا تر جمه ددې آیت ډېره په زړه پوري ده او پر دې ترجمه هیڅ سوال د جبر نه پیدا کېږي فتامل. او مظهري د دې آیت تفسیر په صحیح حدیث سره کړی دی په روایت د ترمذي ابو داؤد د مسلم بن یسار چي هغه روایت د عمر بن الخطاب ﷺ کړی دی لکن د حدیث مبارک عبارت د متشابهاتو څخه دی چي تر فهم د متعلمانو د دې تفسیر ډېر لوړ دی نو درویش په دې سبب هغه را نه وړی، او دا عمل زما په نیت پوري اړه لري. نبوي حدیث ( انما الاعمال بالنیات) رواه البخاري، او روح البیان یې هم تفسیر په حکم او قضاء آلهي سره کړی دی او قرطبي هم ورته تفسیر کړی دی.

وَلَوْ جَآءَتْهُمْ كُلُّ ءَايَةٍ حَتَّىٰ يَرَوُا۟ ٱلْعَذَابَ ٱلْأَلِيمَ ﴿٩٧﴾

که څه هم ودوی ته راسي هره معجزه او دلیل پر صدق د نبوة ستا تر هغه پوري چي ویني دوی عذاب درد ورکونکی یا په قبر کي یا په اور کي د دوزخ او یا د غرغرې د روح یعني د زکندن په وخت کي لکه فرعون چي په وخت کي د غرق وویل آمنت بما آمنت به بنوا اسرائیل، ولا ینفع الایمان لهم في الحالات المذکورة.

**فائده:** جمله د "ولو جائتهم" سره د معطوف مقدر علیها په محل کي د حال ده له فاعل څخه د "لایؤمنون" تقدیر د کلام داسي دی لایؤمنون لولم یجئهم (وهذا هو المعطوف علیه المقدر) ولو جائتهم کل آیة یعني لایؤمنون في حال في الاحوال حتی یروا العذاب آه پر جمله مقدره دلیل جمله مذکوره ده.

فَلَوْلَا كَانَتْ قَرْيَةٌ ءَامَنَتْ فَنَفَعَهَآ إِيمَٰنُهَآ إِلَّا قَوْمَ يُونُسَ

"فلولا" حرف تخصیص دی په معنی د هلا. نحات وایي چي حرف تخصیص چي پر ماضي داخل سي لپاره د توبیخ او سرزنش وي پر ترک د فعل ماضي نحو هلا اکرمت زیداً "کانت" تامه دی په معنی د وجدت "قریة" یوه قریه له قری مهلکه وو څخه مراد له قریه څخه اهل د قریه دي "آمنت" چي دې قریې په معنی د اهل دې ایمان راوړی وي دمخه تر رؤیت د عذاب. یعني ایمان یې نه وي څنډولی تر وخته د رؤیت د عذاب لکه فرعون. او چي ایمان یې وڅنډاوه تر وخته پوري د رؤیت د عذاب الغرق "فنفعها ایمانها" نو دي فائده کړې وي دوی

ته ایمان ددوی یعني ایمان قبل رؤیت العذاب دي ودوی ته فائده کړې وي یعني عذاب موعود دي څني پورته سوی وي "الا قوم یونس" لکن قوم ته د یونس عليه السلام یې فائده وکړه چي عذاب څني پورته سو، نو استثناً منقطع ده.

**پوه سه:** چي یونس غیر منصرف دی په سبب د علمیت او عجمه. او "متی" په تشدید د تا د یونس عليه السلام د پلار نوم دی. او بعض اهل تاریخ وایي چي د مور نوم یې دی وعلی التقدیر الثاني د مور په نامه نه دی مشهور مگر یونس بن متی او عیسی بن مریم عليهما السلام.

**درویش وایي:** چي مستثناً منقطع یې وبلل متابعةً لروح المعاني چي هغه د زجاج، سیبویه او کسائي رحمهم الله څخه نقل کړی دی چي دغو درو امامانو د نحاتو دا استثناً منقطع گڼلې ده. او امام مظهري رحمه الله په ډېر تکلیف سره د استثناً د اتصال توجیه کړې ده فارجع الی تفسیره.

**درویش وایي:** چي کانت یې تامه وبلل، لکن روح المعاني د بعض محققینو څخه نقل کړی دی چي کانت ناقصه دی او قریه یې اسم دی او آمنت یې خبر دی.

**لَمَّآ اٰمَنُوْا كَشَفْنَا عَنْهُمْ عَذَابَ الْخِزْيِ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَمَتَّعْنٰهُمْ اِلٰى حِيْنٍ ﴿۹۸﴾**

چي دوی ایمان راوړی په خپل اختیار سره چي صرف علامات د حلول د عذاب الهي چي یونس عليه السلام ورته بیان کړي وه یې لیدل او ایمان یې تر وقوع د عذاب پوري نه وه ځنډولی لکه فرعون چي ایمان یې تر وقوع د عذاب پوري ځنډولی و چي عذاب د غرق واقع سو، نو ده ایمان راوی. نو چي دوی ایمان راوړی دمخه تر وقوع د عذاب، نو موږ کشف لیري کړی یعني دفع مو کړی له دوی څخه عذاب د رسوایي چي عذاب د استیصال دی په ژوند کي د دنیا.

**پوه سه:** چي د حیوٰة الدنیا معنی دا نه ده چي په قیامت کي به دوی ته عذاب ورکړل سي، بلکي مقصود بیان د حال ددوی دی، نو په اخیرت کي هم دوی لره عذاب نسته لانهم آمنوا باختیارهم قبل وقوع العذاب ومثل هذا الایمان مقبول عندالله في الدنیا والآخرة بالاجماع. او موږ دوی ته نفع ورکړه د ژوند په چارو کي تر یو وخته پوري، یعني تر اجل معلومه پوري الذي قال الله تعالی فیه "اذا

جا اجلهم لا يستأخرون ساعة ولا يستقدمون"

**درويش وايي:** چې د يونس ﷺ او دده د قوم قصه په تفسير حسيني او روح البيان كې ډېره اوږده بيان سوې ده، لكن محي السنة بغوي رحمه الله له ابن مسعود، سعيد بن جبير او د وهب بن منبه رحمه الله داسې روايت كړی دی چې د يونس ﷺ قوم په نينوی كې وه چې د ارض موصل يوه برخه ده (د وطن نوم دی چې پر غاړه د دجله د بحر پروت دی) نو خدای ﷻ يونس ﷺ ورته راواستاوه او دده د ايمان دعوت وركړی هغو له ايمان څخه انكار وكړی او پر كفر يې اصرار وكړی (نو د يونس ﷺ سينه او زړه تنگ سو او داسې يې وويل اللهم ان القوم كذبوني فانزل عليهم نقمتك يا الله زما قوم زما تكذيب وكړی ته نازل كړې پر دوی ستا عذاب) نو د خدای ﷻ له خوا يونس ﷺ ته وويل سوه چې دوی خبر كړه چې تر درو ورځو پورې پر دوی عذاب راتلونكی دی. نو ده هم دوی خبر كړه، وفي رواية الى اربعين ليلة اى من اول ذى الحجة الى عشرة محرم" نو د يونس ﷺ قوم يو له بله سره وويل چې تر اوسه يونس موږ ته دروواغ نه دي ويلي. نو تاسې انتظار وكړئ كه يونس درې يمه شپه پر كور ؤ، نو شی نسته يعني عذاب نسته او كه درې يمه شپه نه ؤ په وطن كې خو پوه سئ چې عذاب سهار راتلونكی دی، او يونس ﷺ درې يمه شپه پر نيمايي شپه له كوره وتلی ؤ او د يوه غره په غار كې يې ځان پټ كړی ؤ، درې يمه ورځ چې سوه د عذاب الهي علامې معلومې سوې يعني پر اسمان توره وريځ پيدا سوه چې ډېره خوفناكه وه او سخت دود پكښې ؤ، نو دا وريځ راكښته سوه او ددوی ښار يې په منځ كې راغلی، نو ددوی يقين سو چې عذاب د خدای ﷻ راغلی، نو دوی په يونس ﷺ پسې وگرځېدله خو هغه يې پيدا نه كړی، وفي رواية چې دوی ورغله خپل باچاه ته چې يوه لار پيدا كړه چې له عذاب الهي څخه خلاص سو او د ټولو په زړونو كې توبه عن الكفر پيدا سوه، ملك يو هوښيار سړی ؤ خلكو ته يې وويل چې يونس ﷺ كه نسته نو د يونس ﷺ رب چې ده موږ ته د هغه دعوت راكوی هغو سته. باچاه وويل چې اوس ټوله توبې پر كفر او ټوله عجز او زاريو او ژړا په دربار كې د خدای

بله چاره نسته، نو ملک امر وکړی چي ټوله صحرا ته دروو ځئ. ښځي سره د رضيع عيال او غواوي سره د خپلو ګيلګيانو وهکذا مېږي او وريان او هره موږ له خپل عيال څخه جلا کړئ، که انسانان وي او که حيوانان وي، تاچي زمونږ د ژړا او ددي حيواناتو د نارو آواز تر اسمانه پوري ورسېږي او په صدق او اخلاص سره ايمان راوړئ عين ممکنه ده چي دا عذاب به ارحم الراحمين دفع کړي.

تا نه گريد ابر کی خندد چمن ............ تا نگريد طفل کی جوشد لبن

هر کجا آبر روان سبزه شود ............ هر کجا اشک روان رحمت شود

راوي وايي چي دوی ټولو ځېږه کالي اغوستي وه واظهروا الايمان والتوبة واخلصوا النية، او دوی ټولو وويل آمنا بما جا به يونس فرحمهم ربهم واستجاب دعائهم وکشف عنهم العذاب، وکان يوم عاشوراً ، وجمعه ايضاً. په تفسير کواشي کي وايي چي دوی داسي دعا کوله اللهم ان ذنوبنا قد عظمت وجلت وانت اعظم منها واجل...... ابيات

چاره ما ساز که بی یا وریم ............ گر تو برانی به که رو آوریم

بی طریم از همه سازنده ............ جز تو نداریم نوازنده

پیش تو گربی سرو پا آمدیم ............ هم با مید تو خدا آمدیم

**درويش وايي:** چي دا خو د قوم حال ؤ، راسئ چي اوس د يونس ﷺ حال وڅېړو راوي وايي چي وروسته تر درو ورځو يا تر څلوېښتو ورځو په يوه روايت سره، يونس ﷺ له غاره راووتی غوښتل يې چي د قوم حال معلوم کړي. د يو چا څخه چي يې پوښتنه وکړه هغه ورته وويل چي خيريت دی هيڅ عذاب نه دی راغلی بلکي عذاب په رحمت بدل سو، نور صورت حال يې پوره نه ورته ووايه. نو يونس ﷺ ډېر پرېشان سو او د ځان سره يې وويل چي ما خو دوی له عذابه بېرول عذاب په رحمت بدل سو، اوس که زه دې ښار ته ورسم: نو دوی به نور او ښه زما تکذيب وکړي، يعني دوی به وايي چي ښه تا خويل چي درې ورځي وروسته يا څلوېښت ورځي وروسته پر تاسي عذاب نازلېږي کوم دی چي عذاب نازل سو، نو پر خپل سر روان سو مغاضباً لقومه. نو درياب ته ورغلی خلګ په کښتۍ کي سپاره وه، نو کښتۍ

والا وپېژندی چي یونس ﷺ دی نو بيې بې اجرته او مزدورۍ په کښتۍ کي سپور کړی، نو کښتۍ چي د دریاب منځ ته ورسېدله او د دریاب په څپو داخله سوه کښتۍ ودرېدله نه پر مخ تله نه پر شا، نو کښتۍ والا وویل چي زموږ کښتۍ ته یو شان او حال پېښ سو، یونس ﷺ ورته وویل چي په شان یوه سوم "رکبها رجل ذو خطیئة عظیمة. قالوا ومن هو؟ قال انا" نو تاسي ما دریاب ته وه غورځوئ چي تاسي به سالم پاته سئ او کښتۍ به روانه سي، کښتۍ والو ورته وویل چي موږ تا دریاب ته نه غورځوو تر څو چي موږ ته حال معلوم نه سي ستا په شان کي، نو باره یې قرعه اندازي وکړه درې واره، نو درې سره واره قرعه د یونس ﷺ وختله او یو ډېر لوی ماهي د کښتۍ پای ته ولاړ ؤ خوله یې وازه نیولې وه د خدای ﷻ وه امر ته منتظر ؤ، یونس ﷺ وه دوی ته وویل چي قسم په خدای ﷻ دی چي یا به تاسي ټول هلاکېږئ یا به ما دریاب ته غورځوئ، نو مجبوراً کښتۍ والو یونس ﷺ ودریاب ته وغورځاوه او دوی ولاړل، نو ماهي سره د کالو یونس ﷺ تېر کړی کښتۍ ولاړه، او د ابن عباس رضي الله عنهما په رایت کي داسي راغلي دي چي دا کښتۍ په بحر روم کي وه، یونس ﷺ چي پکښي سپور سو او کښتۍ د دریاب منځ ته ورسېدله ودرېدله کښتۍ والو وویل چي زموږ د کښتۍ دا عادت دی چي عبد آبق عن المولی پکښي سپور وي دا رفتار نه کوي، نو زموږ قانون دا دی چي په قرعه اندازۍ هغه سړی معلومه وو او دریاب ته یې غورځوو، ولي تر دې چي ټوله کښتۍ والا غرقېږي د یوه نفر غورځول وه دریاب ته اولی او بهتر دی، نو درې واره یې قرعه اندازي وکړه، درې سره واره قرعه د یونس ﷺ وختله، نو یونس ولاړ سو او وه یې ویل انا العبد الآبق من المولی، یعني ببله امره د خدای ﷻ زه له قوم څخه فرار سوم، نو په خپله یې خان ودریاب ته وغورځاوه او ماهي تېر کړی، او ماهي ته خدای ﷻ الهام وکړی چي دا سړی یعني یونس ﷺ ستا غزا نه ده بلکي ستا نس دده لپاره بندي خانه ده.

**درویش وایي:** چي په دې کي اختلاف دی چي څو ورځي یونس ﷺ د ماهي په نس کي ؤ، مشهوره خو داده چي څلوېښت ورځي په نس کي د ماهي ؤ لکن شعبي رحمه الله وایي چي د څانښت په وخت کي د ورځي د عاشورا چي د جمعې ورځ هم

وه ماهي تیر کړی او هم په دغه ورځ د ماږدیګر په وخت کي ماهي پر وچه مځکه قی کړی، په هر صورت د یونس ﷺ ذکر د ماهي په نس کي دا ؤ "لا اله الا انت سبحانک اني کنت من الظالمین" کما سیجئ في موضع آخر من هذا التفسیر ان شاالله تعالی.

**درویش وایي:** چي یونس ﷺ چي ماهي پر مځکه قی کړی بدن یې داسي نازک سوی ؤ لکه د چرګي د چیچي چي له بڼکو څخه خالي وي، له دې څخه داسي معلومیږي چي یونس ﷺ د ماهي په نس کي څلوېښت ورځي تیري کړي دي کما ذهب الیه ابن مسعود رضي الله عنه فما قال الشعبي رحمه الله ضعیف، نوره قصه په تفسیر کي ددې آیت "فانبتنا علیه شجرة من یقطین" به راسي ان شا الله تعالی.

فضائل یوم عاشوراً: (۱) خدای ﷻ د یونس ﷺ له قومه څخه د عاشوراً په ورځ عذاب پورته کړی (۲) یونس ﷺ چي ماهي قی کړی د عاشوراً ورځ وه، (۳) په روضة الفائق کي وایي چي د عاشوراً په ورځ د زمزم د څاه اوبه خدای ﷻ په خپلو تولو اوبو ګډوي، نو که څوک په ورځ د عاشوراً غسل وکړي په توله کال کي به خوفناکه مرض نه سي وریښ (۴) په عقد الدرر کي وایي چي: عاشوراً په ورځ د هر خیر د کار ثواب ډیر دی تر نورو ورځو من الصدقة والصلوة وذکر الله الی غیر ذالک. او د عاشوراً ورځ چي لسم د محرم د میاشتي ده د ماتم ورځ دي نه ځني جوړوي لکه شیعه ګان چي ځیګرونه تکوي او بغاري وهي بلکي خانونه په چړو وهي! او نه دي د عاشوراً ورځ د اختر ورځ ګرځوي لکه روافض چي خوشالي پکښي کوي، چي دا توله بدعت سیئه دي.

**وَلَوْشَآءَ رَبُّكَ**

او که اراده وکړي خدای ﷻ ستا یا محمد ﷺ یعني ددې چي توله من في الارض کافران دي مسلمانان سي.

**یوه سه:** چي دا مفعول محذوف د شا ؤ ودل علیه جواب "لو" وهو "لآمن آه"

**لَاٰمَنَ مَنْ فِى الْاَرْضِ كُلُّهُمْ جَمِيْعًا**

هر آئینه به ایمان راوړی وای تولو چي یو فرد به نه وای پاته سوی جمیعا تاکید ده کلهم دی من قبیل قوله تعالی ﴿فسجد الملائکة کلهم اجمعون﴾.

**درويش وايي:** چي علامه بغدادي" السيد محمود الآلوسي رحمه الله په تفسير روح المعاني كي وايي ص ۱۹۳ في تفسير هذه الاية" والجمهور على انه سبحانه تعالى لايشأ ايمان الكل لكونه مخالفا للحكمة چي پر هغه باندي اساس د شرع بنا دی" او ده ويلي دی چي دا آيت حجت دی پر معتزله وو چي دوی وايي چي خدای ﷻ مشيت او اراده د ايمان د ټولو څخه لري لكن ايمان نه دی راوړی مگر بعض كسانو او دوی وايي چي مشيت آلهي دوه قسمه دی يو تفويضي يعني چي تفويض وبندگانو ته كوي يعني كه په خپل اختيار ايمان را وړي او كه نه د دې مشيت څخه تخلف روا دی او بل قسري يعني جبراً بلااختيار من العبد او د دې مشيت څخه تخلف نه دی روا او دوی دا آيت پر مشيت قسری حمل كړی دی او داسي يې ترجمه كوي كه د خدای اراده سي وايمان قسراً او الجاءً د انس او جن لأمنوا كلهم لكنه سبحانه لم يشأ ذالک بل امرهم بالايمان وخلق فيهم اختيارا للايمان وضده اى الكفر وفوض اليهم ﴿فمن شأ فليمؤمن ومن شأ فليكفر﴾ انتهى مع الترجمه او روح البيان په ص ۸۹ په تفسير كي د دې آيت هم ورته بيان كړی دی او تفسير مظهري په ص ۵۹ كي هم موافق بيان كړی دی.

**سوال:** ستا خو صفحه واره حوالې نه وي عادت په دې آيت كي دي ولي صفحه واره حوالې وكړې؟

**جواب:** هو صحيح ده ستا خبره لكن ما د ډېرو ملايانو څخه اورېدلي دي او يا د هغو شاگردانو ماته ويلي دي چي دوی د دې آيت ترجمه داسي كوي چي كه خدای ﷻ په زوره مسلمانانه ولای خلگ نو به ټولو ايمان راوړی وای. ولي چي د خدای د مشيت څوک مانع نه سي كېدای" انتهى قول هولاً المفسرين للقرآن العظيم في شهر او شهرين" واربعين يوماً".

**درويش وايي:** چي دا يې ترجمه خو عين مذهب د معتزله وو دی كما مر آنفا" مقوله" نه هر كه سر بتراشد قلندري داند" انجير خوردن نه كار هر مرغيست.

أَفَأَنتَ تُكْرِهُ ٱلنَّاسَ حَتَّىٰ يَكُونُوا۟ مُؤْمِنِينَ ۝

آيا ته يا محمد ﷺ مجبوره كوې كافران حتى چي دوی ايمان راوړي يعني

خدای ﷻ مشیت د ایمان د دوی نه دی کړی "همزه لپاره د انکار دی" پر دغسې کار، ولي چي د خدای ﷻ اراده نه وي د هغه وجود محال دی فضل تر دې چي نه دي باعثه کوې هغه کافران چي خدای ﷻ اراده د ایمان د هغو نه لري.

**پوه سه:** چي علیه الصلوة والسلام ډېر حریص وو پر ایمان د ټولو کافرانو، نو خدای ﷻ علیه الصلوة والسلام په دې آیت کي دی ﷺ خبر کړی چي ایمان نه راوړي مګر هغه کسان چي په علم ازلي کي د خدای ﷻ دوی ته سعادت نوشته وي نه هغه کسان چي په علم ازلي کي دوی اشقیا وي، نو د هغو په شان کي ځګر خونه مه ګرځه ﴿ما شا الله کان وما لم یشا لم یکن﴾ نو په دې آیت کي یو قسم تسلي و علیه الصلوة والسلام ته ورکوي.

**درویش وایي:** چي سید شریف رحمه الله په شرح کي د مفتاح وایې چي مقصود د دې قوله د خدای ﷻ ﴿افانت تکره الناس﴾ دا دي انکار دی د صدور څخه د دغه فعل چي اکراه ده د مخاطب څخه چي علیه الصلوة والسلام دی" لا انکار کونه ای الرسول ﷺ هو الفاعل مع تقرر اصل الفعل چي اکراه ده.

**پوه سه:** چي حسین کاشفي رحمه الله په تفسیر حسیني کي وایې" این آیت منسوخ است بآیت قتال انتهی لکن په تفسیر تبیان کي وایې چي صحیح دا ده، چي منسوخ نه دی ولي چي اکراه پر ایمان خو نه ده ممکنه لان الایمان عمل القلب دون اللسان حتی یصح الاکراه علیه.

وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ اَنْ تُؤْمِنَ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ

نه ده ثابت او مستقیم هېڅ نفس لره (یعني چي نکره په سیاق کي د نفي راغلې ده چي لیمان د راوړي په هېڅ حال کي د احوالو) نو استثنا مفرغه ده) مګر په حال کي د اذن الله (یعني ارادته تعالی ومشیته) یعني نو ته یا رسول الله ډېر اهتمام په شان کي د ایمان د ټولو کارفانو مه کوه" حافظ شیرازي رحمه الله چه خوش فرموده درین مضمون:

رضا بداده بده وزجبین ګره بکشای ..... که برمن وتو دراختیار نه کشاده است

یعني اختیار دردست خدا است ماوشما را اختیار آنچه میخواهم نه کشاده است

وَيَجْعَلُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِينَ لَا يَعْقِلُونَ

او خدای ﷻ گرځوي يعني مسلطوي كفر.

**بوه سه**: چي رجس مرداری، ته وايي نو چونكه كفر لويه مرداري قلبي وه، نو يي تعبير په رجس ځندي وكړی) پر هغه كسانو چي پوهنه نه لري چي حق او باطل سره جلا كړي او نظر فكر په اياتو كي د خدای او معجزاتو كي نه وهي تا چي هدايت دي پيدا كړي نو زړونه يي تر طبع او رين لاندي راغلي دي" كريمه (طبع الله على قلوبهم) كريمه (كلا بل ران على قلوبهم).

قُلِ انْظُرُوا مَاذَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

ته ورته ووايه يا محمد ﷺ كفارو ته وګورئ په نظر د عبرت اودقت سره چي څه عجائب مخلوقات خدای پيدا كړي دي په اسمانو كي يعني لمر. سپوږمی، ستوري او حركات د دوی او په مځكه كي من الجبال والبحار والاشجار والنباتات والمعادن والحيوانات الناطقه وغيرها على صور مختلفة وخواص علحدة، والعيون والزلازل الدالة على وجود الخالق لها متوحد بجلال ذاته وكمال صفاته.

قال السيد شيرازي قدس سره

برگ درختان سبز در نظر هوشيار ........هر وقت دفتريست معرفت كردگار

وَمَا تُغْنِي الْاٰيٰتُ وَالنُّذُرُ عَنْ قَوْمٍ لَّا يُؤْمِنُوْنَ

او فائده نه كوي آيات يعني آيات القرآن يا معجزات" او رسولان جمع د نذير ده چي دوی د عذاب څخه د خدای بيره وي هغه قوم ته چي دوی ايمان نه راوړي په علم كي د خدای ﷻ، نو پر دې تقدير كلمه د ما نافيه ده او بعض مفسرين وايي چي كلمه د ما د پاره د استفهام انكاري ده والمآل واحد كما لا يخفى.

فَهَلْ يَنْتَظِرُوْنَ اِلَّا مِثْلَ اَيَّامِ الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِهِمْ

نو انتظار نه لري كفار د مكې چي ايمان نه راوړي، مګر نه د مثل د واقعاتو يعني د عذابو (نو ايام په معنى د وقائعو دی) د هغو كسانو د مصرين پر كفر چي تير سوي تر دوی د مخه يعني كفار د امم ماضيه وو" لكه فرعون" نمرود" وغيرهما.

قُلْ فَانْتَظِرُوٓا إِنِّي مَعَكُم مِّنَ الْمُنتَظِرِينَ ﴿١٠٢﴾

تاسې انتظار وکړئ يا کفار مکه، زه هم ستاسي سره د انتظار کونکو څخه يم ستاسي د عذاب " وقد وقع العذاب عليهم في بدر" والعاقبة للمتقين كما هو العادة الالهية في اعلاء الدين" في كل وقت وزمان وحين والحمد لله رب العالمين.

ثُمَّ نُنَجِّي رُسُلَنَا وَالَّذِينَ آمَنُوا كَذَٰلِكَ ۚ

**پوه سه**: چي ننجي آه حکايت د حال ماضيه دی والمعنى نجينا. او ثم عطف دی پر محذوف چي مثل ايام الاولين دلالت پر کوي" كانه قيل نهلك الامم ثم ننجي رسلنا آه "كذالك" اى مثل ذالک الانجا.

**فائده**: معطوف عليه محذوف هم حکايت د حال ماضيه دی والمراد اهلکنا ومعنى الاية وروسته تر هلاک د امم ماضيه وو موږ نجات ورکوو يعني عند نزول العذاب ورسلانو زموږ او هغه کسانو ته چي ايمان يې راوړی وي.

حَقًّا عَلَيْنَا نُنجِ الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٠٣﴾

حق دی پر موږ باندي چي نجاة به ورکوو مومنانو ته.

**پوه سه**: چي رسل يې دلته نه کړه ذكر لعدم الحاجة اليه لان نجاة الرسل معلوم من انجاء المؤمنين بالطريق الاولى.

**فائده**: حقا منصوب دی په فعل مقدر سره اى حق حقا اودا جمله معترضه ده په مابين کي د فعل چي ننجي دی او د معمول د هغه چي كذالک دی يعني مفعول مطلق دی.

قُلْ يَٰٓأَيُّهَا النَّاسُ إِن كُنتُمْ فِي شَكٍّ مِّن دِينِي

ته ووايه اى خلکو يعني اهل مکه من المشركين. که په شک کي زما د دين څخه ياست چي دا دين به صحيح وي او که نه يعني توحيد ولي دوی توحيد او نبوة د انسان بعيد باله او منکره وه لکن چي معجزات باهرات د اشرف البريات ﷺ به يې وليدې حيران به سوه او په زړو کي انکار په شک بدل سو.

فَلَآ اَعۡبُدُ الَّذِيۡنَ تَعۡبُدُوۡنَ مِنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ

زه خو عبادت نه کوم د هغو شیانو چي تاسي يې عبادت کوئ ماسوی د خدای ﷻ څخه چي عبارت د بتانو څخه دي چي دوی به په خپلو لاسو تراشل او جوړول به يې او وروسته به يې سجدې ورته کولې او حاجات به يې څخه دي غوښتل: ع" بدین عقل و دانش ببايد گريست.

وَلٰكِنۡ اَعۡبُدُ اللّٰهَ الَّذِىۡ يَتَوَفّٰٮكُمۡ ۖۚ وَاُمِرۡتُ اَنۡ اَكُوۡنَ مِنَ الۡمُؤۡمِنِيۡنَ ۙ۝۱۰۴

لکن زه عبادت کوم د هغه خدای ﷻ چي تاسي به وژني يعني بيا به مو ژوندي کوي او جزا د کفر به درکوي.

**سوال:** وفات يې ذکر کړی او وروسته يې حيوة ذکر کړی لان التوفی متيقن عندهم واما الحيوة بعد الموت فهم منکرون له وکذا ما يترتب على الحيوة بعد البعث من العذاب فی النار" او زه امر کړه سوې يم يعني د جانب د خدای ﷻ چي زه وګرځم د مؤمنينو څخه بتوحيد الله وبالبعث بعد الموت" چي عقل هم دلالت پر کوي او په نقل د ټولو کتب سماويه وو هم ثابت دي.

**فائده:** جزا د ان کنتم آه محذوفه او فلا اعبد آه په ځای کي د جزا راوړی دی والتقدير" ان کنتم في شک فازيلو ذالک الشک بالتفکر في ديني وهو هذا لا اعبد الحجارة المخلوقة لانها لا تنفع ولا تضر واعبد الله الخالق القادر النافع الضار.

وَاَنۡ اَقِمۡ وَجۡهَكَ لِلدِّيۡنِ حَنِيۡفًا ۚ

دا جمله عطف ده پر "ان اکون" وترجمة الآية: زه امر سوی يم چي زه پر ايمان يم او پر استقامت پر دين اسلام او ادا د فرائض دينيه به کوم او د ګنهو څخه به ځان ساتم" او حنيفا حال دی د دينه څخه ومعنی الحنيف المائل من الاديان الباطلة کالشرک الى الدين الحق وهو الاسلام.

وَلَا تَكُوۡنَنَّ مِنَ الۡمُشۡرِكِيۡنَ ۝۱۰۵

عطف دی پر اقم من عطف الانشا بالنهي على الانشا بالامر والمعنی زه امر سوی يم په دې سره چي د مشرکين د ډلې څخه به نه ګرځم" کذا قال البيضاوي

رحمه الله وتبعه المظهري رحمه الله، او ابن الشيخ رحمه الله وايي چي "ان اقم وجهک کنایه ده د توجه څخه د نفس بالکلیة الی عبادة الله تعالی والاعراض عما سواه ولي یو څوک چي ویو شي ته گوري چي بنې ووینم نو دي خپل مخ مقابل وهغه ته وگرځوي او یمینا او شمالا دي نه گوري" انتهی او په تفسیر کواشي کي وايي والمعنی کن مؤمنا واخلص عملک لله آه " بیت : عبادت باخلاص نیت نکوست وگر نه چه آید زبي مغز پوست.

وَلَا تَدْعُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُكَ وَلَا يَضُرُّكَ

او ته عبادت مه کوه د هغو شیانو چي بتان دي ماسوی د خدای جل جلاله څخه چي نه یې نفع دررسېږي که یې ته عبادت وکړې او نه یې ضرر دررسېږي که یې ته عبادت نه وکړې" لانها جمادات لا قدرت لها علی شئ من النفع والضرر لاحد.

**پوه سه:** چي دا جمله عطف تفسیر د لقوله ولا تکونن آه.

فَاِنْ فَعَلْتَ فَاِنَّكَ اِذًا مِّنَ الظّٰلِمِيْنَ

او که ته بالفرض والتقدیر داغسي وکړې یعني عبادت د ما لاینفعک ولا یضرک وکړې، نو ته په دغه وقت د ظالمانو د ډلي څخه یې، ولي چي ظلم وضع د شي ده لکه عبادت بیله ځېله ځایه چي خدای جل جلاله وو.

**پوه سه:** چي انک اذا آه جواب او جزا د شرط دی یعني ان فعلت آه.

**فائده:** ان شرطیه په محالاتو شیانو کي هم استعمال روا دی نحو ان کان زید حمارا فهو ناهق" فلا تعجب لاستعماله فی الممکنات البعیدة غایة البعد القریب الی الاستحالة فافهم" والفائدة في خطابه صلی الله علیه وسلم بذالک تحذیر الناس عن الشرک" اعلم ان الریا اخت الشرک الجلي وللاخت نصف نصیب الاخ فللاخ وهو الشرک الجلي حرمان الثواب والتابید فی النار وللاخت وهی الریا الحرمات من الثواب في افعال الخیر فتدبر.

وَاِنْ يَّمْسَسْكَ اللّٰهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهٗۤ اِلَّا هُوَ ۚ وَاِنْ يُّرِدْكَ بِخَيْرٍ فَلَا رَآدَّ لِفَضْلِهٖ

که تاته ورسوي خدای جل جلاله یو ضرر لکه مرض او فقر او یا بلا نو منع او دفع کونکی نسته د هغه خیر بېله خدایه، او که تاته اراده وکړي خدای جل جلاله د خیر من

خیرات الدنیا والآخرة. نو ردونکی د خیر د فضل د خدای ﷻ هیڅ څوک نسي کېدای فضلا عن الاصنام التي یحذرونک المشرکون بها.

**پوه سه:** چي د خیر سره یې لفظ فضل ووایه اشارة ودې ته ده چي د خیر رسول د خدای ﷻ تفضل او احسان دی هیڅ څوک پر خدای ﷻ د هیڅ شي حق نه لري.

**فائده:** د ضر سره یې لفظ د مس ووایه چي ادنٰی اصابت ته وایي او د خیر سره یې بردک ووایه د پاره د دې چي اصابة الضر قلیل بالنسبة الی الخیر.

يُصِيبُ بِهِۦ مَن يَشَآءُ مِنۡ عِبَادِهِۦۚ وَهُوَ ٱلۡغَفُورُ ٱلرَّحِيمُ

رسول کوي خدای ﷻ په هر واحد د شر او خیر (یعني ضمیر د به راجع دی وشر او خیر ته په تاویل د کل واحد ولهذا افرد الضمیر في به) وهغه چاته چي د خدای ﷻ اراده ورته وسي د بندګانو څخه د خدای ﷻ او خدای بخښونکی د ګنهو دی یعني و ګناه ګارانو ته د بندګانو او مهربانه دی چي فورا یې په ګناه نه نسي بلکه مهلت د توبې ورکوي او پې توبې هم من یشأ بخښي.

**پوه سه:** چي باید بندګان اسباب د رحمت د خدای ﷻ په ځان کي پیدا کړي وهي الطاعات" او په سبب د عصیان نا امیده د مغفرت څخه د خدای ﷻ نسي لکن د عذاب څخه دي بېرېږي وهو المعنی" بقوله الایمان بین الخوف والرجا" ابو نعیم د علي ﷺ څخه داسي روابت کړی دی، چي خدای ﷻ وحي وکړې ویو نبي ته د انبیاوو د بني اسرائیلو چي ته ووایه واهل طاعت ته ستا د امت چي تاسي په خپل عبادت مه غره کېږي او تکیه پر خپلو طاعاتو مه کوئ زه نه دروم یو بنده و حساب ته د د ورځي د قیامت چي زما اراده و عذاب ورته وي مګر نه زه یې په عذابوم. او وه وایه وه اهل معصیت ته ستا د امت چي تاسي مه ناامیده کېږئ په سبب د معصیت زما د رحمت څخه فاني اغفر الذنوب العظیمة ولا ابالي یعني ان شئت. نو ددې آیت نتیجه داده چي خدای ﷻ قطع کړه لار د رغبت او رهبت الا الیه.

قُلۡ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ قَدۡ جَآءَكُمُ ٱلۡحَقُّ مِن رَّبِّكُمۡۖ

ته ووایه ای محمد ﷺ ای اهل مکة ته، په تحقیق تاسي ته راغلی علم حق چي د واقع سره برابر دی یعني چي علم په توحید د خدای ﷻ دی او پر صفاتو د علم او

قدرت او خلق او اراده وغير ذالک دی او علم پر احوال د مبدأ او معاً ددې په قرآن کې چې پر ژبه د محمد ﷺ دی "من ربكم" له جانبه د تربيه كوونكي ستاسي چې الله ﷻ دی. نو تاسي لره په ورځ د قيامت عذر د جهل نه سي ويلای او نه سئ ويلای هلا ارسلت الينا رسولاً آه. او حقيقت د قرآن په اعجازو د قرآن ثابت دی. كريمه: ان كنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا فأتوا بسورة من مثله الى اخير الآية"

فَمَنِ اهْتَدٰى فَاِنَّمَا يَهْتَدِيْ لِنَفْسِهٖ ۚ

كه څوک لار پيدا کړي يعني قرآن كريم نازل من عند الله وبولي او رسول كريم ﷺ په رسالت ومني نو د هغه سري نفع او هدايت في الدنيا والآخرة وده ته راجع ده په دنيا معصوم الدم والمال وي او په اخرت كې به محفوظ من النار وي.

وَمَنْ ضَلَّ فَاِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا ۚ وَمَآ اَنَا عَلَيْكُمْ بِوَكِيْلٍ ؕ

او كه څوک گمراه سي او د قرآن او د عليه الصلوة والسلام له رسالت څخه انكار وكړي عناداً نو د ضلال ضرر وده ته راجع دی په دنيا او اخرت كي او نه يم زه پر تاسي وكيل د خدای ﷻ له خوا څخه يعني ستاسي د عذاب وغيره كار ماته خدای ﷻ نه دی سپارلی.

وَاتَّبِعْ مَا يُوْحٰٓى اِلَيْكَ وَاصْبِرْ حَتّٰى يَحْكُمَ اللّٰهُ ۚۖ وَهُوَ خَيْرُ الْحٰكِمِيْنَ ۠

او ته متابعت كوه يا محمد د هغه قرآن چي تا ته وحي كړی سوی دی يعني من عند الله يعني امتثال د اوامرو د قرآن كوه او له منهياتو څخه يې ځان ساته او صبر كوه پر ازار د مشركانو د مكې قولاً وفعلاً تر هغو چي حكم كوي خدای ﷻ تا ته د قتال د كفارو او له بعضو كافرانو څخه جزيه اخستل او خدای ﷻ خير د حاكمانو دی اذ لا خطافي حكمه ولي چي خدای ﷻ خبر دی په پټو كارو د بندگانو لكه په لڅو كارو ددوی.

سورة هود مكية وهي مائة وثلث وعشرون آية وعشر ركوعات بسم الله الرحمن الرحيم

سورت هود يو سل درويشت آيته دی. او په مکه کي نازل سوی دی الا قوله اقم الصلوة طرفی النهار الآية چي دا په مدينه کي نازل سوی دی.

الٓرٰ كِتٰبٌ اُحْكِمَتْ اٰيٰتُهٗ

**بوه سه:** چي "الٓرٰ" لکه نور مقطعات قرآنيه "الٓمٓ، الٓمٓصٓ طٰهٰ" وغيرها دی يعني له متشابهاتو قرآنيه څخه دی التي لايعلم تأويلها الا الله كما هو مذهب السلف مونږ به وايو والله اعلم بمراده بذالك. نو پر دې تقدير كتاب خبر دی د مبتدأ محذوفي ای هذا كتاب او هذا اشاره وقرآن ته ده وان لم ينته الى اتمام بعد لان لفظ القرآن يطلق على الكل والبعض كلفظ دی "الكتاب" او خليل او سيبويه او بعض نور علماء رحمهم الله وايي چي "الٓمٓ" ددغه سورت نوم دی. او سدي او كلبي وايي چي نوم د قرآن دی. نو پر دې تقدير "الٓرٰ" مرفوع محلاً مبتدأ ده كتاب يې خبر دی. او لفظ د كتاب مصدر دی په معنی د مفعول ای مكتوب ای ما من شانه ان يكتب في المصاحف او مكتوب في اللوح المحفوظ "احكمت آياته" صفت د كتاب دی والمعنى قرآن محكم كړه سوی دی نه په لفظ نه په معنی كي نقصان سته او يا په حجج او دلائلو سره د اعجاز محكم كړه سوی دی او كه "الٓرٰ" نوم د سورت سي نو يې معنی داده چي دا سورت له نسخ څخه محفوظ دی ولي چي مفسرين رحمهم الله وايي چي په سورت هود كي هيڅ حكم منسوخ نسته.

ثُمَّ فُصِّلَتْ مِنْ لَّدُنْ حَكِيْمٍ خَبِيْرٍ ۝۱

يعني آيات يې بيان كړه سوی دی په عقائدو او په احكامو او په مواعظو او اخبارو، او روح البيان او مظهري او روح المعاني وايي زينت آياته بالفوائد كما تزين القلائد (غاړ گی) بالفرائد (په دریکدانه سره جمع د فريدة ده لانفرادها في الصدف او في ظرف الجوهري) له جانبه څخه د هغه خدای ﷻ دی چي په هر شي حكمت او په هر شي خبر او علم لري.

**يوه سه:** چي "من لدن آه" صفت ده کتاب دی یا خبر بعد الخبر د هذا محذوف دی او یا متعلق په احکمت یا په فصلت پوري دی.

## أَلَّا تَعْبُدُوٓا۟ إِلَّا ٱللَّهَ

په تقدیر د لام ای لئلا تعبدوا چي تاسي عبادت ونه کړئ د غیر د خدای او یا په تقدیر د با ای بان لاتعبدوا. والمعنی حاکم بان لاتعبدوا الا الله او یا په تقدیر د في ظرفیه ای في ذالک الکتاب ان لا تعبدوا الا الله. او بعض مفسران وایي چي ان تعبدوا منصوب دی محلاً علی الاغرا یعني باعثه کول پر یو کار. یعني الزموا ان لاتعبدوا الا الله فتامل والکل صحیح والمآل الکل واحد کما لا یخفی علی اولی النهی.

## إِنَّنِى لَكُم مِّنْهُ نَذِيرٌ وَبَشِيرٌ

په تحقیق زه تاسي لره د خدای ﷻ له خوا څخه بېرونکي یم په عذاب سره پر شرک او عصیان، او زیری کوونکی یم په ثواب او جنت سره وه اهل ایمان او توحید او طاعت ته.

**يوه سه:** چي نذیر یې تر بشیر دمخه کړی لکثرة اهل الانذار من اهل البشارة في اکثر الازمنة، او لان التخلیة بالخا المعجمة مقدمة من التحلیة بالحا المهملة کما هو القانون.

## وَأَنِ ٱسْتَغْفِرُوا۟ رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوبُوٓا۟ إِلَيْهِ

**يوه سه:** چي دا جمله عطف ده پر "الا تعبدوا" باندي یعني طلب د بخښني وکړئ له خدای ﷻ څخه د کړیو ګنهو څخه، بیا رجوع وکړئ په عبادت سره وخدای ﷻ ته. او فرا نحوي وایي چي ثم په معنی د واو دی او توبه او استغفار سره لازم او ملزوم دی، او حدادي په خپل تفسیر کي وایي چي استغفار توبه نه ده باجماع اهل الملة مالم یقل معه تبت واسئل ولا اعود الیه ابداً فاغفرلي یارب.

## يُمَتِّعْكُم مَّتَـٰعًا حَسَنًا إِلَىٰٓ أَجَلٍ مُّسَمًّى

**يوه سه:** چي "متاعاً" مفعول مطلق دی د "یمتعکم" زوائد حروف یې څني حذف کړي دي لان یمتعکم من باب التفعیل کما في قوله انبته نباتاً حسناً والمعنی که

تاسي دغسي وکړئ يعني استغفروا الخ توبه خدای ﷻ ته وکارئ تاسي ته به عيش مرضي درکړي چي ستاسي څخه به هيڅ د خوشالۍ شی وه نه سپموي. او د کدوراتو څخه د دنيا به شي پر تاسي رانه ولي تر اجل مسمی پوري د مرګ.

**درويش وايي:** چي دلته دوه سوالونه دي. اول دا چي په حديث شريف کي راغلي دي "الدنيا سجن المؤمن وجنة الكافر" وقوله عليه الصلوٰة والسلام اشد الناس بلاً الانبياٗ ثم الاولياٗ ثم الامثل فالامثل ونحوهما يدل على ان نصيب العبد المطيع عدم الراحة في الدنيا فكيف يكون في امن وسعة الى وقت الموت؟

والجواب: هغه څوک چي زړه يي مربوط په خدای ﷻ پوري وي او په قضاٗ د خدای ﷻ په حق کي دده راضي وي د هغه زړه به په راحت کي وي که څه هم بعض شدائد فقر او مسکنت او مرض وغير ذالک ورته متوجه وي لان ضرب الحبيب زبيب مقوله مسلمة عند اهل العقل. او د هر چا زړه چي په اسبابو پوري د دنيا اخته وي هغه همېشه بېرېږي چي محبوبه دنيا راڅخه ولاړه نه سي او مضطرب وي. او بل ځواب دادی چي دنيا چي سجن المؤمن ګڼل سوې ده نظر وهغو نعمتو ته ده چي خدای پاک يې په اخرت کي مؤمن ته ورکوي من الجنة ونعيمها والغلمان وحورها.

**درويش وايي:** چي مؤمن چي حال د عيش دنيوي د آنحضرت ﷺ په غور مطالعه کړي نو په دې جوابو به ښه پوه سي. والثاني چي اجل چي خدای ﷻ مقيد په مسمی سره کړی ددې څخه داسي فهمېږي چي بل نابيره هم سته لکه کعبي چي وايي چي مقتول لره دوه اجله وي يو اجل د قتل دی او بل اجل د موت دی او کعبي وايي چي مقتول که چا نه وای وژلی تر اجل الموت پوري به ځو کاله نور ژوندی وای. نو دا قول د کعبي رحمه الله صحيح دی او که څرنګه؟

الجواب: اجل يو دی په نيز د اهل السنة والجماعة او مقتول مات باجله المسمی وتحقيق الجواب چي ارزاق او اعمار که څه هم متعلق په اعمالو او طاعاتو سره دی كالاستغفار والتوبة في هذه الآية. وكصلة الرحم في قوله ﷺ الرحم تزيد في العمر" لكنها مسماة ومعلومة بالاضافة الى كل احد بناء على علمه تعالى في

الازل باشتغال العبد بما يزيد في العمر من القرب والطاعات والاستغفار وصلة الرحم فلا يثبت تعدد الاجل كذا قال غير واحد من المفسرين المحققين.

وَيُؤْتِ كُلَّ ذِي فَضْلٍ فَضْلَهُ

او ورکوي خدای پاک هر خاوند ته فضل په عبادت کي تر بل چا ثواب د فضل دده په دنیا کي مزید توفیق ورکوي او آرام د زړه او په ذکر کي د خدای ﷻ او په طاعت کي لذت او خوشالي ويني كما هو مجرب عند اولياء الله الكرام رحمهم الله

بر فلک برتر بود اسرار او .......... شیئا لله شیئا لله کار او

او په اخرت کي بكثرة الثواب مدارج القرب الى الله سبحانه وتعالى.

وَإِن تَوَلَّوْا فَإِنِّي أَخَافُ عَلَيْكُمْ عَذَابَ يَوْمٍ كَبِيرٍ ۝

**پوه سه:** چي اصل د "تولوا" تتولوا ؤ، يوه تا يې ځني حذف کړه. والمعنى که تاسي اعراض وکړئ د توحید او د عبادت د خدای ﷻ نو زه بېرېږم پر تاسي باندي له عذاب څخه د لوی ورځي يعني يوم القيامة الذي طولها خمسون الف سنة كما ورد في الاحاديث الصحيحة.

إِلَى اللَّهِ مَرْجِعُكُمْ ۖ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ۝

خدای ﷻ ته ده خاصه (نو تقديم د جار او مجرور لپاره د حصر دی) رجوع ستاسي په ټولو کارو د دنیا او د آخرت (نو مرجع مصدر میمي دی) او خدای پاک پر هر شي قادر دی من امور الدنيا والآخرة من الثواب والعذاب.

أَلَا إِنَّهُمْ يَثْنُونَ صُدُورَهُمْ لِيَسْتَخْفُوا مِنْهُ

آگاه اوسه چي مؤمنان پټوي خپل ځيګر چي ځان پټ کړي له خدای ﷻ څخه.

**پوه سه:** چي دا تفسیر بنا دی علی مارواه البخاري رحمه الله عن ابن عباس رضي الله عنهما چي بعض خلګ د مسلمانانو څخه به شرمېدله چي اودس مات کړي او ډېره يې د اسمان وخوا ته لڅه وي، او داغه رنګه به دوی شرمېدله چي د مابنو سره جماع کوي شا يې لڅه وي د اسمان وخوا ته، نو به يې ځانونه حتى الممکن سره پېچله فنزل هذه الآية فيهم، او له ډېرو محدثينو څخه دا روايت راغلی دی لکه ابن

جریر ابن المنذر ابن ابي حاتم وابو الشيخ وابن مردوية او بغوي وايي چي عبدالله بن شداد رضي الله عنه وايي چي دا آيت په بعض منافقانو کي نازل سوی دی، چي دوی به د علیه الصلوٰة والسلام په حضور کي تېرېدله ځيګر او شا به يې کښته کړه او سر به يې کښته ونځراوه او پر سر او مخ به يې څادر وغيره واچاوه چي علیه الصلوٰة والسلام مو وه نه ويني، لکن پر دې شان نزول دا سوال واردېږي چي دا آيت خو مکي دی او انفاق خو په مدينه کي پيدا سوی دی، او بل پر دې شان نزول خو ضمير وه نبي ﷺ ته راجع کېږي او سياق د آيت پر دې دلالت کوي چي ضمير د منه راجع وه خدای ﷻ ته دی کما لا يخفى.

أَلَآ إِنَّهُمۡ يَسۡتَغۡشُونَ ثِيَابَهُمۡ يَعۡلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعۡلِنُونَۚ إِنَّهُۥ عَلِيمُۢ بِذَاتِ ٱلصُّدُورِ ۝

آګاه او خبر اوسئ چي دوی هغه وخت چي راپېچي خپلي جامې (يعني پر خپلو ځانو باندي) خدای ﷻ خبر دی په هغه څه چي دوی يې پټوي او هغه شی چي دوی يې ښکاره کوي، په تحقيق خدای ﷻ خبر دی په هغه چي ددوی په زړو کي دي اذ لا يخفى منه خافية، او روح البيان يې داسي ترجمه کړې ده، خبر اوسئ اې مؤمنانو په کفارو د مکې (يعني ضمير د انهم راجع وکفارو ته د مکې دی) او د "يثنون آه" ترجمه يې داسي کړې ده چي دوی خپلي سيني او زړونه راپېچي پر خپل ځانو او اعراض له حق څخه او پر عداوت د نبي ﷺ يعني دغه مذکوره شيان ددوی په زړو او په سينو کي پټ پراته دي، د "يستخفوا منه" ترجمه يې داسي کړې ده چي دوی خپل ما في الصدور د خدای ﷻ څخه پټ کړي ولي چي دوی جاهلان دي په ما لا يجوز على الله من عدم العلم بما في الصدور.

**درويش وايي:** چي پر ترجمه د روح البيان تطبيق د تولـه آيت ډېر مشکل دی کما لا يخفى فتدبر هداک الله. خو په هر صورت هغه تفسير چي په روايت د بخاري رحمه الله ثابت دی لکه درويش چي اولاً ذکر کړی ډېر په زړه پوري او له هر اشکاله خالي دی، والله اعلم بمراده في کتابه.

**درويش وايي:** چي تفسير د يوولسم جزء د قرآن کريم په توفيق د رب رحيم پر دوولس بجې د ورځي تقريباً د پنجشنبې په ورځ، اوله د مياشتي د صفري ينا

اخيره د میاشتي د محرم په سنه ۱۴۲۹ هـ ق پای ته ورسېد له.

الحمد لله على توفيقه وانعامه على هذا العبد الضعيف والصلوة والسلام على خير خليقته محمد وعلى آله وصحبه اخيار امته، اللهم وفقني لتفسير القرآن العزيز الى اخيره بالخير والصحة والعافية واجعله لي خيراً باقياً الى يوم القيامة بجاه نبيک المصطفى وحبيبک المجتبى.

غرض نقشيست كزما ياد ماند ........... كه هستى رانمى بينم بقائى
مگر صاحبدلى روزى زرحمت ........... كند درحق اين مسكين دعائى
ع ........ ما نيز حاضر ميشوم تفسير قرآن دربغل.

اظهار الحال في ضمن المقال:

لقد لسعت حية الهوى كبدى ......... فلا طبيب لها ولا راقى
الا الحبيب الذي شغفت به ......... فعنده رقيتي وترياقي

"لسع" د مار خوړلو ته وايي او اضافت د حية الهوى اضافت د مشبه به دی ومشبه ته، يعني هغه عشق محمدي يا الهي چي لكه مار دی چي سړی وچيچي ناقراره يې كړي، نو نه طبيب سته دغه لسع لره د عشق او نه راقي يعني دم كونكى، مگر نه هغه دوست حقيقي محمد ﷺ او يا رب العزت ﷻ، ولي په نېز د هغه حبيب حقيقي هم زما د درد د لسع دم سته او هم ترياق (بكسر التا چي يو معجون دی چي د زهرو دوا ده) والمراد به الوصال.

اللهم ارزقني حبک وحب حبيبک وحب من يحبک وحب عمل يقربني اليک آمين

افاقها گرديده ام مهر تبان (اى المحبوبان) ورزيده ام
بسيار خوبان ديده ام اما تو چيزى ديگرى

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا
سكين او pdf سو. د دعا محتاج احمدي!
واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹



## الجزء الثاني عشر

وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ

# تيسير الباري حنفي

حضرت مولانا محمد عبد الله الابري

الكندهاري الحنفي النقشبندي

مكتبة القراءة والتجويد

كاسي روډ كوئته بلوچستان

وه تفسير ته د دوولسم جزء اماده سوم.. د توفيق د خداى په طمع استاده سوم
د ماپښين درې بجې د شنبې د ورځي د صفر الخير اوله نېټه سنه ۱۴۲۹ هـ
اللهم تممه بالخير والعافية والصحة والسلامة.

## وَمَا مِن دَآبَّةٍ فِي الْأَرْضِ إِلَّا عَلَى اللَّهِ رِزْقُهَا

نسته يوه دابه (ځاروى) په مځکه كې. مګر پر خداى ﷻ د هغو رزق دی.
كريمه: هو الرزاق ذو القوة آه" له رزق ځخه مراد غذاً مايكفى د هر حيوان ده.
**پوه سه**: چې كلمه د "ما" نافيه ده او كلمه د "من" لپاره د استغراق د نفي دى، او
لفظ د "دابة" عام دى هر حيوان لره چې محتاج وه رزق ته وي كه لوى حيوان وي
لكه فيل، او كه كوچني وي لكه سور كى مېږى، او كه ذكر وي او كه انثى، او كه
سالم وي او كه معيوب، كه مرغه وي كه بل حيوان.
**سوال**: مرغان خو په هوا كې ګرځي، نو په مافي الارض كې ولې داخل سوه؟
**ځواب**: مرغان هم په بعضي حالاتو كې پر مځكه ګرځي كما لا يخفى.
**پوښتنه**: كلمه د "على" خو لپاره د وجوب ده ولا وجوب عليه تعالى؟
**ځواب**: په تفسير تبيان كې وايي هو ايجاب كرم لا وجوب حق انتهى لانه لا حق
للمخلوق على الخالق روح البيان، امام فخر الدين الرازي رحمه الله په تفسير كبير كې
وايي چې رزق واجب دى په اعتبار د فضل او احسان، په دې معنا چې خداى پاک پر
خپل او احسان باقي دى لكن چونكه خداى ﷻ وعده كړې ده او خداى پاک له
خپلې وعدې ځخه مخالفت نه كوي ځكه يې په صورت د وجوب راوړه، فائده د دې
تعبير داده چې هر بنده مطمئن سي پر وصول د رزق او بندګان باعثه كوي پر
توكل باندي انتهى.
**پوه سه**: چې توكل منافي د مباشرت سره د اسبابو نه دى:
ع...... كسب كن پس تكيه بر جبار كن.
په صحيح حديث كي راغلي دي چي يو سړى له لېري ځاى ځخه عليه الصلوٰة
والسلام ته راغلى، نو عليه الصلوٰة والسلام پوښتنه ځني وكړه چي پر ځه شي

راغلي؟ هغه ورته وویل پر اوښ، علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل چي اوښ دي څه کړی هغه ورته وویل چي پر توکل د خدای ﷻ مي خوشي کړی. علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل "اعقل وتوکل" څنګونه یې وتړه او توکل وکړه.

**پوښتنه**: ځیني حیوانات له لوږي مړه سي؟

**ځواب**: خدای ﷻ یې رزق تر دغه وخته پوري تاکلی وي. په حدیث نبوي کي راغلي دي چي روایت یې روح المعاني راوړی دی داسي راغلي دي "لن تموت نفس حتی تستکمل رزقها واجلها الحدیث" او په تفسیر بحر العلوم کي وایي چي "[illegible] د [illegible] جوب له دي سببه استعمال سو چي تفضل د خدای ﷻ په قرار د وعدي د خدای ﷻ له تفضل څخه وه وجوب ته ورسېدی کنذور العباد انتهی.

په مناسبت د تفسیر د دوولسم جزء درویش وایي:

که څه هم اجل زما رانژدي کېږي ... خو تفسیر په فضل د خدای پای ته رسېږي
عبد [illegible] مرګه نه بېرېږي ... چي تفسیر پای ته ورسېږي
من نیز حاضر میشوم تفسیر قرآن دربغل

وَيَعْلَمُ مُسْتَقَرَّهَا وَمُسْتَوْدَعَهَا

**پوه سه**: چي ددې دوو لفظو ضمیر مؤنث راجع دی وه "دابة" ته. لکن بغوي په نقل د ابن عباس رضی الله عنهما وایي چي د مستقر معنی ځای د قرار دی چي هره دابه وه هغه ته رجوع کوي او په ځای کي قرار نسي لیلاً ونهاراً او مستودع هغه ځای دی چي دی پکښي دفن کېږي.

**درویش وایي**: چي پر دې تفسیر مستقر او مستودع په انسان پوري خاص دی که څه هم لفظ د "دابة" عام دی، او ابن مسعود رضی الله عنه وایي چي مستقر رحمونه د مندو دي او مستودع ملاوي د پلرو دي.

**درویش وایي**: چي دا تفسیر تر اول تفسیر عام دی لکن په هغو دوابو پوري خاص دی چي نطفه یې د مور په رحم کي وي، یعني که له هګۍ څخه زیږېدی هغه ته نه دی شامل، او په بل روایت کي د ابن عباس رضی الله عنهما راغلي دي چي مستقر یې جنت یا دوږخ دی او مستودع یې قبر دی.

**درويش وايي:** چي دا هم په انسانانو پوري خاص دی. او روح المعاني او روح البيان هم ورته تفسيرونه کړي دي، لکن روح المعاني وايي چي هغه تفسير چي د مستودع معنا يې په ځای د دفن سره کړې ده الا على الله رزقها سره مناسبت نه لري، ولې چې دفن سي نو رزق يې ختم سو؟ ددې ځواب دا دی چي په صحيح حديث کي راغلي دي "القبر روضة من رياض الجنة او حفرة من حفران نيران" فتدبر غاية الدبر.

كُلٌّ فِي كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ۝

هر يو له دوابو څخه او د احوالو څخه ددوی او له ارزاقو څخه ددوی په کتاب ښکاره کي دي يعني اللوح المحفوظ.

**درويش وايي:** چي دا خبره چي مظهري زياته کړې ده او في کتب الحفظة د ماقبل عموم سره مناسبه نه ده لان الحفظة يعني الكرام الكاتبين خو په انسانانو پوري خاص دي ليس الا او په اول کي مظهري رحمه الله دواب پر عموم حمل کړي دي، او روح المعاني تفسير د کتاب مبين په لوح محفوظ سره کړی دی، او روح البيان هم تفسير په لوح محفوظ سره کړی دی الا ان يقال چي مراد د مظهري د کتب الحفظة څخه کرام کاتبين نه دي بلکې هغه ملکي دي چي د لوح محفوظ هر وخت مطالعه کوي او د هغه سره موافق رفتار کوي.

**درويش وايي:** چي ددې عبارت څخه د روح المعاني لمن ينظر فيه اى اللوح المحفوظ من الملائكة عليهم السلام څخه دا توجيه د قول د مظهري ما وفهمول. والله اعلم بالصواب ومراد العباد.

وَهُوَ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فِيْ سِتَّةِ اَيَّامٍ وَّكَانَ عَرْشُهٗ عَلَى الْمَآءِ

او خدای جل جلاله هغه ذات مقتدر دی چي اسمانونه او ځمکه يې پيدا کړي دي په شپږو ورځو کي، او وو عرش د خدای جل جلاله پر ابو

**پوه سه:** چي مراد له سموات او ارض څخه تول له اسمانونه او مافيها دي كالشمس والقمر والكواكب او تول له ځمکه سره د مافيها من الكنوز وما عليها من الحيوانات والنباتات.

**فائده:** هر ځای په قرآن کريم کي سموات په صيغه د جمع راغلی دی، او ارض مفرد او سره ددې چي په صحيح حديث کي راغلي دي چي مځکه هم اووه طبقې ده حکمت يې څه دی؟

**ځواب:** حقائق د اسمانو په شريعت او حکمت سره مختلف دي او حقائق د طبقاتو د مځکي يو دی وهي حقيقة الترابية والاختلاف بالعوارض.

**پوښتنه:** هغه وخت چي نه لمر وو او نه اسمانونه او نه مځکه، نو ورځي چيري وې؟

**ځواب:** مراد د ايامو څخه متعارفې ورځي نه دي بلکه نفس اوقات دي او بعض مفسرين وايې چي مراد د شپږو ورځو څخه هغه شپږ ورځي دي چي په علم ازلي کي د خدای وې چي وروسته تر خلق د اسمانو او مځکي او لمر عالم وجود ته راځي.

**سوال:** حکمت الٰهي څه دی چي اسمانونه او مځکي په شپږ ورځي کي پيدا کړي ولو شا لخلقها في لمحة" انما امره اذا اراد شيئا ان يقول له کن فيکون؟

**ځواب:** ابن عباس رضي الله عنهما وايې چي حکمت يې تعليم د تاني يعني عدم العجلة في الافعال والاقوال للناس" ولهذا قيل التاني صفة الرحمن" والتعجيل فعل الشيطان حتى قال حين امر بالسجود لادم فوراً بدون التأمل انا خير منه.

**پوهه:** چي دا جمله "وکان عرشه على الما" معطوفه ده پر جمله د خلق سره د ضمير مستتره، او يا حال ده د ضمير مستتر څخه لکن په تقدير د قد لما تقرر في النحو چي ماضي جمله حال نه سي کېدای بېله لفظ د قد يا ظاهرا او يا مضمر" ومعنى الاية عرشه سبحانه وتعالى پر اوبو د مخه تر خلق د اسمانو او مځکي وهو الذي يقتضيه کلام المجاهد رحمه الله وبه صرح القاضي البيضاوي رحمه الله وروسته قاضي ويلي دي چي د دې آيت معنى دا ده چي په مابين کي د عرش او اوبو حائل محسوس نه وُ لا ان العرش موضوع على متن الما.

**درويش وايي:** چي ما قيد د محسوس ور زيات کړی لان بعض المفسرين يقول ان العرش موضوع على متن الهوا والهوا على الما لکن الهوا ليس بمحسوس بالبصر او علامه ابو سعود رحمه الله مفتي الديار الرومية وايې چي معنى د آيت دا ده چي په مابين کي د عرش او د ابو شي نسته که هوا وي او که

بل جسم، نو که په مابین کي عرش او د اوبو فرجه وي يعني خلا چي حکما يې ممتنع بولي لازمېږي او که عرش د اوبو پر شا پروت وي، نو فرجه او خلا نشته.

**درويش وايي:** چي علامه بغداد السيد الوسي رحمه الله په دې کي ډېر اوږد بيان کړی دی چي (۴) لوی مخان دي د کتاب د ده، ولا فائدة في ايراد التحقيق المذکور لمتعلمي هذا التفسير بل لکثير من العما.

او بغوي رحمه الله دا رايه مختاره کړې ده چي عرش د ابو سره متصل وو او اوبه د باد پر شا وې" روح البيان وايي چي عرش په لغت کي تخت ته د باچا وايي او هغه عرش چي مضاف و خدای ته دی د هغه معنی دا ده چي عرش يو لوی اعظم د مخلوقاتو د خدای جل جلاله دی لکن دا يې معنی نه ده چي د خدای جل جلاله عرش اوطاق او ځای دی کما ذهب اليه المجسمة يعني چي خدای جل جلاله جسم بولي" او مخ او لاسونه او پښې ورته وايي يعني دوی ټولو آيتونه د قرآن او احاديث مبارکه پر معاني ظاهره وو حمل کوي، او اهل السنة والجماعت رحمهم الله يې د متشابهاتو څخه بولي چي لا يعلم تأويله الا الله او يا تأويل مناسب ورته کوي او په اجماع د اهل السنة والجماعة مذهب د مجسمه وو باطل دی والدلائل النقلية والعقلية في کتب علم الکلام للمتاخرين، نو د عرش اضافت و خدای جل جلاله ته کول د پاره د تعظيم او تشريف د مضاف ده لکه کعبه مبارکه چي بيت الله بولي.

**پوښتنه:** چي خدای جل جلاله لره عرش مکان نه دی کما مر، نو د دوني لويې بنا څه حکمت دی؟

**ځواب:** (۱) حکمت يې دا دی چي د بعض ملکو چي کروبيين يې بولي عليهم السلام د عبادت ځای سي کريمه" وترى الملئکة حافين حول العرش" (۲) د پاره د اظهار د عظمت د قدرت خپل لکه مقاتل رحمه الله چي وايي مقدار د اسمانو او مځکي و کرسي ته لکه د يوې حلقې ولوی بيابان ته" او نسبت د عظم د کرسی سره د اسمانو او مځکي ولوی والي ته عرش لکه يوه حلقه په بيابان کي" او د دې ټولو نسبت و عظمت ته د قدرت د خدای جل جلاله لکه يوه ذره ودنيا ته (۳) عرش مرکز دی د عمل نامو د ابرارو" کريمه" ان کتاب الابرار لفي عليين" وفيه تعظيم للابرار ولکتبهم" الى غيرها من الحکم التي ذکرها المفسرون رحمهم الله.

## لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا

تاچي خدای ﷻ ستاسي امتحان وکړي چي کوم يو ستاسي ښه دی از روی عمل.

**سوال:** خدای پاک خو په احسن د دوی عملا ازلا خبر وو، نو د امتحان ته ضرورت څه دی؟

**ځواب:** هر ځای په قرآن کريم کي د ابتلاً د خدای لفظ راسي مراد ځندي حقيقة ابتلاً نه ده لانه عليم بالظواهر والخواطر بلکه معامله د مختبر او امتحان اخستونکي ده، ولي چي مناط د ثواب او د عقاب علم ظهور دی د اعمالو د ثواب من الايمان والاعمال الصالحة او د عقاب من الکفر والمعاصي دا په ابتلاً سره ښکاره کېږي" کريمه" لئلا يکون للناس حجة بعد الرسل" ای عذر الجهل که رسولان او کتب آلهيه نه وي اذ يقولون عند عدم ذالک" کريمه" هلا ارسلت الينا رسلا نتبعهم.

**بوه سه:** چي ليبلوکم متعلق په خلق السموات آه پوري او د خلق السموات آه بيان د حکمت آلهي په خلق کي د دوی والمعنی ان خلق السموات والارض مقصود لذاته نه دی بلکه د دې پاره دی چي خلګ دا علويات او سفليات دلائل وګرځوي پر وجود د صانع جل سلطانه او پر توحيد د صانع "کريمه" لو کان فيهما الهة لفسدتا" او تا چي معلوم سي په علم ظهور سره مؤمن بلکه ايکم احسن عملا .

**بوه سه:** چي احسن عملا په دوران کي د قرآن محمد ﷺ دی و اتباعه حق المتابعة الی يوم القيام.

**فائده:** مراد له عمل څخه عام دی که اعمال قلبية وي او که اعمال د جوارح وي او که اعمال مالية.

**فائده:** تفسير کړی دی رسول الله ﷺ د دې آيت په دغو کلماتو سره" ايکم احسن عقلا و اورع عن محارم الله واسرع في طاعة الله.

## وَلَئِنْ قُلْتَ إِنَّكُمْ مَّبْعُوثُونَ مِنْ بَعْدِ الْمَوْتِ لَيَقُولَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ۝

که ته ورته ووايې کفارو ته د مکې چي تاسي حشر کېږئ يعني ژوندي کېږئ وروسته تر مرګ چي مشرکان ټوله د دې حشر څخه منکر دي، هر آئينه وبه وايي

هغه كسان چي كفر كوي يعني المشركين نه دي هذا اى القول بالبعث بعد الموت سره يا قرآن چي ناطق بالبعث بعد الموت سره مگر سحر دى" يعني لكه سحر چي باطل شى دى او صرف د خلگو خطايستل دي" وفي قرائة حمزة والكسائي" ان هذا الا ساحر مبين" يعني نه دي قائل د بعث بعد الموت مگر ساحر" يعني د ساحر خبره خو محض كاذب دى، نو د دې خبره هم دا غسې ده.

**فائده**: لام د لئن" موطئه د قسم دى.

**فائده**: لقولن آه جواب د قسم محذوف په لئن كي دى او جواب د شرط محذوف دى لدلالة جواب القسم عليه.

**پوهه**: چي په حديث د ابن ابي حاتم د قتادة څخه راغلي دي چي دا آيت چي نازل سو" اقترب للناس حسابهم" بعض خلگو د مشركانو وويل چي بايد يو څو ورځي صبر وكړو چي د دې خبري صدق او كذب معلوم ېږي. نو يو څه زمانه دوى د شركه ځان ليري وساتى" آخير خو قيامت نه سو بېرته يې خپل شرك يې په مخه واخستى بيا چي دا آيت نازل سو" اتى امر الله فلا تستعجلوه" بيا خلگو وويل چي امر د خداى راغلى يعني قيامت بيا يو څو ورځي په بېره او په انتظار كي وه خو قيامت نه راغلى، بېرته يې خپل انكار عن القيامة ته دوام وركړى، نو خداى ﷻ دا آيت نازل كړى.

وَلَئِنْ أَخَّرْنَا عَنْهُمُ الْعَذَابَ إِلَىٰ أُمَّةٍ مَّعْدُودَةٍ لَّيَقُولُنَّ مَا يَحْبِسُهُ

كه موږ وځنډوو د دوى څخه عذاب موعود في يوم القيامه تر يو وخته پوري چي په حساب دى يعني لږ وخت، وايي كفار د مكې استهزاءً وانكاراً څه شي بند كړى دى دا عذاب چي نه راځي.

**پوهه**: چي په قاموس كي وايې چي معنى د" امت" حين ده" او بغوي رحمه الله وايي الى اجل معدود" او بيضاوي وايې الى جماعة من الاوقات معدودة" اى قليلة".

**درويش وايي**: چي دا معنى ډېره مناسبه ده د معنى لغوي سره د "امة" لان الامة هو الجماعة كامته محمد ﷺ وامة موسى وعيسى عليهما السلام.

أَلَا يَوْمَ يَأْتِيهِمْ لَيْسَ مَصْرُوفًا عَنْهُمْ وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِءُونَ ۝

آگاه اوسه چي هغه چي عذاب الهي راسي لکه په بدر کي بيا له دوی څخه نه سي دفع کېدای، او احاطه به وکړي پر دوی هغه عذاب الهي چي دوی به پسخند په واهه. پوه سه! چي يوم" منصوب دی په مصروفاً سره.

**پوښتنه**: تو له مفسرين ﷺ وايي چي مراد له "يوم يأتيهم" څخه عذاب د قتل او حبس او شکست دی د ورځي د بدر، او هغه هنوز نه دی راغلی، نو هغه تر اوسه نه دی راغلی، نو تعبير يې په ماضي صيغه د "حاق" څه معنی؟

**ځواب**: راتګ د عذاب مذکوره چونکه متحقق په علم کي د خدای ﷻ دی فهو کالامر الماضي في التحقق.

**فائده**: د عذاب سبب موجب استهزاً ده او د استهزاً سبب انکار د وقوع دی.

**پوه سه**: چي بعض انسانان له ځان څخه عذاب دفع کوي په ايمان او اعمال صالحه سره لکه مؤمنان د هر وخت، او بعض خلګ خپل ځان په هلاک او عذاب الهي کي اچوي په سبب د کفر او عصيان نو اوله ډله له خدای ﷻ څخه بېرېږي او دوهمه ډله نه بېرېږي. وفي الحديث القدسي "وعزتي لا اجمع على عبدي خوفين ولا امنين. فاذا خافني في الدنيا آمنته يوم القيامة واذا آمنني في الدنيا اخفته يوم القيامة" ترجمه: زما دي په خپل عزت سره قسم وي چي زه نه جمع کوم پر خپل بنده دوه خوفه او نه دوه واره امن، نو که په دنيا کي زما څخه بېرېدی نو زه يې په امن کي کوم په ورځ د قيامت او که يې زما څخه په امن کي ژوند د دنيا کاوه نو زه يې بېروم په ورځ د قيامت انتهى.

**درويش وايي**: چي بېره له خدايه او نه بېره د خولې شی نه ده بلکې د زړه حال دی، نو ځکه په حديث شريف کي راغلي دي چي څوک چي د يوې ګناه استغفار غواړي له خدای ﷻ څخه او پر هغه ګناه قائم وي داسي دی لکه په خدای ﷻ چي پسخند وهي.

**درويش وايي**: چي حقيقتاً استهزاً په خدای ﷻ سره خو کفر دی نو ځکه په حديث کي لفظ "كالمستهزء" راغلی دی فافهم.

**مسئله**: په يوه نبي له نبيانو عليهم السلام څخه استهزا کول کفر دی، او په صالح خلګو پسخند وهل ګناه کبيره ده يجب على المرتكب تجديد الايمان او التوبة.

**واقعه**: ابو جهل يوه ورځ په عليه الصلوٰة والسلام پسې روان ؤ او د پېزې سونهارى او د خولې کشول يې استهزاءً بالنبي ﷺ کوله، نو د عليه الصلوٰة والسلام ورته فکر سو، نو يې ورته وويل "كن كذالك" نو تر مرګه يې داغه پېښې کولې، او په صحيح حديث ثابته ده چي يوه ورځ عتبه بن ابي محيط د عليه الصلوٰة والسلام پر مبارک مخ ناړې تو کلې هغه ناړې راوګرځېدې د عتبه پر مخ ومښتلې او هغه تر مرګه پورې د هغه پر مخ د پيس داغ سو، فيجب غاية الاحتياط مع احبا الله تعالى، شيخ سعدي قدس سره وايي:

بگوی آنچه دانی سخن سودمند ...... وگر هیچ کس را نیاید پسند
که فردا پشیمان بر آرد خروش ...... که اوخ چرا احق نه کردم بگوش

مولانا ومولى الروم رحمه الله په مثنوي کې وايي:

منقبض گردند بعض زین قصص ...... زانکه هرمرغی جدا دارد قفص
کودکان گرچه بیک مکتب درالد ...... درسبق هر یک زیک بالاتر الد
مرگ پیش از مرگ اینست ای فتی ...... این چنین فرموده مارا مصطفی
گفت موتوا کلکم من قبل ان ...... یأتي الموت تموتوا بالفتن

**وَلَئِنْ أَذَقْنَا الْإِنْسَانَ مِنَّا رَحْمَةً ثُمَّ نَزَعْنَاهَا مِنْهُ إِنَّهُ لَيَئُوسٌ كَفُورٌ ⑨**

که چېرې وڅکو موږ په انسان يعني ورکړو ده ته رحمةً يعني صحت او عافيت او غنى او امن وروسته تر هغه نعمت او رحمت ځني سلب کړو له ده څخه يعني د رحمت مذکوره ضد پر واقع کړو، په تحقيق دغه انسان ډېر نااميده سي له عود څخه د مثل د هغه نعمت.

**پوه سه**: چي لام موطئه د قسم دی او "انه آه" جواب د قسم دی واستغنى به عن جواب ان الشرطية، يعني قطع سي اميد ده د فراخ فضل څخه د خداى ﷻ ولي چي د انسان صبر لږ دی او وه قضا ته د خداى ﷻ يې هم تسليم لږ دی او کفور دی يعني ډېر ناشکر دی د دمخه نعمتو.

**درویش وايي:** چي ما ترجمه د "يؤس" په ډېر نا اميده سره وکړه او ترجمه د "کفور" مې په ډېر ناشکره سره وکړه، ولې دا دواړې صيغې د مبالغې دي فافهم.
شیخ سعدي رحمه الله میگوید:

سگی را لقمه گر دادی فراموش ........ نگردد گر زنی صد نوبتش سنگ
وگر عمری نوازی سفله را ........ بکمتر تندی آید با تو درجنگ

**فائده:** له انسان څخه مراد په دې آيت کې جنس انسان دی فيصح الاستثناء منه في مابعده من الآية فتدبر.

وَلَئِنْ أَذَقْنَاهُ نَعْمَاءَ بَعْدَ ضَرَّاءَ مَسَّتْهُ لَيَقُولَنَّ ذَهَبَ السَّيِّئَاتُ عَنِّي ۚ إِنَّهُ لَفَرِحٌ فَخُورٌ

او قسم دی که چېرې زه (نو لام موطئه د قسم دی او کلمه د ان شرطيه ده) وڅکو يعني ورکړو وه انسان ته نعمتونه (لکه صحت بعد المرض او غنی بعد الفقر) وروسته تر ضرر چي وده ته رسېدلی وُ (لکه ناروغي او فقر) هر آئينه دغه انسان وايي چي سيئات يعني مصائب د مرض او فقر ومثل ذالک تېر سوه زما څخه، يعني نسبت يې وه خدای جل جلاله نه کوي چي د خدای جل جلاله شکر ووايي پر تلو د شدائدو د مرض او فقر مثلاً.

**بوه سه:** چي "ليقولن" جواب د قسم دی او قائم مقام د جواب د شرط دی، او دی خوشاله وي په خوشالی د کبر نه د شکر د خدای جل جلاله او په دې خپلو نعمتو پر خلګو فخر کوي يعني چي زه مستحق د دغو نعمتو وم معرضاً عن شکر الله عزوجل.

إِلَّا الَّذِينَ صَبَرُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ

مګر نه هغه کسان چي صبر کوي پر سلب د نعمت ددوی څخه او په نېز د سلب دي ليؤس او کفور نه ګرځي بلکې د خدای جل جلاله وفضل ته يې اميد وي چي بېرته پر موږ نعما مسلوبه غناً را وګرځي بلکې هنوز هم شکر د نعماً سابقه وايي بلکې نظر ددوی پر نورو نعمتو وي چي وه دوی ته پاته دي او پر هغو شکر د خدای جل جلاله وايي، او چي نعماً بعد الضرا خدای جل جلاله ورکړي خوشاله خو وي لکن نه خوشالي د کبر او نه د فخر پر خلګو باندي بلکې پر نعما بعد الضرا باندي شکر د خدای وايي قلباً ولساناً وعملاً.

**بوه سه:** چي په ځای کي د "الا المؤمنين" داسې "الا الذين صبروا الخ" اشاره

ودې ته ده چې د مؤمن شان دادی چې صبر به کوي په "ضراً" کي او شکر به وايي په "سراً"، په روايت د صهيب ﷺ داسي راغلي دي قال قال رسول الله ﷺ عجباً لامر المؤمن ان امره كله خير، وليس ذالک لاحد الا المؤمن (تعجب دی وه حال ته د مؤمن چې هر حال دده لپاره خير دی، او دا حال نسته مګر مؤمن لره ستة) ان اصابته سرآ شکر فکان خيراً له، وان اصابته ضرآ صبر فکان خيراً له (که د خوشالی اسباب ورته پيدا سي شكر د خدای ﷻ وايي، نو دا شکر دده لپاره خير دی، او که مؤمن ته ورسېږي ضراً لکه مرض او فقر وغير ذالک، نو صبر پر وکړي نو هغه صبر دده لپاره خير دی، ددې حديث روايت مسلم کړی دی.

**أُولَٰئِكَ لَهُم مَّغْفِرَةٌ وَأَجْرٌ كَبِيرٌ ﴿١١﴾**

دغه کسان چې صابران وي په ضراً کي او شاکران وي په سراً کي دوی لره بخښنه د ګنهو او ثواب دی ډېر چې بهترين اجر يې رضوان الله دی او وروسته جنت دی چې په جنت کي ما لا عين رئت ولا اذن سمعت يعني بالتفصيل ولا خطر علی قلب بشر کما جا في الحديث الصحيح.

**فَلَعَلَّكَ تَارِكٌ بَعْضَ مَا يُوحَىٰ إِلَيْكَ**

او شايد ته به پرېښوونکی يې بعض د هغو آيتو چې تاته يې وحي کړل سوي وي، يعني هغه آيتونه چې په هغو کي سب د الهه ؤ د مشرکانو دی، لکه مشرکانو د مکې به د عليه الصلوٰة والسلام څخه مطالبه کوله "ايت بقرآن غير هذا ليس فيه سب آلهتنا"

**پوه سه**: چې بيضاوي ﷫ وايي چې لايلزم من توقع لوجود مايدعوا اليه وجوده ووقوعه لجواز ان يكون ههنا مايصرف عنه وهو عصمت الرسول عن الخيانة في الوحي والتقية في التبليغ.

**تفريع**: قول د هغه چا چې وايي چې لعل په قرآن کي واجب الوقوع دی غلط دی

**وَضَائِقٌ بِهِ صَدْرُكَ أَن يَقُولُوا لَوْلَا أُنزِلَ عَلَيْهِ كَنزٌ أَوْ جَاءَ مَعَهُ مَلَكٌ**

او تنګېږي په دغه خبره ستا سينه چې دوی وايي. ولې نه نازلول کېږي پر

محمد خزانه، یعني ورلي نه ورکول کېږي د خدای ﷻ له خوا چې دی د خدای رسول ځان بولي؛

**یوه سه:** چې مراد له خزانې څخه سره او سپین زر دي تا چې دی یې نفقه کوي پر خلګو او خپل تابعان په ډېروي کملوک الدنیا. او یا ولي نه راځي دده سره ملکي یعني په صورت ملکي چې موږ ته شاهدي ادا کړي دده په نبوت سره.

**یوه سه:** چې ضمیر د "به" مبهم دی او "ان یقولوا" یې تفسیر دی یعني قولهم والقائل لهذا القول هو عبدالله بن امیة المخزومي.

إِنَّمَآ أَنتَ نَذِيرٌۚ

ته نه یې مګر بېروونکی د خلګو د خدای ﷻ له عذابه پر کفر پر هغه ډول چې خدای ﷻ تا ته وحي کړي دي، نو سینه مه تنګه وه چې دوی ناوړه او ناحقه غوښتني در څخه کوي نحو ایت بقرآن غیر هذا. او یا وایي لولا انزل الآیة نو ته خپل تبلیغ ته دوام ورکړه.

وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيۡءٖ وَكِيلٌ ۝١٢

یعني خدای ﷻ پر هر شي وکیل دی یعني محافظ ددوی د عملو دی فیجازیهم علیها.

أَمۡ يَقُولُونَ ٱفۡتَرَىٰهُۖ

آیا دوی وایي چې محمد په درواغو دا قرآن له ځانه جوړ کړی دی. نو ضمیر د "افتراه" راجع وه "مایوحی" ته دی. او کلمه د "ام" منقطعه ده په معنی د "بل" او همزه د "بل" لپاره د انتقال دی من مضمون الی مضمون آخر والهمزة للتوبیخ والانکار علی قولهم والتعجب لقولهم ذالک.

قُلۡ فَأۡتُواْ بِعَشۡرِ سُوَرٖ مِّثۡلِهِۦ مُفۡتَرَيَٰتٖ

ته ورته ووایه یا محمد چې تاسي نو راتګ په لس سورته چې مثل د قرآن وي وکړئ.

**درویش وایي:** چې یو دقیق سوال تولو مفسرینو رحمهم الله راوړی دی چې په سورت یونس کي داسي راغلي دي "فأتوا بسورة مثله" او دوی څني عاجزه سوه،

نو بيا څرنګه دوی ته ويل کېږي "فأتوا بعشر سور". ددې داسي مثال دی لکه يو سړی چي ويل ته ووايي ماته يو درهم راکړه! هغه څني عاجزه سي بيا هغه ورته ووايي چي نو لس روپۍ راکړه؟

**ځواب**: سورت هود يعني چي لس پکښي راغلي دي، تر سورت يونس چي فأتوا بسورة پکښي راغلي دي مقدم دی، والحاصل چي دوی اولاً په لس سورته په مثل د قرآن مأمور سوه لکه په دې سورت هود کي چي دوی د لسو څخه عاجزه سوه. نو بيې تاکيد ددوی د عجز په سورت يونس کي ورته وويل فأتوا بسورة مثله. لکن مبرد رحمه الله ددې جواب د صحت څخه منکر دی لان سورة يونس النبي فيها التحدی بسورة مقدم دی په نزول کي تر سورت هود چي په هغه کي تحدی په لس سره راغلې ده، نو سوال مذکور پر ځای دی، نو مبرد داسي ځواب ورکړی دی چي په سورت يونس کي چي "فأتوا بسورة مثله" راغلی دی مراد څني دادی چي مثل د قرآن دوی په اخبار بالغيب کي او په احکامو کي او په وعد او وعيد کي علی طبق الکتب المنزلة المتقدمة. نو دوی له داسي مثله څخه عاجزه سوه وروسته يې په سورت هود کي ورته وويل "فأتوا بعشر سور مثله" يعني په نفس بلاغه وحسن النظم که څه اخبار بالغيب وغيره نه وي پکښې. ولي تاسي خو هم عرب ياست او د بلاغت او فصاحت تناونه مو په لاس کي دي، او په خطب او په نظم او نثر کي لوی مهارت لرئ او آنحضرت ﷺ نبي امي و، نه يې مهارت درلودی لکه تاسي. نو چي تاسي عاجزه سولاست، نو معلومه سوه چي قرآن من عند الله دی د عليه الصلوٰة والسلام له ځانه جوړ کړی کتاب نه دی. دا و حاصل د جواب د مبرد رحمه الله.

**پوښتنه**: مثله خو صفت د سور دی نو ولي مفرد راوړه سو؟

**ځواب**: افراد يې په اعتبار د کل واحد من عشر سور. ولي چي مقصود خو مماثلت د هر واحد دی لا مماثلة المجموع، او بعضي مفسرينو دا جواب ورکړی دی چي مثل په اصل کي مصدر دی، نو مطابقت او عدم مطابقت دواړه پکښي روا دي فيوصف به الواحد وغيره لکه په دې آيت کي چي مطابقت نسته (انؤمن

لبشرین مثلنا" چې مراد ځنې موسی او هارون علیهما السلام دي یعني مثلینا نه وایي، او ګاهي مطابقت وي کما في قوله تعالی "ثم لایکونوا امثالکم" او بعض مفسرین وایي چې مثله د عشر سور صفت نه دی بلکې موصوف یې مقدر دی ای قدر عشر سور مثله.

**پوه سه:** چې کلمه د فا په "فأتوا" کې بنا پر هغه قول د ام یقولون افتراه، والمعنی ان صح ماقلتم فأتوا بعشر سور آه "مفتریات" چې هغه لس سورتونه هم تاسي د ځان په دروغو جوړ کړي دي، ولي تاسي هم عرب یاست، نو که دا خبره ستاسي رښتیا وي چې محمد ﷺ قرآن له ځانه جوړوي.

**پوه سه:** چې امام همام فخر الدین الرازي رحمه الله په تفسیر کبیر کې وایي چې له دې آیت څخه دا ښکاره سوه چې اعجاز د قرآن کریم یعني چې عرب یې له مثل راوړلو څخه عاجزه کړه په سبب د فصاحت او بلاغت چې له توان څخه د عربو دومره فصیح او بلیغ کلام ویل خارج ؤ، په دې سبب نه دی چې په قرآن کې اخبار بالمغیبات او قصص د امم ماضیه پکښې دي چې پر هغه عرب علم نه لري.

**درویش وایي:** چې مراد د امام مذکور دادی چې فقط اخبرا عن المغیبات آه سبب د اعجاز نه دی که څه هم اخبار عن المغیبات خو هم سبب دی امام مذکور وایي چې فصاحت او بلاغت په دروغو او په رښتیا پوري اړه نه لري ولي چې فصاحت او بلاغت که رښتیا او که دروغ خبري وي پکښې معلومېږي، نو د مفتریات د قید فائده ښکاره کېږي آه والله اعلم بالصواب.

وَادۡعُوۡا مَنِ اسۡتَطَعۡتُمۡ مِّنۡ دُوۡنِ اللّٰهِ اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰدِقِيۡنَ ۝

او بلنه ورکړئ وه هغه چاته یعني د بلغاوو چې ستاسي په طاقت پوره وي بېله خدای چې هغه کسان ستاسي کومک وکړي په اتیان د مثل د قرآن که تاسي رښتیا وایاست چې قرآن مفتری د محمد دی.

فَاِلَّمۡ يَسۡتَجِيۡبُوۡا لَكُمۡ

که دوی قبلو نه ونه کړي ستاسي د دغه دعوت چې د مثل د لس سورة د قرآن دي.

**پوښتنه:** مخاطب خو یوازي علیه الصلوة والسلام دی، نو د جمعیت د ضمیر د

لکم څه وجه ده؟

**ځواب**: جمعیت د ضمیر یا دپاره د تعظیم د علیه الصلوة والسلام یا د دې سببه چې مؤمنان خو هم په دې تحدی کې ورسره شریکان وه.

او بل ځواب دا دی چې هر امر د خدای ﷻ چې وعلیه الصلوة والسلام ته وسي هغه شامل مؤمنانو ته هم دی ماسوی د خواصو د ده ﷺ. نو معنی د آیت دا ده که قبلو نه ونه کړي دغه مشرکان چې پر تا الزام د افترا کوي ستاسي یا محمد ویا اصحاب محمد ﷺ د دې مطالبې ستاسي چې جوړه د لس سورة مثله د قرآن او کومک د نورو مشرکانو څخه هم وغواړئ من دون الله، نو د دې سببه په دې آیت کې.

﴿فَاعْلَمُوٓا اَنَّمَآ اُنْزِلَ بِعِلْمِ اللّٰهِ وَاَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ فَهَلْ اَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ﴾

صیغه د جمع پر ماقبل تفریع یعني د شرط د فان لم آه جزا وګرځول. نو په دې پوه سئ چې قرآن نازل سوی دی متلبس په علم د خدای یعني چې بېله خدایه هېڅ څوک قدرت نه پر لري.

**فائده**: کلمه د ما په انما کي کافة ده او ضمیر د انزل راجع دی وما یوحی ته او بعلم الله حال دی ای متلبسا بما لا یعلمه الا الله من المزایا والفوائد والحکم المشتمل علیها القرآن.

**پوه سه**: چې "وان لا اله الا هو" عطف دی پر انما انزل آه یعني په دې هم پوه سئ چې نسته معبود بالحق بېله خدایه" ولي چې مشرکان عاجزه سوه د اتیان څخه د مثل د قرآن سره د دې چې دوی به وخپلو بتانو او خدایانو ته زاری کړي وي او هغو څخه به یې کومک هم غوښتی وي، نو هغو قدرت نه درلودی، نو ثابته سوه چې بتان معبود بالباطل دي او معبود بالحق نسته بېله خدای ﷻ.

**پوه سه**: چې مخاطب په "انتم" سره مؤمنان دي کما في الآیات السابقه ومعنی الآیة ایا نه یاست تاسي ایها المؤمنون ثابتون علی الاسلام راسخون مخلصون لانه ظهر لکم اعجاز القرآن من کل الوجوه" اعلم چې سید محمود الآلوسي البغدادي په روح المعاني کي وایي چې تو له ځایونه خطاب ومشرکانو ته دی" او ضمیر په لم یستجیبوا کي راجع دی ومن استطعتم" ته ومعنی الآیة که قبلو نه

ونه کړي د کومک ستاسي ايها المشركون هغه څوک چي تاسي کومک غندي
وغوښتی من البلغا والاصنام په سبب د عجز د دوی او تاسي ته خپل عجز هم
ښکاره سو ، نو په دې پوه سئ چي قرآن داسي يو نظم دی چي لا يعلمه الا الله وانه
منزل من عنده دی" او توحيد د خدای حق دی، نو ايا تاسي نه داخلېږئ په اسلام
کي بعد قيام الحجة القاطعة لكم والمقصود من الاستفهام الامر بالاسلام ای
اسلموا ووحدو الله واتركوا الشرك.

مَنْ كَانَ يُرِيدُ الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا وَزِيْنَتَهَا نُوَفِّ اِلَيْهِمْ اَعْمَالَهُمْ فِيْهَا وَهُمْ فِيْهَا لَا يُبْخَسُوْنَ ﴿١٥﴾

كه څوک وي چي اراده په عمل او احسان سره ډېر ژوند په دار دنيا كي سره د
صحته او بنائست د دنيا په اموال" اولاد" او خادمان" او درجاتو وغير ذالک سره،
نو موږ به پوره اعمال يعني جزا د اعمالو د دوی" چي حسنات د دوی په دنيا کي
ورکړو او دوی ته به په دنيا يو شی د جزا د دوی کم نسي.

اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ لَيْسَ لَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ اِلَّا النَّارُ ۖ

دغه مذكور كسان هغه كسان دي چي نسته دوی لره په ورځ كي د آخرت بېله
اور" ولي چي دوی جزا د خپلو حسناتو په دنيا كي پوره يووړه او دوی ته په
آخرت کي بېله جزا د اعمال سيئه وو بل شی نه دی پاته وجزائها ليس الا النار.

وَحَبِطَ مَا صَنَعُوْا فِيْهَا وَبٰطِلٌ مَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٦﴾

او لغوه سوه هغه حسنات چي دوی کړي وه په دنيا كي" ولي چي دوی خو اعمال
حسنه د باره د رضا د خدای ﷻ نه وه کړي چي خدای ﷻ ودوی ته اجر او ثواب
په جنت سره ورکړي ولا واسطة بين الجنة والنار فاذا لم يكن لهم الجنة لعدم
سببها فيهم فلهم النار لبقا سببها وهو الاعمال السيئة لهم في الدنيا، او باطل
دي هغه څه چي دوی عمل کړی وو يعني په دنيا کي من الحسنات.

**پوه سه**: چي دا آيت په باره كي د كفارو دی" ولي چي بخاري د عمر بن
الخطاب ؓ څخه روايت کړی دی په ډېر اوږد حديث كي چي په يوه برخه کي د

هغه حدیث داسې راغلي دي عمر رضي الله عنه وايي چې عليه الصلوة والسلام په يوه غرفه کې يعني بالا خانه کې پروت وو پر صرف بوريا باندې چې د بوريا لښتو د عليه الصلوة والسلام په غوښه مباركه کې تغمې کړې وې او تر سر يې بالښت لاندې وو ځرمني" عمر رضي الله عنه وايي ما چې سترګې ولګرولې په غرفه کې" چې سترګې مې پر مبتلې صرف درې پوستو کې ځړېدلې" او په يو کنج کې څه بارک پراته وه. نو ما ورته وويل يا رسول الله ادع فليوسع على امتک چې فارسيان او روميان پر دوی فراخي د رزق او دنيا ډېره ورکړه سوې ده وهم لا يعبدون الله" عمر رضي الله عنه وايي چې عليه الصلوة والسلام تکيه کړې وه، نو راکېښېنستى. نو يې ماته وويل او في هذا انت يا ابن الخطاب" ته په دې باره کې راغلى يې اى ابن الخطاب ان اولئک يعني فارس او روم هغه قوم دى چې دوى ته طيبات يعني دنيا او نعمتونه په دې دنيا ورکړه سوي دي، واما المؤمن فيريد الدنيا والآخرة او اراده د آخرت يې غالبه ده. نو من د حسناتو عوض په دنيا کې هم ورکړه کېږي او په آخرت کې هم خداى جل جلاله ثواب ورکوي" او مسلم د انس رضي الله عنه څخه روايت کړى دى چې عليه الصلوة والسلام وويل چې خداى جل جلاله پر مؤمن ظلم په باره کې د حسنه د ده نه کوي بلکه يعطي عليه في الدنيا ويثاب عليه فى الآخرة يعني چې مؤمن دوارې دنيا وي په نظر کې لري" واما الكافر فيطعم بحسناته فى الدنيا فاذا افضى الى الآخرة لم يكن له حسنة يعطي بها خيرا" مفسرين وايي چې ددې آيت دغه عبارة ليس لهم فى الآخرة الا النار قرينه پر دې ده چې دا آيت په حق کې د کافرانو دى" للاجماع على ان المؤمن يثاب بالجنة البتة" بعض مفسرين رحمهم الله وايي چې دا آيت په باره کې د ريا کارانو دى يعني عمل د خير د پاره د لېدلو د خلګو کوي" والدليل عليه ما روى عن ابي سعيد الخدري رضي الله عنه عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال اذا جمع الله الناس يوم القيامة ليوم لا ريب فيه نادى مناد من اشرک في عمل عمله الله احدا فليطلب ثوابه من عند غير الله فان الله اغنى الشركا عن الشرک رواه احمد وعن انس رضي الله عنه مثل ذالک.

**سوال:** اهل ريا خو مؤمنان هم کېداى سي، نو د دې آيت معنى به څه وي ليس لهم فى الآخرة الا النار؟

**ځواب:** مظهري وايي چي معنا يې دا ده چي د اعمال ريائيه په باره کي جزا نسته الا النار" واما الاعمال التي ليس فيها ريا فله فيها ثواب" او په روح البيان کي داسي وايي "ليس يليق لهم الا النار ولا يستحقون بالاعمال الريائية الا النار وليس فى الاية دلالة على خلود اهل الريا من اهل القبلة في النار البتة كما يقول المعتزله" وورد في الحديث الصحيح ان اخوف ما اخاف عليكم الشرك الاصغر قالوا وما الشرك الاصغر قال الريا الى آخر الحديث" بيت

مرائی هر کسی معبود سازد .......... مرائی را ازان گفتند مشرک

**فائده:** پوه سه! چي حسنات د کافرانو مثل البر يعني احسان" او صلة الرحم او خيراتونه او جوړول د پولانو پر ولو يا رودو" او ځرکان جوړول او لوی ولې ودانول ونحو ذالک.

لکه خيراتي مؤسسه د امريکايانو او انگريزانو" روسانو او جرمنيانو الى غير ذالک مقبولة عند الله يعني خدای ﷻ ثواب ورکوي که دوی وروسته ايمان را وړي او نه يې ضائع کوي که څه يې په حال کي د کفر يې کړی وي او قبل الاسلام اجماع د امت پر دې ده انهم لا يثابون على اعمالهم بنعيم ولا تخفيف عذاب كذا في شرح المشارق لابن الملک رحمه الله.

**درويش وايي:** چي په شرح کي د طريقه محمديه وايې چي د شيطان د چمو څخه يو چم دا دی چي يو سړی عادت لري چي د ځابنت لمونځ کوي او يا د تهجد لمونځ يا نور اذکار يا تلاوت د قرآن عظيم الشان ورد لري. نو دی د داسي قوم سره ملګری سي چي هغه د دغو شيانو عادت نه لري. نو شيطان ورده ته وسوسه پيدا کړي چي دا کارونه پريږده دا خو ريا ده. نو يې پريږدي په دې دی خطا دی ولي چي دغه کارونه چي ده دمخه کول دليل د اخلاص دی. نو فکر د ريا خو د ده په زړه کي بې اختياره پيدا سو فلا يضر الاخلاص بلکه هغه اوراد پرېښول موافقه د شيطان سره دی. او د ده غرض پر ځای کېږي هو دا ضروري ده چي تر عادت به بالابود نه کوي لان الزيادة على المعتاد ريا بلا ريبة" او ګاهي يو عمل معتاد يو څوک پريږدي د دې بېري څخه به ده ته نسبت د ريا وکړي چي دا سړی

ریا کاره دی، وهذا عین الریا" لانه ترکه خوفا من سقوط منزلة عند الناس" او بل په دې کې بدگماني ده پر مسلمانانو.

# اَفَمَنْ كَانَ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّهٖ

آیا هغه څوک چې پر حجت او برهان وي د طرفه څخه د رب د ده چې هغه دلیل او حجت دلات کوي پر حق او صواب باندې نو هغه بنده مختار کړی وي عبادت د الله ﷻ پر عبادت د بتانو، او مختاره کړي یې وي نعیم د دار الآخرة الباقیة پر نعمتو د دنیا فانیة ولذاتها.

**پوه سه:** چې کلمه د "من" مبتدأ ده خبر یې محذوف ی د او همزه لپاره د انکار دی پر مشابهت د من کان هذا شانه بهولاً یعني دغه کسان چې همت ددوی او افکار ددوی فقر پر دنیا او پر لذاتو د دنیا وي، بعد العلم بان المقصرین لیس لهم في الآخرة الا النار، وتقدیر الکلام افمن کان علی بینة من ربه کمن کان یرید الحیوٰة الدنیا وهذا هو الجز المحذوف یعني هر گز نسي سره یو شی کېدای وهذا هو معنی الهمزة الانکاریة.

**پوه سه:** چې مراد په موصول سره رسول الله ﷺ سره د اتباعو دده وهم المؤمنون المخلصون، والقرینة علی العموم جمعیة اسم الاشارة في قوله تعالی "الآتي اولئک یؤمنون به والمراد بالبینة القرآن الکریم.

# وَيَتْلُوْهُ شَاهِدٌ مِّنْهُ

او قرائت کوي د بینة، سبب د تذکیر د ضمیر دادی چې مراد له بینة څخه قرآن دی. د "منه" ضمیر خدای ﷻ ته راجع دی او له شاهد څخه مراد جبرئیل ؑ دی په قول د مظهري رحمه الله چې پر دې اراده ده هغه حدیث د ابن عباس رضي الله عنهما راوړی دی چې ابن عباس رضي الله عنهما چې دا آیت ووایه "ویتلوه شاهد منه" ده وویل هو جبرئیل فهو شاهد من الله یتلو من کتاب الله الذي انزل علی محمد ﷺ. او روح المعاني د یتلوه ترجمه په یتبعه کړې ده او ضمیر یې راجع وه بینة ته په تأویل د قرآن گرځولی دی او د شاهد تنکیر یې پر تعظیم حمل کړی دی حیث قال شاهد عظیم پر دې باندې چې قرآن من عند الله دی او روح د شاهد څخه اعجاز القرآن في نظمه مراد گرځولی دی.

**سوال:** د متابعت د اعجاز قرآن لره څخه معنی ده؟

**ځواب:** روح المعاني وايي كونه (اى الاعجاز) تابعاً لـه (اى للقرآن) كونـه اى الاعجاز وصفا له اى للقرآن لا ينفك عنه حتى يرث الله تعالى الارض ومن عليها فلا يستطيع احد معارضة ولو كان بعضهم لبعض ظهيراً. او لفظ د منه متعلق په محذوف پوري ګرځولی دی اى كائناً منه او صفت د شاهد يې بولي وقال ومعنى كونه منه انه غير خارج عنه يعني اعجاز د قرآن خارج شی نه دی.

**درويش وايي:** چې ثم وثم روح المعاني نور احتمالات هم راوړي دي، او روح البيان د "بينة" څخه برهان عقلي چې پر توحيد د خدای ﷻ دلالت کوي مراد ګرځولی دی او د يتلوه ترجمه يې په متابعت کړې ده. ضمير مذکر يې راجع وبينة ته په تأويل د برهان ګرځولې ده "منه" ضمير يې راجع وه خدای ﷻ ته ګرځولی دی، او مراد لـه شاهد څخه يې قرآن عظيم ګرځولی دی چې شاهد د صحت د برهان عقلي دی.

**درويش وايي:** چې دا ټولې او نوري هم توجيهات د قرآن ددې آيت وې اصلي خبره خو داده چې الله اعلم بمراده في كتابه. لکن مفسرين شکراً الله سعيهم ډېر تر وسع مبذول کړې ده او ډېر کوشش يې کړی دی. لکن د درويش په عقيده تفسير د مظهري اسانه او د تکلف څخه خالي دی. او دقت او متانت او تحقيق په تفسير کې د روح المعاني دی، او تفسير د روح البيان له تکلفه خالي نه دی والله اعلم بالصواب.

## وَمِن قَبْلِهِ كِتَـٰبُ مُوسَىٰٓ إِمَامًا وَرَحْمَةً ۚ

او دمخه تر نزول د قرآن کتاب د موسی ﷺ يعني تورات شاهد دی د خدای ﷻ له خوا څخه پر صدق د قرآن وكونه من عندالله على رسوله محمد ﷺ حيث بين كتاب موسى ﷺ صدق القرآن في كونه من عند الله وصدق محمد ﷺ في دعوة الرسالة وان كتم ذالک بعض العلماء من اليهود المعاصرين لرسول الله ﷺ حفظاً لرياستهم على عوامهم واخذ الاموال منهم كمابين في سورة البقرة وغيرها.

**پوه سه:** چې "اماماً ورحمة" دواړه حال دي له کتاب موسی څخه يعني کتاب

موسی مقتدی به وُ د بني اسرائیلو او رحمت د خدای ﷻ له خوا پر منزل علیهم باندې چې بني اسرائیل وه په وخت کې د موسی او وروسته تر موسی: نورو انبیاوُ د بني اسرائیلو من قبل ان یقع التحریف في التورات من قبل بعض العلما المعاصرین للنبي ﷺ کمامر آنفاً.

**أُولَٰئِكَ يُؤْمِنُونَ بِهِ ۚ وَمَن يَكْفُرْ بِهِ مِنَ الْأَحْزَابِ فَالنَّارُ مَوْعِدُهُ ۚ**

"اولئک" اشارةً الی من کان علی بینة. ولي مراد د هغه څخه جماعت د مؤمنانو دی، دوی حقیقت ایمان درلودی پر قرآن او پر علیه الصلوٰة والسلام باندې، او څوک چې کفر وکړي په علیه الصلوٰة والسلام یا په قرآن سره.

**درویش وایي:** چې کفر په علیه الصلوٰة والسلام یا په قرآن سره یو له بل سره لازم او ملزوم دي کما لا یخفی لکن ما چې تردید وکړی له جهته د افراد د ضمیر: "به" (من الاحزاب) یعني د ملتو والا که یهود او که نصاری او که مجوس وي الی غیرهم "فالنار موعده" نو اور ددوی ځای د وعدې دی. د ابو هریره رضی الله عنه روایت دی چې علیه الصلوٰة والسلام وویل "والذي نفس محمد بیده لا یسمع بي احد من هذه الامة ولا یهودي ولا نصراني ومات ولم یؤمن بالذي ارسلت به الا کان من اصحاب النار" قسم په هغه خدای ﷻ چې نفس محمد د هغه په قدرت کې دی چې نه به اوري زما رسالت یو څوک ددې جماعت یعني جماعة الکفرة من اهل الارض او نه یهودي او نه نصراني او مړسي او ایمان رانه وړي پر هغه دین چې را استولی سوی یم زه په هغه دین سره مګر هغه سړی به وي له خاوندانو څخه د اور جهنم. (روایت د مسلم)

**فَلَا تَكُ فِي مِرْيَةٍ مِّنْهُ ۚ إِنَّهُ الْحَقُّ مِن رَّبِّكَ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿١٧﴾**

نو ته مه ګرځه یا محمد (ﷺ) په شک کې له قرآن څخه او یا له وعدې څخه د نار د کفارو سره ظاهر آنهي و علیه الصلوٰة والسلام ته متوجه دی لکن مراد امت دی، ولي چې په علیه الصلوٰة والسلام کې ځای د شک نه وُ. په تحقیق قرآن حق دی یا موعد الکفار حق له جانبه څخه د خدای ﷻ ستا لکن ډېر خلګ پر حقیقت د قرآن ایمان نه راوړي لقصور عقولهم عن درک حقیة القرآن ومواعیده، او یا له جهته د تکبیر او عناد ایمان نه راوړي.

وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا

او څوک دي لوی ظالم (يعني نسته لوی ظالم. فالاستفهام للانکار) تر هغه چا چي په قصد وايي پر خدای ﷻ درواغ يعني وايي چي خدای ﷻ لره شريک سته په عبادت کي لکه مشرکانو د مکې به خپل بتان د خدای ﷻ شريکان بلل، او يا خدای پاک لره ولد سته لکه يهودان چي وايي عزير ابن الله دی او يا نصاری وايي چي عيسی ابن الله دی. او يا به بعض مشرکانو د مکې ويل چي ملائکه د خدای پاک لوڼي دي، کريمه "الکم الذکر وله الانثی تلک اذاً قسمة ضيزی" يا لکه يهودانو چي به نسبت وه خدای ﷻ ته د هغه شي چي خدای پاک به نه وه نازل کړي بلکې دوی به له ځانه ځخه ويل کقولهم "نحن ابنا الله واحبائه. يا "لن تمسنا النار الا اياماً معدودة" او چي خدای پاک به نازل کړي وه په تورات کي د بعض د هغو به يې نفي کوله لکه آيت الرجم او نعوت د عليه الصلوٰة والسلام الی غير ذالک من التحريفات في التورات.

أُولَٰئِكَ يُعْرَضُونَ عَلَىٰ رَبِّهِمْ وَيَقُولُ الْأَشْهَادُ

دغه کسان به پېش کړل کېږي ورب ته ددوی يعني يوم القيامة او وايي به شاهدان يعني هغه ملکې چي ددوی اعمال يې ثبت کړي وه دا قول د مجاهد رحمه الله دی، او ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي مراد انبياً او رسولان عليهم السلام دي چي هر يوه به د خپل امت په کفر سره شاهدي اداً کوي. ويؤيده قوله تعالی "فکيف اذا جئنا من کل امة بشهيد وجئنابک علی هولاً شهيداً"

**فائده:** اشهاد يا جمع د شاهد ده لکه اصحاب چي جمع د صاحب ده او يا جمع د شهيد ده لکه اشراف چي جمع د شريف ده او شاهد او شهيد هم معنا دي.

هَٰؤُلَاءِ الَّذِينَ كَذَبُوا عَلَىٰ رَبِّهِمْ ۚ أَلَا لَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الظَّالِمِينَ ﴿١٨﴾

شاهدان به دا وايي چي دا هغه کسان دي چي پر ربهم ددوی به يې درواغ ويله آګاه اوسه چي لعنت د خدای ﷻ دي وي پر ظالمانو.

**سوال:** داسي يې ولي نه وويل سول "عليهم" مع ان سوق الکلام فيهم؟

**ځواب:** تا چي نورو ظالمانو ته پر ته له مکذبين علی الله ته هم شامل سي.

**پوه سه**: چي په دې آيت کي لوی تهديد دی ددغو کسانو چي خدای ﷻ پر خپله خپل لعنت پر دوی ووايه. مفسرين ﷭ وايي چي اشهاد په کرام کاتبين او انبياً والمرسلين پوري خاص نه دی بلکې اعضاً د مکلف هم له شاهدانو څخه دي، کريمه "اليوم نختم على افواههم وتکلمنا ايديهم وارجلهم" کريمه "قالوا لجلودهم لم شهدتم علينا الآية" کريمه "يوم تشهد عليهم السنتهم وايديهم وارجلهم الخ" کريمه "وکفى بنفسک اليوم عليک حسيباً" او له شاهدانو څخه دي ځايونه چي بندګان د خير او د شر عمل په وکړي. في سورة العاديات. کريمه "يوم تحدث (اى الارض) اخبارها" قال عليه الصلوٰة والسلام اخبار د مځکي دادی چي مځکه به شاهدي ادا کړي پر هر نر او ښځي په هغه عمل سره چي د مځکي پر شا باندي چا کړی وي يعني من الرجل والمرئة.

**درويش وايي**: چي نور شهود هم په احاديث شريفه وو کي راغلي دي چنانچه بخاري د ابو سعيد الخدري ﷛ څخه روايت کړی دی چي عليه الصلوٰة والسلام ووېل "لا يسمع مدى صوت المؤذن جن ولا انس الا شهد له يوم القيامة" او له ابو خزيمه ﷛ څخه دا حديث په دې الفاظو راغلی دی "لا يسمع صوته (اى المؤذن) حجر ولامدر ولا شجر ولا انس ولا جن الا شهدله"

**درويش وايي**: چي ددې حديث مبارک څخه ثابتېږي سماع صوت المؤذن للجمادات من الحجر والمدر والشجر، او شهادت ددوی مؤذن په ورځ کي د قيامت وما ذالک على الله بعزيز. او په حديث مرفوع کي د ابو هريره ﷛ چي ابو داؤد او ابن خزيمه راوړی دی داسي راغلي دي للمؤذن يغفر مدي صوته وشهد له کل رطب ويابس" او عبد الله بن المبارک ﷫ له حضرت عمر ﷛ روايت کړی دی که چا لمونځ وکړی په يو ځای کي شجر و حجر شهد له يوم القيامة.

**درويش وايي**: چي احاديث مبارکه مقبول او پر حقيقت محمول دي عند من يؤمن بالله ورسوله که څه هم اهل عقل صرف وه ورته حديثو ته حيران پاته وي لان سماع الصوت عند اهل العقل الصرف انما يکون في ذوى العقول واما نحن نؤمن بها حملاً على الظاهر لانه تعالى على کل شئ قادر.

او ابو نعیم رحمه الله له معقل بن یسار رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي هغه وایي چي نبي علیه الصلوٰة والسلام وویل "لیس من یوم یأتي علی ابن آدم الا ینادي یا ابن آدم انا خلق جدید وانا فیما تعمل في خیرا علیک شهید لک غداً فاعمل في خیراً اشهد لک به غداً فاني لو مضیت لم ترني ابداً، ویقول اللیل مثل ذالک.

**درویش وایي:** چي مذکوره احادیث امام مظهري ذکر کړي دي.

**درویش وایي:** چي د یقول الاشهاد الآیة تفسیر پای ته ورسېدی بما لا مزید علیه ان شاً الله تعالی.

**پوه سه:** چي د قیامت د ورځي حساب دوه قسمه دي یو حساب د مناقشي بولي چي په حدیث شریف کي راغلي دي "من حسب عذب (د چا سره حساب وکړل سو هغه به په عذابېږي) علیه الصلوٰة والسلام چي دا وویل ام المؤمنین سیدتنا عائشة رضي الله عنها ورته وویل چي خدای ﷻ نه وایي چي "فسوف یحاسب حساباً یسراً" علیه الصلوٰة والسلام ورته وویل ذالک یا موفقة العرض ولکن من نقش یعني په حساب کي عُذب. یعني په حساب کي تنګي ورسره وسوه یعني ګناه کبائر او صغائر یې ټوله ورته بیان سوه او بیا سبب ددغو ګنهو ځني وپوښتي. نو هغه په عذابېږي. یعن مستحق د عذاب خو دی ان شاً الله عذبه وان شاً غفرله برحمته العامة او بشفاعة شافع.

**درویش وایي:** چي د حساب یسیر معنی هغه ده چي بخاري او مسلم او ګڼ شمیر محدثانو یې روایت کړی دی کما في تفسیر روح المعاني له ابن عمر رضي الله عنهما څخه قال سمعت رسول الله ﷺ یقول ان الله یدني المؤمن (خدای ﷻ وه ځان ته نږدې کړي مؤمن قرباً بلا کیف حتی یضع علیه کنفه (حتی چي خدای ﷻ کښېږدي پر هغه خپل بغل)

**درویش وایي:** چي دا عبارت د متشابهاتو څخه ددې حدیث دی "ویستره عن الناس ویقرره بذنوبه ویقول له اتعرف ذنب کذا فیقول رب اعرفه حتی اذا قرره بذنوبه وریٰ في نفسه انه قد هلک قال سترتها علیک في الدنیا واما اغفرها لک الیوم ثم یعطی کتاب حسناته الی اخیر الحدیث.

**ترجمه:** او له خلګو څخه یې پټ کړي، او خدای ﷻ دغه بنده اقرار کړي په خپلو ګنهو سره او خدای ﷻ ورته ووایي آیا ته خبر یې ستا په فلانی ګناه سره (درویش وایي چې دا تفصیل دی د اقرار په ګنهو سره) بنده ورته ووایي یا رب په خبر یم، حتی چې د ټولو ګنهو اقرار په وکړي او د بنده دا خیال وي په زړه کې چې هلاک سوې، یعني ستا ګنهو نه خدای پاک درته بیان کړل او تا هم ومنل نو په اخیراً حکم د دوږخ درباندې وکړي، نو خدای پاک ارحم الراحمین ورته ووایي چې دغه ګنهونه ما پر تا پټ کړي وه یعني خلګ مي نه وه درخبر کړي په دنیا کې او زه دغه ټوله ګنهونه دربخښم وتاته نه ورځ، وروسته یې کتاب د نېکیو ده ته ورکړل سي یعني چې ده په دنیا کې کړي وي په لاس یې ور کړي.

**درویش وایي:** چې اللهم حاسبنا حساباً یسیراً بفضلک وکرمک ورحمتک یا ارحم الراحمین وبجاه نبیک سید المرسلین ﷺ آمین یا رب العالمین.

**الَّذِينَ يَصُدُّونَ عَنْ سَبِيلِ اللَّهِ وَيَبْغُونَهَا عِوَجًا**

"الذین آه" صفت دی د ظالمین، یعني هغه ظالمان چې منع کوي خلګ له لارې څخه د خدای ﷻ یعني عن دین الاسلام.

**پوه سه:** چې ضمیر مؤنث راجع دی وه "سبیل الله" ته چې د سبیل لفظ مؤنث سماعي دی، او دوی بیانوي سبیل الله وه خلګو ته چې دا لار د حق او صواب څخه منصرف او کږه لاره ده، په ارشاد کې وایي چې دا حکم د دوی شامل وه تکذیب ته د قرآن هم دی وقولهم انه لیس من عند الله بل هو مخترع لمحمد صلی الله علیه وعلی آله وصحبه وسلم.

**وَهُمْ بِالْآخِرَةِ هُمْ كَافِرُونَ ﴿١٩﴾**

الواو حالیة، یعني حال دادی چې دوی کافران دي په اخرت سره یعن بعث بعد الموت هم نه مني وکذا ما یترتب علی البعث بعد الموت من الجنة والنار وغیرهما من امور الآخرة هم نه مني.

**پوه سه:** چې تکرار د "هم" د ضمیر لپاره د تاکید د کفر د دوی دی، او لپاره د اختصاص د کفر په دوی پوري کان کفر غیرهم لیس بشيء بمقابلة کفرهم.

أُولَٰئِكَ لَمْ يَكُونُوا مُعْجِزِينَ فِي الْأَرْضِ وَمَا كَانَ لَهُم مِّن دُونِ اللَّهِ مِنْ أَوْلِيَاءَ

او دوی نه دي عاجزه كونكي يعني د خداى ﷻ په مخكه كي يعني چي دوی ته دي عذاب في الدنيا وركړي كما عذب كفار مكة في بدر، او نسته دوی لره بېله خدايه كومک كونكی چي د خداى ﷻ له عذابه يې خلاص كړي ان شا.

**پوه سه**: چي اولياً چي يې جمع راوړي په اعتبار د تعدد د افرادو د كفارو كانه قيل ليس لاحد من الكفرة واحد من ولي وهذا كما قالوا مقابلة الجمع بالجمع يفيد توضيع الاحاد على الاحاد كما في لبسوا ثيابهم وركبوا دوابهم، والحاصل چي بعض كفره وو ته چي په دې دنيا عذاب نه وركوي دا امهال دی اهمال نه دی تاچي ټوله عذاب ددوی وه اخرت ته پاته سي كما قال:

يُضَاعَفُ لَهُمُ الْعَذَابُ ۚ مَا كَانُوا يَسْتَطِيعُونَ السَّمْعَ وَمَا كَانُوا يُبْصِرُونَ ﴿٢٠﴾

مضاعف او دوه چنده به سي دوی لره عذاب په اخرت كي يو ضلال خپل بل د اضلال د نورو اتباعو ددوی. دوی طاقت نه درلودی د اورېدلو په سمع د قبول وان كانوا يسمعون ظاهراً. او نه وه دوی چي حق دي ووېني په ليدلو د بصيرت او د عقل ولعل المراد بالحق معجزاته ﷺ وان كانوا يبصرونها برؤية البصر فهم صم عمی.

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ وَضَلَّ عَنْهُم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿٢١﴾

دوی هغه كسان دي چي په تاوان كي يې واقع كړه خپل ځانونه، ولې دوی رانيوی عبادت د بتانو په عبادت د خداى ﷻ او را يې نيوی دوږخ په جنت سره او دا شرا له عقل سليم څخه ډېره لېري شرا ده. او وركه به سي د دوی څخه شی چي دوی يې افترا كوله، يعني دروغ يې وله چي دوی به ويل هؤلاً يعني الاصنام شفعائنا عند الله.

لَا جَرَمَ أَنَّهُمْ فِي الْآخِرَةِ هُمُ الْأَخْسَرُونَ ﴿٢٢﴾

خواه مخواه (هرو مرو) دوی په اخرت كي لوی تاوان كونكي دي.

**پوه سه**: چي سيبويه وايي "ان" كلمه د "لا" لپاره د نفي د ماسبق دی او "جرم" فعل ماضي ده په معنی د حق او انهم الی اخيره فاعل د حرم دی. والتقدير لاينفعهم ذالک

الفعل وحق انهم آه، او بعض نحات وايي چې کلمه د "لا" لپاره د نفي ده. او "جرم" په معنى د کسب دی، او "انهم" آه یې مفعول دی او فاعل یې مادل علیه الکلام ای کسب ذالک خسرانهم وحاصل المعنى ما حصل من ذالک الا ظهور خسرانهم.

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَأَخْبَتُوا إِلَىٰ رَبِّهِمْ

په تحقیق هغه کسان چې ایمان یې راوړی وي یعني پر خدای ﷻ په وحدانیت سره او پر علیه الصلوٰة والسلام په رسالت سره او د قرآن په حقیقت سره الی غیر ذالک او عملونه کوي صالح یعني اوامر د خدای ﷻ پر ځای کوي او عاجزي یې مختاره کړې وي وخدای ﷻ ته. في القاموس خبت خشع وتواضع والخبت الشئ الحقیر انتهی، ابن عباس رضي الله عنهما وايي "خافوا" او قتاده رحمه الله وايي "انابوا" او مجاهد رحمه الله وايي "اطمئنانوا"

**درویش وايي:** چې دا معاني په حاصل کې اختلاف نه سره لري بلکې یو له بله سره لازم او ملزوم دي فتامل.

أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿٢٣﴾

دغه کسان خاوندان د جنت دي چې دوی به همیشه په جنت کې وي یعني نه مرګ لري نه درد، او نه ضعف لري کر الازمان ومر الدهور اللهم اجعلنا منهم آمين.

مَثَلُ الْفَرِيقَيْنِ كَالْأَعْمَىٰ وَالْأَصَمِّ وَالْبَصِيرِ وَالسَّمِيعِ ۚ

او مثال یعني حال ددې دوو ډلو چې مؤمنان او کافران دي لکه حال د ړانده او کاڼه دا حال او مثال د کافرانو دی. ولې چې کافرانو معجزات د قرآن او د علیه الصلوٰة والسلام په سترګو د عبرت او قبول نه لیدلې، او نه یې مواعظ د قرآن او نصاح د علیه الصلوٰة والسلام په سمع د قبول اورېدل. او بصیر او سمیع دا مثال او حال د مؤمنانو دی.

هَلْ يَسْتَوِيَانِ مَثَلًا ۚ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿٢٤﴾

آیا برابري دي دغه دوې ډلې (استفهام انکاري دی یعني نه دي سره برابري) از روی تمثیل او صفت او حال.

**بوه سه:** چي "مثلاً" تميز دی له فاعل څخه د "يستويان" او منقول له فاعليت څخه، پوه سه! چي د "تذكرون" اصل تتذكرون ؤ ادغمت التاء في الدال.

**وَلَقَدۡ أَرۡسَلۡنَا نُوحًا إِلَىٰ قَوۡمِهِۦٓ إِنِّي لَكُمۡ نَذِيرٞ مُّبِينٌ ﴿٢٥﴾**

(لام موطئه للقسم) په تحقيق موږ استولی ؤ نوح ﷺ وخپل قوم ته په دې سره چي زه تاسي لره بېروونکی يم ښکاره.

**درويش وايي:** چي بشير يې نه کړی ورضم لان الكفار يسوا من اهل البشارة كما لا يخفى.

**درويش وايي:** چي الواو ابتدائيه، تاريخ خبري كوي، نوح بن ملك بن متوشلخ بن ادريس ﷺ، تر ادريس ﷺ وروسته نوح ﷺ اول نبي دی. قال ابن عباس ﷺ چي نوح ﷺ د عمر پر څلوېښت كاله نبي سو، او نهه نيم سوه (۹۵۰) كاله د قوم په تبليغ سرگرم بخت ؤ، او وروسته تر طوفان شپېته (۶۰) كاله ژوندی ؤ او دده عمر يو زر او پينځوس (۱۰۵۰) كاله و، وقيل غير ذالک، او د نوح ﷺ ولادت تر آدم ﷺ وروسته تر هبوط مځكي ته (۶۴۲) او په دمشق كي دده كور ؤ او ځای د دفن يې كوفه ده وقال بعضهم في مغارة ابراهيم في بيت المقدس، او دده اصل نوم شاكر ؤ، او د نوح نوم يې په سبب د ډېري ژړا دی مشهور سو، درويش وايي چي تاريخ د نوح ﷺ ډېر اوږد دی وفيما ذكرناه كفاية

**أَن لَّا تَعۡبُدُوٓاْ إِلَّا ٱللَّهَۖ**

تاسي عبادت مه كوئ بېله الله ﷻ.

**پوه سه:** چي كلمه د باء مقدرة ای بان لاتعبدوا، او كلمه د باء متعلق په ارسلنا پوري ده، او كلمه د لا نافيه ده ای ارسلناه متلبساً بينهم من الشرک.

**إِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيۡكُمۡ عَذَابَ يَوۡمٍ أَلِيمٖ ﴿٢٦﴾**

زه بېرېږم پر تاسي يعني كه شرک ته دوام وركړي له عذاب څخه د ورځي اليم، چي مراد ځني يوم القيامة ده يا يوم الطوفان ده.

**پوه سه:** چي روح البيان او مظهري دواړه وايي چي "اليم" په معنی د مؤلم دی

پر صيغه د اسم مفعول او صفت د يوم دی او اسناد د الم وه ورځي ته مجازي دی ظرف ته نحو نهاره صائم. او روح البيان دا هم ويلي دي چي اليم دي صفت د عذاب وي، او اسناد و عذاب ته هم مجاز نحو جدجده.

**سوال**: عذاب خو منصوب دی، نو اليم ولي مجرور دی؟

**ځواب**: روح البيان وايي چي دا جر د جوار له سببه دی.

**درويش وايي**: چي ددې جر مثال هغه دی چي په آية الوضوء کي وارجلکم راغلی په يوه قرائت کي چي د شيعه گانو دا مذهب دی چي وظيفه د پښو مسح ده، ولي چي ارجلکم په جر سره عطف پر رؤسکم دی چي د سر وظيفه خو مسح ده لقوله تعلى وامسحوا برؤسکم. نو د پښو وظيفه په اوداسه کي هم مسح ده. او شيعه گان مسح پر موزو روا نه بولي. نو چي دوی په يو سفر کي د موزو وه اغوستلو ته مجبوره سي موزې دومره فراخه جوړوي چي لاس ورننباسي او پر پښو مسح وکړي حتی چي ددوی موزه ضرب المثل گرځېدلی ده، چي يو شی مثلاً خولی چي د سړي پر سر لو وې بل سړی ورته ووايي چي ځومره فراخه خولی دي ده لکه د شيعه موزه، او زموږ د اهل سنت په نېز جر د ارجلکم يا جر جوار دی يعني چي ارجلکم بالجر په جوار کي د رؤسکم راغلی دی چي هغه مجرور دی، او يا قرائت د نصب د ارجلکم چي قرائت متواتره دی محمول پر حال د عدم التخفف دی يعني عطف دی ايديکم چي عضو مغسول ده بالاجماع. او قرائت د جر محمول پر حال د تخفف يعني موزه يې په پښو وي نو دي مسح پر موزه کوي دري ورځي که مسافر وي. او يوه ورځ که مقيم وي. وقد روی عن امام اعظم ابی حنيفة رحمه الله اخاف الکفر علی من انکر المسح علی الخفين لان الاحاديث الواردة فيه متواترة المعنی.

**درويش وايي**: چي بيضاوي دا احتمال هم بيان کړی دی چي اليم دي په معنی د مولم وي پر صيغه د اسم فاعل چي صفت د عذاب حقيقةً. او بيضاوي د فعيل چي په معنی د مفعل وي پر صيغه د اسم فاعل دا قول د يو شاعر فصيح گرځولی دی ، شعر:

امن ريحانة الداعي السميع ......... يورقني واصحابي هجوع



Scanned by CamScanner

په دغه شعر کي سميع په معنی د مسمع پر صيغه د اسم فاعل وقصة هذا الشعر طويلة.

**درويش وايي:** چي فعيل په معنا د مفعل على صيغة الفاعل شاذ بلا ريبة. هذا تحقيق عذاب اليم في جميع القرآن العظيم فتفكر هداک الله لدرک الدقائق.

**فَقَالَ الْمَلَأُ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن قَوْمِهِ مَا نَرَاكَ إِلَّا بَشَرًا مِّثْلَنَا**

وويل (پوه سه! چي "ملأ" اشراف ته د هر قوم وايي چي ددوی په وجود سره په مجلس کي زړونه د خلگو له هيبته ډکه ‌ وي) هغه کسان چي شرک يې کاوه له قوم څخه د نوح عليه السلام موږ نه وينو تا مگر يو انسان زموږ غوندي.

تنبيه على جهالة المشركين: الوهيت او معبوديت چي ډېره لوړه رتبه ده پر بتانو جماداتو يې روا وبلل، او رسالت چي کښته مرتبه ده تر معبوديت پر انسان يې روا نه وبلل او سره ددې چي انسان خو تر جماد ډېر بالا دی.

**وَمَا نَرَاكَ اتَّبَعَكَ إِلَّا الَّذِينَ هُمْ أَرَاذِلُنَا بَادِيَ الرَّأْيِ**

او نه وينو موږ تا چي ستا متابعت دي کړی وي يعني ستا په دين مگر هغه کسانو چي هغوی رزيل او بېکاره خلگ دي زموږ.

**پوه سه:** چي جمع د رزيل ارزل ده او جمع الجمع يې اراذل ده مثل کلب جمع يې اکلب ده او جمع الجمع يې اکالب ده.

**سوال:** کلب خو اسم دی او رزيل خو صفت دی. نو څرنگه قياس صحيح دی؟

**جواب:** نعم رزيل خو صفت دی لکن په غلبة الاستعمال لکه اسم گرځېدلی دی "بادي الرأي" په ظاهر نظر چي ستا په حق يې د تعمق النظر څخه کار نه دی اخستی چي هغه کسان اصحاب د صنائع خسيسه وه لکه دوبيان" موچئ دوزان" وغيرهم. نو کله ته نبي وای، نو ستا متابعت به پوهانو او اشرافو خلگو کړی وای.

**درويش وايي:** چي دوی په دې نه پوهېدل چي اغلب تابعان د انبياً عليهم السلام هم دغه خلگ دي چي د خلگو په نظر اراذل گڼل کېږي او اشراف په سبب د تکبر سر د متابعت وچاته اولا نه کښته کوي" ولهذا کان اکثر التابعين لرسول الله ﷺ الفقراً والمساكين كبلال الحبشي رضي الله عنه وصهيب الرومي رضي الله عنه وابن مسعود رضي الله عنه وغيرهم.

وَمَا نَرٰى لَكُمْ عَلَيْنَا مِنْ فَضْلٍۭ

او مونږ نه وینو تاسي لره یعني یا نوح ومن اتبعک پر مونږ باندي بالابود په مال او جاه وجلال کي حتی مونږ ستاسي متابعت وکړو یعني د دوی خیال دا وو چي متابعت چي څوک کوي د مالدار سړي او د جاه وجلال والا سړي به کوي نه د فقیر او د غریب سړي.

بَلْ نَظُنُّكُمْ كٰذِبِيْنَ ۝٢٧

بلکه مونږ گمان کوو پر تا یا نوح او ستا پر تابعانو چي دروغ وایاست.

قَالَ يٰقَوْمِ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كُنْتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّيْ وَاٰتٰىنِيْ رَحْمَةً مِّنْ عِنْدِهٖ

نوح وویل ای قوم زما (فکسرة القوم عوض عن الیا) تاسي خبر راکړئ که چیري وم زه (کلمة الشک مبنیة علی حال المخاطبین) پر حجة واضحه چي زما د صدق په دعوی کي د نبوت دلیل دی د طرف څخه د خدای زما والمراد بالحجة الواضحة معجزاته" او ماته یې راکړی یعني خدای رحمت د خپل جانبه څخه، مراد له رحمت څخه هدایت او نبوت دی.

فَعُمِّيَتْ عَلَيْكُمْ ؕ اَنُلْزِمُكُمُوْهَا وَاَنْتُمْ لَهَا كٰرِهُوْنَ ۝٢٨

او هغه رحمت او نبوت یعني زما پر تاسي پوشیده سو چي انکار مُنْدي کوئ. آیا زه په مجبور کوم تاسي پر قبول د هدایت او نبوت خپل الهمزة للانکار یعني زما په طاقت کي اجبار ستاسي نسته لاني نذیر فقط او حال دا دی چي تاسي د هدایت څخه بد وړئ یعني نه یې قبله وئ" قال قتادة رحمه الله لو قدر الانبیاء علیهم السلام ان یلزموا قومهم الایمان لا لزموا لکن لایقدرون.

**درویش وایي:** چي تبلیغ د انبیا کرامو علیهم السلام په مثال د باران دی، باران چي پر سر کشاده مځکه اوري او په هغې مځکي کي نباتات شنه کوي او چي پر یوه مځکه سر پوښ پروت وي هغې ته فائده نه رسېږي.

وَيٰقَوْمِ لَآ اَسْـَٔلُكُمْ عَلَيْهِ مَالًا ۭ اِنْ اَجْرِيَ اِلَّا عَلَى اللّٰهِ
او اې قومه زما زه سوال نه کوم د تاسي څخه پر تبليغ باندي د مال.
**پوه سه:** چي تبليغ که څه هم نه دی ذکر سوی لکن د مقام څخه مفهوم دی" فلا يرد ما يرد" نه دی زما اجر يعني الثواب مگر نه پر خدای ﷻ .
**سوال:** على خو کلمه د الزام ده او پر خدای خو لزوم د شي نسته؟
**خواب:** کلمه د على مبني پر وعد او تفضل د خدای ﷻ ده.
وَمَآ اَنَا بِطَارِدِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ۭ
او نه هم زه شړونکی د هغو کسانو چي ايمان يې را وړی وي.
**پوه سه:** چي اشرافو او سردارانو د قوم نوح د ده څخه دا مطالبه کړې وه چي دا ستا اتباع چي اکثر يې فقرا او مساکين وه د مجلس څخه وشړه، نو به موږ ستا سره نشست او برخواست کوو، نو نوح ﷺ په جواب کي دا ورته وويل وما انا آه.
**درويش وايي:** چي ورته سوال رئيسانو د قريشو هم د عليه الصلوة والسلام څخه کړی وو مگر عليه الصلوة والسلام هم د دوی په خوله ونه کړه.
اِنَّهُمْ مُّلٰقُوْا رَبِّهِمْ وَلٰكِنِّيْٓ اَرٰىكُمْ قَوْمًا تَجْهَلُوْنَ ۝
ولي چي دا کسان د خدای ﷻ سره ملاقي کېږي، نو يا ددې خبري مقصد دادی چي دوی به د طار د شکايت و خدای ﷻ ته وکړي او يا مقصود دادی چي دوی په په ورځ د قيامت د خدای ﷻ سره ملاقي کېږي او د خدای پاک سره به قرب منزله لري فهم اوليا الله فکيف اطرد اوليا الله ﷻ، لکن زه بولم تاسي يو قوم ياست چي په قرب د اوليا الله ناخبره ياست. او يا په طلب کي د طرد ددوی له جهل څخه کار اخلئ او يا چي تاسي دوی ارازل بولئ دا د جهل خبره کوئ.
وَيٰقَوْمِ مَنْ يَّنْصُرُنِيْ مِنَ اللّٰهِ اِنْ طَرَدْتُّهُمْ ۭ اَفَلَا تَذَكَّرُوْنَ ۝
نوح ورته وويل اې قومه څوک به کومک وکړي زما سره من الله ای من غضب الله ويمنعني انتقامه که زه دوی وشړم سره ددې چي دوی د خدای ﷻ سره قرب او دوستي لري آيا تاسي نصيحت او پند نه اخلئ.

**بوه سه**: چي په قرار د قانون نحوي لکه چي دروېش څو واره په دې تفسير کې ذکر کړې هم دې چې همزه د استفهام چي پر حروف عاطفه وو داخل سي معطوف عليه يې تر همزه دمخه کېدای نه سي لفوات صدارتها بلکې وروسته تر همزه به معطوف عليه مناسب د مقام سره مقدر وي، والتقدير ههنا اتستمرون على ما انتم عليه من الجهل المذكور فلا تذكرون، په حديث صحيح نبوي کي راغلي دي "حب الفقرأ والمساكين من اخلاق الانبيأ والمرسلين، وبغض مجالستهم من اخلاق المنافقين" يو شاعر د فقراؤ په باره کي داسي وايي:

برفلک برتر بود اسرار او ............ شيئاً لله شيئاً لله کار او

وقيل من دق باب الكريم انفتح، څوک چي دروازه د کريم يعني د خدای پاک ورټکوي يعني طلب د قرب الهي وکړي، هغه کريم دروازه ورخلاصوي يعني خپل قريب يې ګرځوي.

وَلَآ أَقُولُ لَكُمْ عِندِى خَزَآئِنُ ٱللَّهِ

او ما تاسي ته نه دي ويلي (نو مضارع په معنی د ماضي ده) چي ما دعوی د نبوت کوله چي زما په تصرف کي دي خزانې د رزق د خدای ﷻ او اموال د خدای پاک، حتی چي تاسي دليل وواياست پر کذب زما په دعوی کي د نبوت په عدم د اموالو زما سره، کما قلتم وما نرى لكم علينا من فضل بل نظنكم كاذبين، کما مر شرح ذالک، ولي چي نبوت په اسبابو د دنيا نه دی مربوط.

وَلَآ أَعْلَمُ ٱلْغَيْبَ وَلَآ أَقُولُ إِنِّى مَلَكٌ وَلَآ أَقُولُ لِلَّذِينَ تَزْدَرِىٓ أَعْيُنُكُمْ

او نه زه دا وايم چي زه په غيب شيانو خبريم وكانهم سالوه عن بعض المغيبات او نه دا وايم وتاسي ته چي زه ملک يم حتی تنکرونه و تقولون ما انت الا بشر مثلنا، او زه نه وايم په شان کي د هغو کسانو چي ستاسي په سترګو کي حقير او ذليل راتله حيث قلتم فيهم هم اراذلنا آه.

لَن يُؤْتِيَهُمُ ٱللَّهُ خَيْرًا

چي دوی ته به خدای ﷻ خير بلکې خدای ﷻ په دې دنيا کي خير د ايمان او هدايت ورکړی دی او په اخيرت کي جنت او درجات د قرب وخدای ﷻ ته ورکوي

او د اشیان د دوی د پر خیر دی تر هغو اموالو چې تاسي ته یې په دنیا کي درکړی دي لان هذا فانیة وتلک باقیة الی ابد الآباد.

اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا فِیْۤ اَنْفُسِهِمْ ۚۖ اِنِّیْۤ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِیْنَ ﴿۳۱﴾

خدای ﷻ بنه خبر دی یعني تر ما او تاسي په هغه چې د دوی په زړو کي سته من محبة الله والعقائد الصحیحة والاخلاق الحسنة. په تحقیق سره په دغه وخت کي د وی وشړم د خپل مجلس څخه او یا دا ووایم چې لن یؤتیهم الله خیرا لکه تاسي چې وایاست د ظالمین د ډلې څخه یم.

**درویش وایي:** چې په حدیث صحیح نبوي ﷺ کي چې روایت یې ابو هریرة ﷺ کړی دی راغلي دي چې علیه الصلوة والسلام وویل "المسلم اخو المسلم" یو مسلمان د بل مسلمان ورور دی یعني په اخوة اسلامي سره "لا یظلمه چې یو پر بل به ظلم نه کوي چې خپل حق نه ورکوي یا غصب د مال څندي کوي وغیر ذالک من المظالم" ولا یخذله" او نه به یې نا میده کوي چې هغه کومک څندي وغوارې په دفع د ظالم بلکه کومک به ورسره کوي او د ظالمه بې خلاصه وي "ولا یحقره" او د حقارت په سترګو به نه ورته ګوري یعني تکبر به نه پر کوي بیا علیه الصلوة والسلام زیاته کړه" التقوی ههنا التقوی ههنا" ویشیر الی صدره" بېره د خدای دلته ده بېره د خدای دلته ده بېره د خدای دلته ده او اشاره به یې وسینې مبارکې ته وکړه یعني په زړه کي ده چې رئیس د ټولو اعضاؤ د بدن دی.

قَالُوْا یٰنُوْحُ قَدْ جٰدَلْتَنَا فَاَكْثَرْتَ جِدَالَنَا فَاْتِنَا بِمَا تَعِدُنَاۤ اِنْ كُنْتَ مِنَ الصّٰدِقِیْنَ ﴿۳۲﴾

قوم د نوح ﷺ ده ته وویل یا نوح زموږ سره دي ناحق بحثونه شروع کړي دي (کما هو معنی د مجادلة ده) او ډېر دي ناحقي بحثونه دي را سره کړي دي" مراد د دوی په ناحقي بحث سره وعظ او تبلیغ د نوح وو، ته راتګ وکړه په هغه شي سره چې زموږ سره وعده کوې یعني من العذاب که ته د رشتیا ویونکو څخه یې، په دعوې کي د نبوت او په دې کي چې موږ که ایمان نه راوړو موږ ته به خدای ﷻ عذاب را کوي.

قَالَ اِنَّمَا یَاْتِیْكُمْ بِهِ اللّٰهُ اِنْ شَآءَ وَمَاۤ اَنْتُمْ بِمُعْجِزِیْنَ ﴿۳۳﴾

نوح ﷺ ورته وویل چې راتګ په عذاب سره خاص خدای کوي که یې اراده وسي

یعني زما طاقت کې نه اتیان ستره او نه تعجیل، او تاسي نه یاست عـاجزه کونکي د خدای ﷻ د عذاب نه د دنیا څخه او نه د آخرت، او نه ځندي تښتېدای سئ.

**وَ لَا یَنۡفَعُکُمۡ نُصۡحِیۡۤ اِنۡ اَرَدۡتُّ اَنۡ اَنۡصَحَ لَکُمۡ اِنۡ کَانَ اللّٰهُ یُرِیۡدُ اَنۡ یُّغۡوِیَکُمۡ**

او فائده نه کوي وتاسي ته زما نصیحت که زه اراده وکړم چې زه نصیحت وکړم وتاسي ته که خدای اراده کړې وي د ګمراهۍ ستاسي.

**پوه سه:** چې د دې آیت څخه دا معلومه سوه چې اراده د خدای په اغوا پورې یې هم تعلق صحیح دی کما یدل علیه في آمنت بالله" دا قول والقدر خیره وشره من الله" یو شاعر وایي:

مؤمنان تولـه خیر وشر بولي د خدای څخه
کله پېښېږي نیک او بد د خپلي رایي څخه

او پر دې یې هم دلالت وکړی چې خلاف د مراد څخه د خدای محال دی خلافاً للمعتزلة دوی وایي چې اراده د خدای ﷻ وکافر ته د ایمانه ده لکن شیطان یې وایمان ته نه پرېږدي.

**حکایت:** یـو معتزلي عالم یو کافر ته نصیحت کاوه چې ایمان راوړه، کافر ورتـه وویل چې د خدای پاک اراده سوه زه به ایمان راوړم، معتزلي ملا ورتـه وویل چې د خدای خوسـتا د ایمان اراده ستره لکـن شیطان تـا وایمان تـه نه پرېږدي، نو کـافر ملا معتزلي تـه وویـل" فـاکون مع الشریک الاغلب" یعني شیطان چې پر خدای ﷻ غالبـه دی پـه اراده کې، نو زه د شیطان ملګری کېږم، نو معتزلي وجواب ته حیران سو کذا في شرح العقائد.

**درویش وایي:** چې مسئله د قدر ډېره مهمه ده د دې مسئلې تحقیق په دلائلو نقلیه او عقلیه وو سره موافق د مذهب سره د اهل السنت والجماعة په کتابو کې د متاخرینو د علم کلام مطالعه کړه لکه شرح العقائد او شرح المقاصد د علامه تفتازاني رحمه الله او یا مواقف کې د قاضي عضد الدین رحمه الله او د هغه پـه شرح کې چې د سید جرجاني رحمه الله ده او په کتاب د عبد الکریم الشهرستاني رحمه الله او نور وګوره.

**فائده:** في اعـراب الآیة" پـه روح المعاني کې وایي چې ان اردت آه شرط دی

جواب یې محذوف دی لدلالة ما سبق علیه یعني لا ینفعکم" او هغه یې جواب نه دی لامتناع تقدم الجواب علی الشرط علی الاصح الذي ذهب الیه البصریة یعني ان اردت ان انصح لکم لا ینفعکم نصحي" والجملة کلها دلیل قوله تعالی ان کان الله یرید ان یغویکم" والتقدیر ان کان الله یرید ان یغویکم فان اردت ان انصح لکم لا ینفعکم نصحي انتهی.

**درویش وایي:** چي چي کلام د روح المعاني اشاره مظهري او روح البیان هم کړې ده لکن بنهایة الاجمال حتی کاد ان لا یفهم المرام کل طالب فضلا عن معلمي هذا التفسیر وبکلام روح المعاني یفهم المرام بادنی تامل.

هُوَ رَبُّكُمْ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ۝

خدای ﷻ ستاسي رب او متصرف دی او خاص وخدای ته ستاسي رجوع ده یعني خدای ﷻ به تاسي ته جزا د اعمالو درکړي په ورځ د قیامت، **تنبیه:** پر خصوصیت باندي تقدیم د جار او مجرور دلالت کوي په الیه تحشرون کي.

أَمْ يَقُولُونَ افْتَرَاهُ

**پوه سه:** چي ام منقطعه په معنی د بل او بل دپاره د انتقال دی د ماقبله څخه او همزه دپاره د انکار دی په دې معنا چي دوی باید داسي قول نه وای کړی" والمعنی دوی وایي چي نوح پر خدای ﷻ دروغ وایي چي زه یې نبي یم.

قُلْ إِنِ افْتَرَيْتُهُ فَعَلَيَّ إِجْرَامِي وَأَنَا بَرِيءٌ مِّمَّا تُجْرِمُونَ ۝

ته ورته ووایه چي که ما پر خدای ﷻ دروغ ویلي وه نو د افترا گناه خو زما په غاړه ده تاسي په دې مابین کي ولي مداخله کوئ، او زه بېزاره یم ستاسي څخه یعني تاسي نسبت د افترا وماته کوې.

**پوه سه:** چي کلمه د ما په لفظ کي د مما مصدریه ده.

**پوه سه:** چي بغوي رحمه الله وایي چي ضحاک د ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت کړی دی" چي قوم د نوح علیه السلام به دی په لرگو وغیره دومره وواهه چي بېهوش به سو، نو به کراسة کي بې وپېچی او په یو خونه کي یې وغورځاوه چي مړ به سي دویمه ورځ چي پر هوش راغلی بیا یې دعوت الی الله شروع کړی حتی چي یو سپین

بړي د ده د قوم څخه چي لکړه ورسره او زوی د ده ورسره ملګری وو پلار ورزوی ته وويل لا يغرنک هذ الشيخ المجنون يعني نوح ﷺ زوی ورته وويل چي پلاره ته دا لکړه راکړه هغه چي لکړه ورکړه زوی يې نوح ﷺ پر سر وواهه چي سخت ټپي سو. نو خدای ﷻ ونوح ﷺ ته وويل يعني په وحي د جبرئيل ﷺ.

وَأُوحِيَ إِلَىٰ نُوحٍ أَنَّهُ لَن يُؤْمِنَ مِن قَوْمِكَ إِلَّا مَن قَدْ آمَنَ فَلَا تَبْتَئِسْ بِمَا كَانُوا يَفْعَلُونَ ﴿٣٦﴾

او وحي وکړل سوې ونوح ﷺ ته چي په تحقيق شان دادی چي هرگز ايمان نه راوړي ستا د قوم څخه مگر هغه کسان چي د مخه يې ايمان راوړی دی، نو ته حزن او غم مه کوه په هغو شيانو چي دوی يې فعل کوي يعني مامر من افعالهم عن قريب" نو خدای ﷻ دی يک لخته نا اميده کړی د ايمان څخه د دوی يعني بالا ځان مه ستړی کوه په تبليغ کي د دوی او خدای ﷻ وعده ورسره وکړه چي زه دوی هلاکوم او تا ته نجات درکوم، نو نوح ﷺ داسي ښرا وکړه کما في موضع آخر من القرآن" رب لا تذر على الارض من الكافرين ديارا.

وَاصْنَعِ الْفُلْكَ بِأَعْيُنِنَا وَوَحْيِنَا

او جوړه که کښتۍ متلبسا بحفظنا" پوه سه" چي تعبير د حفظ يې په عين سره وکړی مبالغة ولي چي غالبا حفظ د شي په سترګو سره کېږي، روح البيان وايي چي "باعيننا" حال دی د ضمير څخه د "واصنع" ومعناه محفوظا يعني چي هيڅ د دښمنانو څخه ستا به د دغه عمل څخه منع نه وکړي او ته به يې په عمل کي خطا نه وزې "ووحينا" او په وحي سره زموږ چي طريقه د جوړېدو به يې په ذريعه د جبرئيل دروښيو.

**پوه سه:** چي لفظ د فلک مفرد هم دی او جمع هم فرق يې تقديري دی که مفرد وي ضمه يې لکه د قفل ده او که جمع وي ضمه يې لکه اسد جمع د اسد ده په دې مقام کي مفرد دی او په هغه آيت کي جمع دی" والفلک التي تجري في البحر بقرينة تانيث الصفة وعلى هذا فقس ما في القرآن" د ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چي نوح ﷺ نه پوهېدی چي کښتۍ څرنګه جوړه کړي فاوحي الله اليه ان

ضعه مثل جؤ جؤ الطائر" لکه سینه د مرغه" نوح ﷺ که څه هم د بخاري کار نه ؤ کړی لکن په تیشه چي به یې هر ځای د لرګي وواهه خطا کېدی نه.

**درویش وایي:** چي اهل تاریخ بعض وایې چي طول د کښتی (۳۰۰) ګزه یعني تر اوږو پوري ذراع او عرض یې (۵۰) ذراع وو او لوړ والی په هوا کي (۳۰) ګزه وو او بعض وایې چي طول یې (۱۲۰۰) ګزه وو" او عرض یې (۶۰۰) ګزه وو او دروازه پر هر تقدیر په عرض کي وه" ومن الغرائب ما فی حیوة الحیوان" چي اول سړی چي سپی یې د حراست دپاره خوندي کړی دی نوح ﷺ دی" هغه داسي چي نوح ﷺ وخدای ﷻ ته وویل یا رب زه تا امر کړم د کښتی په جوړېدو سره او زه چي د ورځي کار پر وکړم" د شپې چي زه په خوارړه خوب بېده یم کافران د قوم راسي د شپې تول تختې بېې سره وکاږي. نو څرنګه او کله په دا کښتی پایه تکمیل ورسېږي خدای ﷻ امر ورکړی چي سپی د نګهبانی د پاره وساته. نو وروسته چي به نوح ﷺ بیده سو، نو سپي به نګهباني کوله چي کفار به د شپې راغله سپي به غفا ورته کول نوح ﷺ بې را وېښ کړی نوح ﷺ به تبر پسې واخستی او سپي به هم خپلي هلي ځلې کولې او هغه څو نفر چي د تخریب د کښتی دپاره راغلي وه په ځغاسته به ځندي ولاړل د سپي شپه رونړول تر اوسه عادت دی چي سپېدې را وچوي دی بېدېږي.

**فائده:** سپی په وفاداری کي ضرب مثل دی.

**حکایت:** چشم دید یو سړی وو په کندهار کي یو سپی یې درلودی" هغه سړی وفات سو هدیره یې د کندهار دباندي د دوراهي سره جنازه چي خلګو را واخسته سپی هم پسې را رهي سو خیر مړی چي یې ښخ کړی خلګ ځندي ولاړه سپی ورپاته سو هر څو چي قریبانو د مړي په وکړه سپی د مالک د قبره نه تلی مابنام یې غوښې او ډوډی او په یوه کاشین کي اوبه ورته راوړې سپي هغه وخوړله لکن د قبر څخه په هېڅ توګه نه تلی قریبانو د مړي به په زور بو تلی لکن چي ایله به ئې کړی بېرته به د مالک قبر ته راتلی آخیر قریبانو د مړي مجبور سول د قبر سره یې خونګې ورجوړه کړه دې خبري شهرت پیدا کړی نو او ښځي به سره د

مطعوماتو د سپي ملاقات ته راتله خير يو كال سپى يا شپږ مياشتي سپى ژوندى او بيا مړ سو خلكو د مالك د څنګه دفن كړى، بيت...:

سګ اصحاب كهف روزي چند ........ پى مردان ګرفت مردم شد
پسر نوح با بدان بنشست ........ خا نه نبو تش ګم شد

**مسئله:** اقتناء الكلب لحفظ الدار عن السراق "او لحفظ الزرع" او للمواشي وامثالها من الضروريات جائز شرعا او د جنګولو دپاره كه پر طرز د ساتېري وي او كه د قمار دپاره وي حرام دى شرعا والمعتاد لاهل الفسق هو النوع الثاني خصوصا في كندهار.

## وَلَا تُخَاطِبْنِي فِي الَّذِينَ ظَلَمُوا إِنَّهُم مُّغْرَقُونَ

او ته به يا نوح ماته خواست په نجات كي د ظالمانو نه كوې چي دوئ محكوم بالاغراق دي په ازل كي، نو عذاب د دوى څخه نه دفع كېږي.

**پوه سه:** چي د محكوم بالاغراق فائده دا ده چي في الحال خو دوى نه دي غرق سوي بل فى الاستقبال البعيد.

**فائده:** روح البيان وايي چي مراد د الذين ظلموا څخه كنعان د نوح ﷺ زوى او واعله د نوح ﷺ زوجه او د كنعان مور ده" او روح المعاني وايي چي مراد د الذين ظلموا مطلق هغه كسان مراد دى چي ايمان يې نه وي را وړى او بيا په قيل سره كنعان او واعله را وړي دي وقال ليس بشئ والله اعلم.

## وَيَصْنَعُ الْفُلْكَ

**سوال:** يصنع الفلك خو مضارع ده او د قرآن د نزول په وخت كي خو صنع الفلك ماضي بعيدوه باولوف سنة.

**ځواب:** دې ته يعني چي د ماضي څخه تعبير په مضارع سره وكړى حكاية د حالت ماضيه وايي په امر غريب كي نحاة دا تعبير روا بولي بلكه بليغ

اختلاف الروايات" مجاهد وايي چي په درې كاله كي كښتى تكميل سوه" او كعب الاحبار وايي چي په څلوېښت كاله كي تكميل سوه وقيل په شپيته كاله كي تكميل سوه" او بعض وايي په سل (۱۰۰) كاله كي" او بعض وايي په څلور

سوه، کاله کي په ځای کي د جوړېدو يې هم اختلاف دی. قيل في الكوفة" وقيل في الهند" وقيل في ارض الجزيرة" وقيل في ارض الشام" او د کوم لرگي څخه وه، په دې کي هم اختلاف دی عمر بن الحارث وايي د جبل لبنان د درختي د شمشاد او بعض وايي چي په تورات کي راغلي چي د صنوبر د درختي لرگی ؤ.

**درويش وايي:** چي په هر صورت دا لرگی چا ورته راوړه دا خو بدهي خبره ده چي نوح ﷺ پخپله خو نه پسي تلی البته ملکو به ورته راوړه.

**پوښتنه:** نوح ﷺ دا دونه کار د کشتی یوازي کاوه لکه ظاهره د قرآن چي دلالت پر کوي واصنع الفلک؟.

**ځواب:** په بعض رواياتو کي راغلي دي چي سام" او حام" او يافث" د نوح زامن هم ورسره بخت وه په کار کي د کښتی. او په بعض رواياتو کي راغلي دي چي د نوح ﷺ سره ډېر مزدوران ورسره وه والله اعلم.

لکن په صحيح خبر کي راغلي دي چي په طول او زمانه کي د کښتی جوړولو لکه چي ذکر سوه د نوح د قوم تولي ښځي عقيم او وچي کړی تا چي عذاب آلهي صرف مکلفين کافرانو ته نازل سي، والله اعلم بحقيقة الحال.

**درويش وايي:** چي علامه بغدادي السيد محمود الآلوسي رحمه الله په روح المعاني کي دا مذکوره اختلافات په ډېر بليغ عبارت تر تنقيد لاندي را وستلي دي عبارت يې دا دی" والسفينة في تحقيق الحال فيما ارى لا تصلح للركوب فيها اذ هي عبر سالمة من عيب فالحرى بحال من لايميل الى الفضول ان يؤمن بان نوح ﷺ صنع الفلک حسبما قص الله تعالى في كتابه العزيز" ولا يخوض في مقدار طولها وعرضها وارتفاعها او من اى خشب صنعها وبكم مدة اتم عملها الى غير ذالک مما لم يشرحه کتاب الله ولم تبينه السنة الصحيحة هذا تم کلامه.

**درويش وايي:** چي والمختار عندي ذالک لان هذه الاختلافات ممالا يعود الى طائل والجمع بينها خارج عن حدود الامکان ويشوش اذهان الطالبين.

**درويش وايي:** چي هر وخت چي به قوم د ده تېريدله او دی به پخپله کښتی بخت وو. نو لکه خدای ﷻ چي بيان کړل داسي کارونه بې کوله.

وَكُلَّمَا مَرَّ عَلَيْهِ مَلَأٌ مِّنْ قَوْمِهِ سَخِرُوا مِنْهُ

هر وخت چي به تیریده پر نوح يو جماعت د قوم څخه د ده مسخري بي پر کولې پر ده او پسخند بې پر واهه بعضو به ورته وویل چي ته دا څه شی جوړه وې ده به ورته ويل چي خونه جوړوم چي پر او بو به رفتار کوي دوی به شند دخندا ولاړه او ورته ويل بې چي ته خو دا خونه په دښت کي جوړه وې دلته خو نږدې هم او به نسته. او بعضو به ورته ويل "صرت نجارا بعد ما كنت نبيا" د پسخند د لاري، بعضو به ورته ويل چي د نبوت جنون يې د دماغه ووتی اوس يې د نجاري کار پسي را واخستی وامثال ذالک من الخرافات.

قَالَ إِن تَسْخَرُوا مِنَّا فَإِنَّا نَسْخَرُ مِنكُمْ كَمَا تَسْخَرُونَ ﴿٣٨﴾

نوح ﷺ به دوی ته وويل كه تاسي مسخري کوئ پر موږ، نو موږ به بيا مسخري وکړو پر تاسي يعني په هغه وخت کي چي تاسي عذاب د خدای بالغرق په دنیا کي وويني. او په آخرة کي بالحرق في النار "كما تسخرون" يعني سخرية مثل سخرتكم عند روية العذاب.

**سوال:** پسخند او مسخري د نبوت د منصب څخه لیري کار دی؟

**ځواب:** مراد د نوح ﷺ خو خوشحالي په غرق د دوی ده لکن تعبير يې په نسخر منكم وکړی مشاكلة " لكه جزأ سيئة سيئة بمثلها" او بعض مفسرين وايي چي تاسي پر موږ د جاهلانو حکم کوئ موږ به پر تاسي د جاهلانو حکم وکړو چي عذاب د غرق نازل سي، او بعض مفسرين وايي چي كه تاسي په موږ پسخند وهې تاسي به وويني عاقبت د خپل پسخند.

**فائده:** لفظ د انا متكلم مع الغير او صيغه د نسخر دلالت کوي چي د نوح سره په جوړولو کي د کښتی. نور ملگري هم وه" يعني حام او سام ويافث او نور مزدوران وهو الظاهر كما مر.

فَسَوْفَ تَعْلَمُونَ مَن يَأْتِيهِ عَذَابٌ يُخْزِيهِ وَيَحِلُّ عَلَيْهِ عَذَابٌ مُّقِيمٌ ﴿٣٩﴾

ژر دی چي پوه به سئ تاسي چي چاته راځي يو عذاب چي دی رسوا کړي يعني په دنیا کي وهو عذاب الغرق او حلول يعني واقع كبري عذاب يعني عذاب في

البرزخ المتصل بعذاب النار الدائم وبئس المصير هو.

**یوه سه**: چي مظهري رحمه الله په نقل د بغوي څخه ګډ وړه او د عقل څخه ليري روايات راوړي دي چي مطالعه کونکي په حيرت کي اچوي وقد مر من كلام روح المعاني ما يرد امثال تلك الروايات الضعيفة والاكتفا بما في القرآن والسنة الصحيحة.... بيت:

ومن مذهبي حب الديار لاهلها ..... وللناس فيما يعشقون مذاهب.

**یوه سه**: چي کښتي د نوح عليه السلام په اتفاق د راويانو درې منزله وه. لکن په راکبينو کي ده درې منزله اختلاف دی بعض وايي چي ابن جرير يې د ابن عباس رضي الله عنه څخه هم روايت کړی دی چي په لاندي طبقه کي حيوانات يعني دواب او وحشي حيوانات وه او په دوهمه طبقه کي انواع د مرغانو وه. او په اعلى درجه کي انسانان وه. او په شرح کي د خلاصة السير وايي چي په کښته طبقه کي حيوانات اهلي او وحشي او مرغان په ګډه وه او په وسطي طبقه کي خوراکي شيان او کالي د اغوستلو او خوړي اوبه وغيرها من الضروريات او په اعلى طبقه کي انسانان وه وهو الاوجه. والاول هو المشهور.

حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَ أَمۡرُنَا وَفَارَ ٱلتَّنُّورُ

"حتى" غاية د يصنع وما بينهما جمل معترضه دی" والمعنى يصنع نوح السفينة حتى وقت الطوفان يعني تر وخته پوري چي زموږ امر د غرق او طوفان ورسېدئ او اوبه پيدا سوې او جوش يې وکړی په تناره کي چي يوه علامه وه د نوح عليه السلام لپاره د سپرتيا كما سيأتي.

**درويش وايي**: چي په اتفاق د مفسرينو رحمهم الله تنور عجمي لفظ دی لکن عربو وخپل ژبي ته رانقل کړی دی. الاختلاف في التنور: (۱) له تنور څخه مراد هغه متعارف تنور د ډوډی د پخېدلو دی په نيز د جمهورو. له مجاهد او حسن بصرين رحمهما الله څخه روايت دی چي دا تنور د بي بي حوا عليها السلام زوجة آدم عليه السلام وُ چي دې به ډوډی پکښي پخولله او دا تنور د ډېر و وُ او بيا نوح عليه السلام ته ورسېدی (۲) مراد له تنور څخه معين تنور نه دی بلکې جنس تنور مراد دی. والمراد فار الما في التنانير. او دا د قدرت الهي يوه لويه برخه ده (۳) له ابن عباس رضي الله عنهما او عکرمه او

زهري رحمهما الله څخه روایت دی چي مراد له تنور څخه متعارف تنور نه دی بلکې مخ د مځکي مراد دی یعني تر مځکي اوبه راووتې کما في قوله تعالی "وفجرنا الارض عیوناً" پوه سه! چي مځکي ته یې تنور ووایه لان التنانیر مبنیة علیها (۴) دا تنور په کوفه کي وُ د اوسني مسجد پر ځای په کوفه کي (۵) دا یو تنور وُ په هند کي (٦) په مځکه کي د جزیره یو تنور یعني په عین الورة کي (۷) په شام کي یو تنور وُ (۸) له تنور څخه مراد لوړه حصه د مځکي ده (۹) له تنور څخه مراد هغه تنور دی چي د نوح ﷺ کور والا به دودی پر پخوله.

**درویش وایي:** چي وهو الاقرب الی الصواب او دا رایه هم صحیح ده چي دا تنور په کوفه کي وُ او کښتي هم په کوفه کي جوړه سوې ده، ولي چي دا رایه او دمخه رایي چي موږ اقرب الی الصواب وبللې یو له بله سمون سره لري، والله اعلم بالصواب.

## قُلْنَا احْمِلْ فِيهَا مِن كُلٍّ زَوْجَيْنِ اثْنَيْنِ

درسره سپاره کړه په فلک کي، تانیث د ضمیر باعتبار الفلک بمعنی السفینة.

**پوه سه:** چي دا جمله یا مستانفه ده او یا جواب د "اذا" "من کل" ای من کل نوع من الحیوانات چي نفع پر اخلي هغه کسان چي په کښتي نجات پیدا کړي او ددوی اولادونه وروسته تر دوی او عادت د خدای ﷻ دادی ببله ذکره او انثی په خلق سره د هغو نفع نه اخستل کېږي.

**پوه سه!** چي جار او مجرور یعني "من کل" متعلق په "احمل" پوري دی.

**پوه سه:** چي زوجین تثنیه د زوج ده چي مقابل یې فرد دی، دوه حیوانان چي یو جنس وي هر یو د هغه بل زوج دی فالذکر زوج للانثی والانثی زوج للذکر لان بانضمام ایهما الی الآخر یحصل الزوج یعني جوت مقابل الفرد کزوج الخف، او بعض خلګ چي ګمان کوي چي زوج ونر ته وایي او ښځي ته زوجة وایي هغه غلطه ده او مخالفت دی له دې موجوده آیت څخه.

**سوال:** په دې موجوده آیت کي تغلیب دی د ذکر پر انثی کالابوین والقمرین وغیر ذالک؟

**ځواب:** په هغه آیت کي به څه وایي "یا آدم اسکن انت وزوجک الجنة الآیة"

**اعراب:** پوه سه! چي زوجين مفعول د احمل دی او اثنين يې تاکيد دی. بغوي وايي چي په قصه کي د کښتنی. د نوح ﷺ راغلي دي چي زه څرنګه له هر نوع څخه دوه نر او ښځي سره جمع کړم او په کښتنۍ کي يې سپاره کړم؟ نو خدای ﷻ پر له حيوانات حتی درندګان او وحوش او طيورو وه ده ته جمع کړه چي راسته لاس به يې هر نوع ته وغځاوه پر نر به واقع سو او چپه لاس به يې پر ښځه واقع سو فحملهما في السفينة وحرم الباقي من ذالک النوع.

**فائده:** حسن بصري رحمه الله وايي چي په کښتنی کي نوح ﷺ نه دي سپاره کړي هغه چي له خاورو او يا د عفوفاتو څخه پيدا کېږي لکه حشرات الارض يا کيکي او غوماشي بلکي هغه حيوانات چي له نطفي يا له هګی څخه پيدا کېږي. شيخ سمرقندي رحمه الله په بحر الکلام کي وايي چي اول په کښتنی کي نوح ﷺ د مېږيانو له نوع څخه نر او ښځه واخستل او اخير يې خر او خره. او په تفسير تبيان کي وايي چي خر چي يې په کښتنی کي سپاروه ابليس يې لکی ټينګه کړه خره به د مخ طرف کښتنی ته دننه کړی او د لکی. خوا يې نه پورته کېده. نو د نوح ﷺ درد ورته راغلی او داسي يې وويل يا ملعون پورته سه خر پورته سو، نوح ﷺ د سپرو د کتلو لپاره په کښتنی ورننوتی ابليس سره د زوج ناست و، نوح ﷺ ورته وويل چي ولي زما بې اجازې راغلي ياست؟ ابليس ورته وويل چي تا اجازه راکړه هغه ورته وويل چي کله ما اجازه درکړه؟ ابليس ورته وويل چي تا خر سپاره وه تا ورته وويل ادخل يا ملعون، ملعون خو خر نه و بلکي زه وم. نو نوح ﷺ په کښتنی کي پرېښو. او په صحيح حديث کي راغلي دي "اذا سمعتم نهاق الحمير فتعوذوا بالله من الشيطان فانها رئت شيطاناً واذا سمعتم صوت الديکة فاسئلوا الله من فضيلة فانها رئت ملکاً او کما قال صلعم.

وَأَهْلَكَ إِلَّا مَنْ سَبَقَ عَلَيْهِ الْقَوْلُ وَمَنْ آمَنَ ۚ وَمَا آمَنَ مَعَهُ إِلَّا قَلِيلٌ ﴿٤٠﴾

او سپاره که په کښتنی. کي ستا اهل چي مراد ماينه د نوح ﷺ او درې زامن دده دي، يعني حام، سام او يافث او ددوی مايني مګر مه داخلوه هغه اهل ستا چي د خدای ﷻ د هلاک ددوی قول دمخه سوی دی چي کافره ماينه دده وه چي نوم يې

واغله وه او د هغې زوی کنعان چي هغه هم کافر ؤ، پوه سه! چي "واهلک" عطف دی پر مفعول د "احمل" اعني زوجين، او داغه رنگه داخل کړه کښتی ته هغه کسان چي ايمان يې راوړی وي، او نه ؤ ايمان راوړی دده سره مگر لږو کسانو.

**پوه سه**: چي په عدد کي د "من آمن" اختلاف دی، قتاده، ابن جريج او محمد بن کعب رحمهم الله وايي چي په کښتی کي اته نفره وه، نوح وزوجته او دري دده زامن او درې ښځي او ماينې دده د زامنو، پوه سه! چي دا قول صريح مخالف د قرآن څخه دی، ولي چي من آمن عطف پر اهلک دی والعطف يقتضی المغايرة. او مقاتل وايي چي من آمن معه دو اوويا (۷۲) نفره وه نر او ښځي او درې د نوح زامن او درې د هغو ماينې چي گرده اته اوويا نر او ښځي وې، او له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي ټوله د کښتی د نوح عليه السلام اتيا کسه نران وه او د ښځو تعداد يې نه دی بيان کړی.

**درويش وايي**: چي مار او لړم هم نوح عليه السلام ته راغله چي موږ سپاره کړه، نوح ورته وويل چي تاسي خو سبب د ضرر او بلا ياست تاسي نه سپروم، دوی ورته وويل چي موږ سپاره کړه موږ سپاره کړه موږ ضمانت درکوو چي ستا نوم څوک واخلي موږ ضرر نه وررسوو، نو که څوک له ضرر څخه د مار يا لړم بيربيږي دا آيت دي وايي سلام علی نوح في العالمين نو ددوی له ضرر څخه به په امن کي وي.

**وَقَالَ ارْكَبُوا فِيهَا**

او نوح عليه السلام وويل ومن معه من رجال المؤمنين بعد ادخال من امره بحمله من النسوة" چي سپاره سئ په کښتی کي، په يوه روايت کي راغلي دي چي نوح د آدم عليه السلام تابوت هم ورسره اخستی ؤ او هغه تابوت يې د نرو او ښځو په منځ کي ايښی ؤ.

**سوال**: رکوب خو مفعول ته متعدي دی نحو رکبت الدابة، او گاهي چي متعدي کيږي هم په علی سره متعدي کيږي نحو رکبت علی الفرس، نو په دې آيت کي کلمه د في ولي متعدي سوې ده؟

**ځواب**: دلته يې ارکبوا متضمن معنی لره د ادخلوا گرځولی دی نحو دخلت في الدار.

**پوښتنه**: دخول ته د کښتی يې رکوب ولي وويل؟

**ځواب:** کښتي په اوبو کي لکه مرکوب په وجه ځکه کي ده. هذا ماقاله صاحب روح المعاني والمظهري ناقلين من القاضي البيضاوي، او بعض مفسرين رحمهم الله د اول سوال په ځواب کي داسي وايي چي تقدير د آيت داسي دی ارکبوا الماء فيها، نو ارکبوا وه مفعول ته متعدي بنفسه دی يعني الماء. او بعض مفسرين وايي چي کلمه د في زائده ده لپاره د فاصل الکلام ارکبوها.

**درويش وايي:** چي اول ځواب اولی واحری بالقبول دی لان التضمين شائع في کلام العرب حتی صار کانه حقيقة بخلاف تقدير اللفظ او زيادة الکلمة. ولي چي زيادت ته لفظ يا تقدير ته لفظ په قرآن پاک کي هلته تګ کېږي چي بله لار نه وي يعني عند الضرورة مراعاة للقرآن الکريم وحفظاً له من التوجهات العندية. حسين کاشفي رحمه الله په تفسير حسيني کي وايي: نوح عليه السلام ايشانرا بنزديک کشتي آورده وسرپوشي که ترتيب داده بود بلای کشتي پوشيده واز زمين آب عذاب جوشيدن گرفت واز آسمان آب بلا فرود آغاز کرد انتهی.

بِسْمِ اللّٰهِ مَجْرٖىهَا وَمُرْسٰىهَاؕ

**يو سه:** چي دا جمله حال ده له ضمير مرفوع څخه د "ارکبوا" والمعنی سپاره سئ په کښتي کي حال کون ستاسي چي د خدای جل جلاله نوم واياست يا بسم الله واياست په وخت کي د تللو د کښتي او په وخت کي د درېدلو د کښتي او يا په ځای کي د اجراء او ارساء.

**يو سه:** چي "مجری" او "مرسی" صيغه د ظرف زمان او مکان او مصدر ميمي ټولو احتمال لري، لکن د مصدريت پر تقدير مضاف محذوف دی ای وقت اجراها وارساها نحو قول القائل آتيک خفوق النجم ای وقت خفوقها.

اِنَّ رَبِّيْ لَغَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۴۱﴾

په تحقيق ستا خدای بخښونکی او مهربان دی يعني که د خدای جل جلاله مغفرت د ښئاتو ستاسي نه وای او رحمت يې نه وای تاسي ته به يې نجات نه وای درکړی. بغوي له ضحاک رحمه الله څخه روايت کړی دی چي څه وخت چي به نوح عليه السلام د

کښتی روانېدل غوښتل نو به یې داسي ویل بسم الله مجرت، او چي د کښتی توقف به یې غوښتی داسي به یې ویل بسم الله رست، نو به کښتی هغه سي کېدل. په "غفور رحیم" کي اشاره ودې ته ده چي ستاسي نجات پر خدای پاک لازم او واجب نه دی بلکې په سبب د محض فضل او مغفرت او رحمت دی کما هو مذهب اهل السنة والجماعة خلافاً للمعتزلة، دوی وایي چي اصلح د بنده پر خدای واجب دی چي کوي به یې. والتفصیل والدلائل في کتب العقائد.

د خدای پاک عجیب قدرت: تاریخ وایي چي څه وخت چي نوح ﷺ کښتی جوړوله یوه سپین سرې ښځه چي مؤمنه وه راغله نوح ﷺ ته یې وویل چي دا ته څه شی جوړوې؟ نوح ﷺ ورته وویل چي دا د مؤمنانو د نجات شی دی چي طوفان نازلېږي او کفار غرقېږي! سپین سرې ورته وویل چي بیا ما خبره کړه او په کښتی کي مي درسره بوزه، نوح ﷺ ورته وویل ښه دی. نو هغه ؤ چي نوح ﷺ د حیواناتو د سپرېدلو په کشمکش اخته ؤ بوډۍ یې ګرسره له خیاله ووتله. خیر طوفان چي نازل سو او کافران غرق سوه، په دې وخت کي د نوح ﷺ سپین سرې ورپیاد سوه ډېر یې زړه له غمه ډک سو چي هغه خوارکی به د کفارو په جمله کي غرقه سوې وي، نو څرنګه چي کښتی مځکي ته راکښته سوه او مؤمنان ټوله روغ رمټ صحیح سالم له کښتی څخه راکښته سوه، نوح ﷺ د سپین سري کور ته ورغلی، سپین سرې په خپل کور کي په یو کار بخته وه. نوح چي یې ولیدی ورته وه یې ویل چي د طوفان نېټه او د کافرانو د غرقېدلو نېټه لا نه ده رارسېدلې، نوح ﷺ ورته وویل چي هغه خو تېره سوه، او نوح ﷺ د سپین سري په حال کي په تعجب کي غرق سو چي انها قد انجاها الله جلت قدرته في بیتها من غیر رکوب في السفینة ولم ترى الطوفان.

**درویش وایي:** چي د دنیا اسباب ټوله اسباب عادیه دي او پټ قدرت الهي کار فرما دی في کل شیئ...... ع

دا باران چي پر همه وو مځکو اوري........ مشرف کړی ذات د کیمیا ولي

بقدر الکد تکتسب المعالی........ ومن طلب العلی سهر اللیالی

وَهِيَ تَجْرِي بِهِمْ فِي مَوْجٍ كَالْجِبَالِ

**پوه سه:** چې دا جمله په اركبوا فيها الخ پورې تعلق لري يعني فركبوا فيها بسم الله مجريها ومرساها ويونكي او كښتۍ روانه سوه او دوی پکښې ناست وه په ځپو کې يعني طوفان د اوبو چې هره ځپه به لکه غرونه يعني په بلندۍ کې.

**پوه سه:** چې "موج" جمع د موجدة ده لکه تمر جمع د تمرة على مذهب. د باد تندوالي پر ډېرو اوبو لکه د درياب سبب د ځپو ګرځي.

وَنَادَىٰ نُوحٌ ابْنَهُ وَكَانَ فِي مَعْزِلٍ يَا بُنَيَّ ارْكَب مَّعَنَا وَلَا تَكُن مَّعَ الْكَافِرِينَ ﴿٤٢﴾

او نارې کړې نوح ﷺ وخپل زوی ته، چې نوم يې کنعان ؤ او کافر ؤ، چې زويه زموږ سره سپور سه په کښتۍ کې او مه ملګری کېږه د کافرانو. او کنعان ګوښه ولاړ ؤ.

**فائده:** بني تصغير دی لپاره د شفقت لکه په پښتو کې زوی ته وايي زويکه.

**پوه سه:** چې چې معنا د "اركب" داده چې ايمان راوړه او زموږ سره سپور سه كما يدل عليه قوله تعالى.

قَالَ سَآوِي إِلَىٰ جَبَلٍ يَعْصِمُنِي مِنَ الْمَاءِ

کنعان ورته وويل، زه به پناه له غرق ځخه وروړم وه يوه غره ته چې ما له غرق ځخه د اوبو وساتي، دده غرض دا ؤ چې نه ايمان راوړم او نه ستاسي په کښتۍ کې سپرېږم د ساتنې ځايونه له اوبو ځخه نور هم ډېر دي لکه غرونه.

قَالَ لَا عَاصِمَ الْيَوْمَ مِنْ أَمْرِ اللَّهِ إِلَّا مَن رَّحِمَ

نوح ﷺ زوی ته وويل چې ساتونکی نسته نن ورځ له عذابه ځخه د خدای ﷻ چې غرق دی مګر نه هغه څوک چې رحم پر وکړي يعني ارحم الراحمين الله ﷻ كذا في روح المعاني وروح البيان والقرطبي والمظهري وغيرها.

**پوه سه:** چې تعبير په من ابهامي سره کول او بيا په رحم سره تفصيل کول لپاره د تعظيم د رب جليل دی كما لا يخفى. او بعض مفسرين رحمهم الله وايي چې عاصم په معنی د معصوم دی لکه من ماء دافق ای مدفوق او يا كعيشة راضية ای مرضية على توجيه فالمعنى لامعصوم من عذاب الله الا من رحمه الله.

**درويش وايي:** چې پر مذکوره تفسيرو استثنا متصله ده. او بعض مفسرين

وايي چي په ايت كي استثنا منقطع ده والمعنى لكن من رحمه الله هو المعصوم لا الاوى الى الجبل.

وَحَالَ بَيْنَهُمَا الْمَوْجُ فَكَانَ مِنَ الْمُغْرَقِينَ

او حائل سوه په منځ كي د نوح ﷺ او د زوى دده كنعان څپه د اوبو. نو وگرځيدى زوى يي له غرق شده گانو څخه. نو "كان" په معنى د صار دى او يا كان پر خپل ظاهر دى اى فكان في علم الله من المغرقين على محاذات قوله تعالى في حق ابليس وكان من الكافرين في التوجيهين المذكورين.

**اختلاف:** بعض راويان وايي چي اوبه د غرو پر سرو څلويښت گزه لوړي سوې او بعض وايي چي پينځلس گزه لوړي سوې او بعض وايي چي د پرش گزه لوړي سوې.

**درويش وايي:** چي دا اندازې چي راويانو بيان كړي دي د هر غره نه دي ولي چي د بعضې غرونو قد كوچنى وي چي پر هغو غرو مذكوره اندازې اوبه لوړي سي تر هغه بلند غر خو تول په اوبو كي نه پټيږي. نو له دې سببه روح البيان داسي عبارت ويلى دى "فارتفع الما على اطول جبل في الارض آه"

**فائده:** اطول د غرو په مځكه كي جبل نهاوند دى په منځ كي د ريَ او طبرستان. والتفصيل في شرح الچغميني في بيان بحث سبع شعيره.

ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي څلويښت ورځي او شپې باران وه اوريدى او د مځكي اوبه هم څلويښت ورځي راووتلې قال الله تعالى "ففتحنا ابواب السما بما منهمر وفجرنا الارض عيونا فالتقى الما على امر قد قدر" او په تفاسيرو كي راغلي دي چي د نوح ﷺ كښتى پينځه مياشتي پر اوبو ولاړه وه. او بعض اهل الله وايي چي تاثير د طوفان نوح په هر د پرش كاله كي ښكاره كيږي لكن سپك چي بعض كورونه يا قريې په سېلو غرق گرځي.

وَقِيلَ يَا أَرْضُ ابْلَعِي مَاءَكِ وَيَا سَمَاءُ

"قيل" صيغه مجهول ده. فاعل يي په حقيقت كي لفظ الله دى او وويل سوه له طرفه څخه د خداى پاک چي امر د طوفان پاى ته ورسېدى. اې مځكي نوش كړه خپلي اوبه او وه ځيښه ستا اوبه يعني چي له تا څخه راوتلي دي يعني نه هغه اوبه

چي له اسمانه نازل سوي دي ولي چي د اسمان اوبه رودونه او دریابونه سوي او د
مځکي اوبه چیني او څاهان او کاریزونه سوي، او اې اسمانه باران اوریدل بند کړه.

اَقۡلِعِیۡ وَغِیۡضَ الۡمَآءُ وَقُضِیَ الۡاَمۡرُ وَاسۡتَوَتۡ عَلَی الۡجُوۡدِیِّ

او اوبه مخ پر کمېدلو سوې یعني خدای پاک کمي کړې، او پای ته ورسېدل سو
کار د اهلاک د قوم نوح چي خدای ﷻ یې وعده کړې وه. او کښتئ قرار ونیوی
پر غره د جودي چي په جزیره کي یو غر دی. او بعض وایي چي په شام کي دی
والاول هو الاشهر عند اهل التاریخ. له حضرت علي رضی الله عنه څخه روایت دی چي
سخت د مخلوق غرونه دي او تر غرو سخت وسپنه ده، ولي د غرو ډبري د وسپني
په آلاتو ماتیږي او اوور پر وسپنه غالب دی. ولي چي وسپنه په اوور ولیږي. او پر
اوور اوبه غالبي دي ولي چي اوور په اوبو مري. او پر اوبو وریځ غالبه ده چي د
اوبو حامله ده او باد بیا وریځ راولي، او انسانان پر باد غالب دي په سبب د آبادئ او
خونو او قصرو، او خوب پر انسان غالب دی والموت یغلب الکل.
**فائده:** د حکما په نیز په اووه اقلیمه کي د مځکي یو سل اته اوویا (۱۷۸) غرونه
دي او په زهرة الریاض کي وایي شپږ زره شپږ سوه درو اوویا (۶۶۷۳) غرونه دي.
داسي غرونه سته چي طول یې شل فرسخه بیا تر زر فرسخه پوري وي، او په دې
کي اختلاف دی چي افضل د غرو کوم غر دی. بعض وایي چي تر ټولو افضل جبل
ابي قبیس دی په مکه کي. ولي چي دا اول غر دی د مځکي. او بعض وایي عرفات
دی. بعض وایي طور دی چي موسی علیه السلام د خدای ﷻ سره خبري پر کړي دي. او
جلال الدین سیوطي رحمه الله وایي چي افضل د غرو جبل احد دی کما ورد في
الحدیث الصحیح احد یحبنا ونحن نحبه، او د احد د غره زیارت خلک کوي
خصوصاً حجاج. ولي چي سید الشهدا حمزة رضی الله عنه دده په لمن کي مدفون دی.

وَقِیۡلَ بُعۡدًا لِّلۡقَوۡمِ الظّٰلِمِیۡنَ ﴿۴۴﴾

او وویل سوه له جانبه څخه د خدای پاک چي لیري والی دي وي له رحمت څخه
د خدای ﷻ هغه قوم لره چي ظالمین دي، او یا هلاک دي وي هغه قوم لره چي
ظالمان دي چي دلته مراد قوم نوح دی.

**پوه سه:** "بعداً" مفعول مطلق د فعل محذوف دی ای بعد القوم الظالمون بعداً.

**فائده:** محي السنة بغوي رحمه الله وايي چي د نوح عليه السلام کښتئ چي پر جودي لنګر واچاوه يو څو زمانه کښتئ ولاړه وه نوح عليه السلام او مؤمنان پکښي ناست وه، بيا د خدای ﷻ له طرفه اجازه د کښته کېدلو له کښتئ څخه ورکړه سوه، نو پر غره پياده سوه، نو نوح عليه السلام اولاً کارګه راوغوښتئ چي د مځکي حالات راوړه کارګه پر مردار لاښ د کفارو پېښ سو، نو خبر يې نه راوړئ، وروسته يې کوتره واستول کوترې د زېتون د درختي شين بلګ په موښو کې راخستئ ؤ او پښي يې په خټو لړلي وې.

نو نوح عليه السلام په دې وه پوهېدئ چي اوبه ختمي سوي دي، نو بعض راويان وايي چي نوح عليه السلام کارګه ته د خوف دعا وکړه يعني ښېرا دا سبب دی چي کارګه په بيره کي اول نمره د مرغانو دی، بعض خلګ مبالغةً د کارګه د ښېري داسي بيان کوي چي کارګه خپل بچي ته نصيحت کاوه چي که دي انسان وليدی چي مځکي ته چوغ يعني کښته سو، نو پوه سه چي ډبره را اخلي او تا په ولي، بچي يې ورته وويل نو که يې ډبره د مخه ورڅخه وه، نو دا به ښه وي چي سړی مي صرف وليدی زه به الوځم کارګه شاباش ورته ووايه چي همد غسي کوه، او کوترې ته يې شنه ليکه په غاړه کي ورکړه او د امن دعا يې ورته وکړه ځکه کوترې د انسانانو په کور کي ګذاره کوي.

**فائده:** روح البيان وايي چي په کافرانو کي يو عوج بن عنق ژوندی پاته سو چي اوبه يې د پر تو ګاښ تر ځای (سروځني) پوري وې او دده جګوالی روح البيان وايي چي درې زره درې سوه درو دېرش (۳۳۳۳) ګزه ؤ، دی وايي چي سبب د نجات د عوج دا ؤ چي ده د کښتئ لرګي له شام څخه ونوح عليه السلام ته راچلول. لکن مظهري رحمه الله دا خبره رد کړې ده دی وايي چي دا خبره له ظاهره څخه د نص خلاف ده قال الله تعالی "قال نوح رب لاتذر علی الارض من الکافرين دياراً" وقال قيل بعداً للقوم الظالمين، وقال لا عاصم اليوم من امر الله الا من رحم.

وَنَادَىٰ نُوحٌ رَّبَّهُ فَقَالَ رَبِّ إِنَّ ابْنِي مِنْ أَهْلِي وَإِنَّ وَعْدَكَ الْحَقُّ وَأَنتَ أَحْكَمُ الْحَاكِمِينَ ۝٤٥

او ناري کړې نوح عليه السلام ورب ته خپل "فقال الفا لتفسير النداء" او وه يې ويل اې

زما ربه په تحقیق زما زوی زما له اهل څخه دی او په تحقیق ستا وعده حق ده خلف نسته پکښې یعني چې تا وعده کړې وه چې تا او ستا اهل ته به له غرق څخه نجات ورکوم، غرض د نوح ﷺ دا وُ چې څه حکمت کار فرماوُ چې دی له غرق څخه نه سو خلاص، دا ترجمه پر هغه تقدیر ده چې کنعان په غرق شده گڼو کې ولاړی، او بعض مفسرین وایي چې قبل الغرق دا ندا نوح ﷺ وکړه، نو غرض یې دا وُ چې دده زوی له غرق څخه نجات پیدا کړې او ته اې خدایه عدل د حاکمانو یې ستا په حکم کې خلف نسته، ولې چې حکم پر بل چا فرع د علم دی او ته اعلم یې په مصالح د عبادو نو ستا حکم هیڅ بې حکمته نه دی.

**درویش وایي:** چې په اوسنی زمانه کې یو جاهل په دین ظالم رشوت خوره پر منصب د قضا ناست دی حتی چې قاضي القضات چې د ټولو قاضیانو رئیس دي هم جاهل او ظالم وي، په صحیح حدیث کې راغلي دي "القضات ثلثة واحد في الجنة واثنان في النار" (قاضیان دري قسمه دي یو په جنت کې دوه په اور کې) جنت والا هغه قاضي دی چې په حق خبر وي یعني پر احکامو د شرعي علم لري او حکم هم په عدل سره وکړي او هغه دوه قاضیان چې په اور کې دي هغه یو هغه قاضي دی چې په حق او شریعت خبر وي لکن د رشوت وغیره له لاري حکم بالجور وکړي، او بل هغه قاضي دی چې په شریعت ناخبره او جاهل پر منصب د قضا ناست وي او د شریعت خلاف حکمونه کوي، ومن بلاغات ومبالغات الزمخشري.

قضات زماننا صاروا لصوصاً ........ عموماً في القضایا لا خصوصاً
خشینا منهموا الوصا فحو نا .......... للصوا من خواتمنا فصوصاً

**قَالَ يٰنُوۡحُ اِنَّهٗ لَيۡسَ مِنۡ اَهۡلِكَۚ اِنَّهٗ عَمَلٌ غَيۡرُ صَالِحٍۖ**

خدای ﷻ ورته وویل چې اې نوح کنعان ستا له اهل څخه نه دی لقطع الولایة بین المؤمن والکافر په تحقیق ستاسي زوی عمل غیر صالح دی.

**یوه سه:** چې "انه" تعلیل دی چې له اهل څخه نه دی او عمل مصدر دی حمل یې مبالغةً دی کزید عدل، او یا یې حمل په حذف د مضاف دی ای ذو عمل غیر صالح مضاف چې حذف سو عمل یې پر مضاف الیه جاري سو چې "عمل" دی او خبر د "أن" دی.

**فائده:** کسائي او یعقوب "عمل" په کسره د میم وایي یعني صیغه د فعل ماضي او

غیر په نصب سره مفعول د عمل بولي. والمعنى انه عمل عمل الشرک والتکذیب.

**فَلَا تَسْـَٔلْنِ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ ؕ**

نو ته زما څخه سوال مه کوه د هغه شي چي نشته تا لره په هغه سره علم.

**پوه سه:** چي کسره د نون دلالت پر یا محذوفه کوي اصله لاتسئلني ۋ د مالیس لک به علم هغه ندا د نوح ﷺ ده ونادی نوح ربه آه چي په دې نه پوهېږې چي دا سوال زما خطا دی که صواب چي نجات د زوی کنعان کافر ۋ چي تا وویل رب ان ابني آه مقصود زجر د نوح ﷺ دی له داسي دعا څخه اخیر زجر پسي زیات.

**اِنِّيْٓ اَعِظُكَ اَنْ تَكُوْنَ مِنَ الْجٰهِلِيْنَ ﴿۴۶﴾**

زه تا ته نصیحت کوم چي ته به د جاهلان له ډلي څخه نه ګرځې چي یو وار سوال کوي د هلاک د ټولو کافرانو. رب لاتذر علی الارض من الکافرین دیاراً او بیا د کافر زوی کنعان شفاعت راته کوې.

**درویش وایي:** چي ددې آیت په تفسیر کي ډېر لوړ کسان خطاوتلي دي. لکه بغوي ﷫ چي دا اختلاف راوړی دی، قال مجاهد والحسن البصري چي کنعان ولد الزنی ۋ من غیر نوح او نوح ﷺ نه ۋ په خبر ولذالک قال رب ان ابني من اهلي وقال الله تعالی انه لیس من اهلک یعني انه ولد الزنی وقال مالیس لک به علم یعني ته نه یې خبر چي کنعان ولد الزنی دی، او ابو جعفر الباقر ﷫ وایي چي کنعان خو یې د ماینې زوی ۋ لکن دده څخه نه ۋ بلکې د بل مېړه څخه یې ۋ. ولذالک قال من اهلي ولم یقل مني، او ابن عباس او عکرمه او سعید بن جبیر ﷫ او ضحاک او اکثره محدثین ﷭ وایي چي کنعان له نطفې څخه د نوح ﷺ ۋ ولد الزنی نه ۋ. ولي چي د هیڅ نبي ماینې زنی نه ده کړې ومعنی قوله تعالی انه لیس من اهلک انه لیس من اهل دینک لانه کان کافراً، ومعنی قوله تعالی کما مر اني اعظک ان تکون آه داده چي یو وار خواست د هلاک د ټولو کفارو کوې او بیا نجات د کافر زوی غواړې.

**قَالَ رَبِّ اِنِّيْٓ اَعُوْذُ بِكَ اَنْ اَسْـَٔلَكَ مَا لَيْسَ لِيْ بِهٖ عِلْمٌ ؕ وَاِلَّا تَغْفِرْ لِيْ وَتَرْحَمْنِيْٓ اَكُنْ مِّنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۴۷﴾**

نوح ﷺ وویل اې زما ربه زه پناه غواړم له تا څخه چي زه به سوال کوم له تا څخه یعني په آئینده کي د هغه شي چي نه وي ما لره په هغه علم لکه ددې واري

چي مي وکړې، او که ماته بخښنه ونه کړې يعني د موجوده سوال او رحم ونه کړې پر ما باندې زه به وګرځم له تاوانيانو د جملې څخه.

**قِيلَ يَٰنُوحُ اهْبِطْ بِسَلَٰمٍ مِّنَّا وَبَرَكَٰتٍ عَلَيْكَ وَعَلَىٰٓ أُمَمٍ مِّمَّن مَّعَكَ**

"قيل" اى القائل هو الله ﷻ. اې نوح کښته سه يعني له کښتۍ څخه وغره ته چي کښتۍ يوه مياشت پر ولاړه وه. او يا کښته سه له جودي غره څخه وسمې مځکې ته "بسلام" يعني بسلامة من المکاره چي زموږ له خوا څخه دی. نو سلام په معنى د سلامتيا دی من الغرق "وبرکات" او په برکتو سره په نسل کي ستا او د رزق فراخه من انواع الارزاق. پر تا باندې او پر هغو امتو چي پيدا کېږي د من معک څخه. والمراد الامم المؤمنة الى يوم القيامة. نو ذکر عام دی مراد تري خاص دي اى المؤمنين.

**يوه سه:** چي دا ترجمه پر هغه تقدير ده چي د نوح ﷺ سره ده، اولاد او نور مؤمنان هم وه. لکن په عدد کي يې نور اختلاف دی چي څو کسه وه. نو هغه نور کسان چي له کښتۍ څخه کښته سوه څو زمانه تر اجل پوري ژوندي وه لکن نسل يې نه سو پاته او پر هغه روايت چي په کښتۍ کي صرف نوح ﷺ او دده زوجه او دده درې زامن او د هغو مايني وې چي مجموع اته نفره وه. نو دې خبرې ته ضرورت نسته چي نور نسل نه سو پاته. په هر صورت نوح ﷺ ابو الخلق کلهم دی وروسته تر ده ولهذا سمي آدم ثاني وا آدم اصغر. ولې چي ټول نر او ښځې، انبيا او صالحين او کافران وروسته تر ده دده له نسل څخه دي دا قدرت د رب العزت دی چي په مرور د زمانو له لږ څخه ډېر پيدا کوي.

تاريخ خبر کوي: چي نوح ﷺ سره د من معه في السفينة راکښته سو په ورځ د عاشورا يعني د محرم د مياشتې پر لسم تاريخ، نو ده روژه ونيول او من معه يې هم په روژه نيولو سره امر کړه شکراً لله تعالى في نجاتهم من الغرق. او ددوی د کښتۍ خوراکي مواد ختم سوي وه، نو بعض من معه يوه لپه عدس راوړه او بل يوه لپه نخود راوړه چي اووه قسمه خوراکي دانې پوره سوې. نو ټولې يې ګډې سره پخې کړې نو يې روژه په ماته کړه او ټوله په ماړه سوه په برکت د نوح ﷺ.

**فائده**: که چا فراخي جوړه کړه په شپه د عاشورا پر عيال باندي د نفقې خدای پاک به فراخي جوړه کړي پر عيال دده ټول له آئينده کال، ابن سرين رحمه الله وايي چي قد جربناه فكان كذالک.

وَأُمَمٌ سَنُمَتِّعُهُمْ ثُمَّ يَمَسُّهُم مِّنَّا عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٤٨﴾

ژر دی چي موږ به تمتع ورکړو دوی ته يعني په رزق د دنيا وروسته به دوی مسه کړي يعني وه به رسېږي دوی ته عذاب دردناک په اخيرت کي خو ټولو ته رسېږي لكفرهم، او بعضو ته په دنيا کي هم لکه قوم هود، قوم صالح، قوم لوط او قوم شعيب.

**پوه سه**: چي "وامم" مبتدأ ده خبر يې محذوف دی يعني وممن معک امم لا بركة فيهم لكفرهم.

تِلْكَ مِنْ أَنبَاءِ الْغَيْبِ نُوحِيهَا إِلَيْكَ مَا كُنتَ تَعْلَمُهَا أَنتَ وَلَا قَوْمُكَ مِن قَبْلِ هَٰذَا

دغه قصه د نوح (عليه السلام) او د قوم او د کښتی او د طوفان الى غير ذالک ممامر بعض د خبرو څخه د غيب دي يعني ستا څخه غائب وه تا مشاهدةً نه دي ليدلي، نو كلمه "من" لپاره د تبعيض ده، ولي خبرونه د غيب ډېر په قرآن کي وه عليه الصلوٰة والسلام ته کړي کقصة فرعون و ثمود وقوم لوط وغيرها. موږ يې تاته په قرآن کي وحي کړي دي چي نه وې ته په خبر يعني په دغو قصو او نه ستا قوم تر دې دمخه يعني تر نزول د قرآن دمخه.

**پوه سه**: چي "تلک" مبتدأ ده او من انبا الغيب يې خبر دی او "نوحيها" يې خبر بعد الخبر دی، او پوه سه! چي "انت" تاكيد دی په منفصل سره او يا سره د فصل په منځ کي د معطوف او معطوف عليه. معطوف دلته ولا قومک دی.

**فائده**: لا نافيه په معطوف کي تاكيد د ما نافيه دی.

**فائده**: په دې آيت کي دليل دی پر دې چي دا قصې معجزې د عليه الصلوٰة والسلام دي يعني دی (عليه السلام) نبي دی حقاً، ولي چي عليه الصلوٰة والسلام د نبوت تر زمانې پورې په خپل قوم کي ؤ، او قوم دده سره د كثرته ددوی چي نه دی په خبر نو پو سړی چي آنحضرت ﷺ دی څرنګه په خبر سو فعلم انها مما علمه الله بالوحي فهو نبي بالحق خصوصاً اذا كانت تلک القصص مطابقةً للكتب المنزلة من قبل.

فَاصْبِرْ ۚ إِنَّ الْعَاقِبَةَ لِلْمُتَّقِينَ ﴿٤٩﴾

نو صبر وکړه پر آزار او تکذیب د قوم لکه نوح ﷺ چې صبر کړی ؤ او اخیري فتح او بری په دنیا او اخرت کې د متقینو په برخه ده کما کان العاقبة للنوح ومن معه في الفلک.

**پوه سه:** چې په دې آیت کې تسلي وه علیه الصلوٰة والسلام ته ورکوي بان العاقبة لک وللمؤمنین، حافظ شیرازي چه خوش گفته

سروش عالم غیبم بشارتی خوش داد .. که کس همیشه گرفتار غم نخواهد بود

کریمه: ان مع العسر یسراً ان مع العسر یسراً حسین کاشفي په خپل تفسیر کې داسې ویلي دي: پیر طریقت فرمود که صبر کلید همه بستگیها است.. وشکیبایی علاج همه خستگیها است.. نتیجه ناشکیبائی ظفر است.. وکار بی صبر از هر روز بدتر است انتهی عبارته البلیغة.

وَإِلَىٰ عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا ۚ قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ ۖ إِنْ أَنتُمْ إِلَّا مُفْتَرُونَ ﴿٥٠﴾

**پوه سه:** چې دا عطف دی پر الی قومه باندې "ارسلنا نوحاً الی قومه وارسلنا عاد الآیة" ترجمه: مونږ واستاوه یعني په رسالت سره د عاد وقبیلې ته ددوی د قوم سری "هود" عطف بیان دی د "اخاهم" نو هود ﷺ دوی ته وویل اې قومه زما تاسې توحید د خدای ﷻ عقیده وګرځوئ، قوم یې مشرکان او بت پرستان وه، نشته تاسې لره بیو معبود بالحق ماسوی د الله ﷻ څخه (نو کلمه د من لپاره د استغراق د نفي ده) نه یاست تاسې مګر درواغجنان چې تاسې بتان شریکان د خدای پاک بولئ په عبادت او شفعائنا عندالله یې بولئ.

يَا قَوْمِ لَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ أَجْرًا ۖ إِنْ أَجْرِيَ إِلَّا عَلَى الَّذِي فَطَرَنِي ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿٥١﴾

اې قومه زما نه کوم زه سوال له تاسې څخه پر تبلیغ د رسالت د مزدورۍ چې پر تاسې دا مزدوري درنه وي، نه ده مزدوري زما یعني ثواب مګر هر هغه چاچې زه یې پیدا کړی یم یعني الله ﷻ آیا تاسې له عقل څخه کار نه اخلئ چې ددلسې سړي متابعت باید وکړل سي.

**درویش وایي**: چې طمع چې ټوله حروف يې مهمله دي په تبليغ کې د دين وخلګو ته کول تبليغ مهمل ګرځوي يعني خلګ د مبلغ طامع خبرې نه قبلوي هم دا سبب دی چې هر نبي تر ټولو دمخه مرانده د طمع غوڅه کړې ده، بيت .......

طمع بندد دفتر زحکمت بشوی .......... طمع بگسل وهرچه خواهی بگوی
مکن سعد یا دیده بردست کس .......... که بخشنده پروردگار است وبس
طمع آبروی موقر بریخت .......... برای دو جود امن دُربریخت

مثل: فلانی سړی اجهل دی من داعي ثمانين من الضان، ددې مورد د داسې تاريخ بيان کړی دی چې يو سړي د عليه الصلوٰة والسلام يو کار ور اجرا کړی، نو عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل چې ته مدينې ته بيا راسه يعني زه ستا ددغه خدمت عوض درکوم، خير هغه سړی مدينې ته ورغلی، نو عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل چې اتيا (۸۰) مېږې غواړې او که زه خدای ﷻ ته خواست چې تا خدای پاک زما ملګری وګرځوي په جنت کې، هغه سړي ورته وويل چې اتيا مېږې غوارم، عليه الصلوٰة والسلام صحابه کرامو ﷺ ته وويل چې اتيا مېږې ورکړئ، دا خو يې مورد ؤ اخير ضرب مثل سو، د هغه چا لپاره چې دېر اعلى شي په عوض په ادنى شي سره قناعت وکړي کالمبلغ الطامع للدنيا عوض ثواب الله في العقبى، سعدي شيرازي رحمه الله ميگويد. بيت :.

زيان ميکند مرد تفسير دان .......... که علم وادب ميفروشد بنان

وَيٰقَوْمِ اسْتَغْفِرُوْا رَبَّكُمْ

اې قومه زما طلب د مغفرت وکړئ له رب څخه ستاسې يعني د هغه شرک چې تاسې دمخه کاوه او دا طلب د مغفرت له شرک څخه په اسلام سره کېږي، فان الاسلام يهدم ماكان قبله لکه چې روايت يې کړی دی ددغه حديث عمر بن العاص رضي الله عنه د عليه الصلوٰة والسلام څخه.

ثُمَّ تُوْبُوْٓا اِلَيْهِ يُرْسِلِ السَّمَآءَ عَلَيْكُمْ مِّدْرَارًا

وروسته تر اسلام رجوع وکړئ وه طاعت ته د خدای پاک بېله شريکه، خدای پاک به راواستوي اسمان پر تاسې ډېر اورونکی د باران، او ولې به مو جاري سي دا يې له دې سببه ورته وويل چې پر دوی درې کاله باران بند ؤ تعذيباً لهم على الشرک.

**پوه سه:** چې مدرارًا صيغه د مبالغې ده نو ځکه يې مفسرين ترجمه په کثير الدور سره کوي.

وَيَزِدْكُمْ قُوَّةً إِلَىٰ قُوَّتِكُمْ وَلَا تَتَوَلَّوْا مُجْرِمِينَ

او خدای ﷻ به زيات کړي قوت ستاسي منضماً الى قوتکم. حسين کاشفي په تفسير حسيني کې وايي: آورده اند که عاديان دعوت هود ﷺ قبول نکردند حق سبحانه وتعالى بشامت آن سه سال باران از ايشان بازگرفت وزنان ايشان را عاقره وعقيمه ساخت وچون اصحاب زروع بودند او دشمنان نيز داشتند براى زراعت به باران وبراى دفع دشمنان باولاد محتاج بودند. هود ﷺ فرمود که (يا قوم استغفروا الخ) فيکون معنى قوله (ويزدکم قوة الى قوتکم) قوة با قوة شما يعني فرزندان دهد شما را تا بمدد ايشان بردفع دشمنان قادر شويد انتهى.

**درويش وايي:** چې هغه تفسير کامل ددې مقام دغه د حسين کاشفي دی.

**درويش وايي:** چې د حسن بن علي رضي الله عنه څخه روايت دی چې دی د معاويه رضي الله عنه ملاقات ته ورغلی ؤ چې دی د معاويه رضي الله عنه له دربار څخه راووتی. ځيني پهره دارانو د معاويه رضي الله عنه ورته ودرېدل چې زه خاوند د ډېر مال يم لکن عيال خصوصاً زوی نه لرم ته ماته يو شی راوښيه شايد خدای پاک به ماته عيال راکړي، حسن بن علي رضي الله عنه ورته وويل چې استغفار ډېر وايه! هغه سړي هم استغفار ته زور ورکړی حتى چې په يوه ورځ کې به يې اووه سوه واره استغفار وايه. نو خدای پاک پرله پسې لس زامن ورکړه. معاويه رضي الله عنه په دې موضوع خبر سو. نو هغه خپل پهره دار ته يې وويل چې تا پوښتنه نه ځني وکړه چې دا خبره ده له څه رويه ده وکړه. هغه ورته وويل يا! خير بل وخت بيا حسن بن علي رضي الله عنه ملاقات ته د معاويه رضي الله عنه راغلی. نو هغه پهره دار د معاويه رضي الله عنه پوښتنه ځني وکړه. ده ورته وويل چې تا قول د هود ﷺ نه دی اورېدلی چې قوم ته يې وکړی (ويزد قوةً الى قوتکم) يعني مراد له قوت څخه زامن وه. او دا قول د نوح ﷺ تاسي نه دی اورېدلی (ويمدد کم باموال وبنين)

**درويش وايي:** چې دا مجربه نسخه د وچ سړي لپاره د تفسير ايوبي هديه ده ضرور دا ده چې عقيده ټينګه سړی پر ولري.

**يوه سه**: چي "ولاتتولوا مجرمين" عطف دی پر استغفروا. والمعنى تاسي زما د دعوت څخه اعراض مه کوئ په داسې حال کي چي تاسي پر خپلو جرائمو همېشه توب کوئ يعني الشرک وعدم قبول الدعوة.

قَالُوا يٰهُودُ مَا جِئْتَنَا بِبَيِّنَةٍ

وويل د هود ﷺ قوم وه ته چي تا موږ ته راتگ نه دی کړی په يو حجت سره چي ستا د دعوی د نبوت پر صحت دي دلالت کوي، دا خبره دوی د ډېر عناد او تکبره وهود ﷺ ته وکړه سره ددې چي هود ﷺ دوی ته معجزات باهرات راوړي دي.

وَمَا نَحْنُ بِتَارِكِيٓ اٰلِهَتِنَا عَنْ قَوْلِكَ وَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِينَ ﴿۵۳﴾

او موږ نه يو پرېښوونکي د عبادت د خپلو خدايانو يعني بتانو ستا په قول، نه يو موږ تالره ايمان راوړونکي يعني ستا پر خبره تصديق نه کوو يعني لا اله الا الله، نو هود ﷺ دوی ته اميده کړی له خپل ايمان څخه.

**يوه سه**: چي "عن قولک" متعلق دی په "تارکي" پوري.

**درويش وايي**: چي ورته خبري به قريشو وه عليه الصلوٰة والسلام ته هم کولې بلکې عادت د هر نبي د قوم د مشرکانو له خوا دغه قسم خبري کېدلې.

إِنْ نَّقُولُ إِلَّا اعْتَرٰىكَ بَعْضُ اٰلِهَتِنَا بِسُوٓءٍ

او موږ نه وايو تاته يوه خبره مگر دا خبره چي تاته مصيبت يعني جنون دررېښ کړي، بعض خدايانو زموږ په يو بد سره چي خرافات وايه، ولي ته ددوی بد وايه او خلگ ددوی له عبادت څخه منع کوې. نو بعض خدايانو زموږ هم درد ورغلی او ته يې په مرض د جنون مبتلا کړې.

**درويش وايي**: چي فکر وکړئ چي بت پرستان څومره له انسانيت څخه لېرې خبرې کوي چي جمادات بتانو ته دومره قدرت ثابته وي چي د سړي دماغ دي ورخراب کړي او لېوني دې کړي.

قَالَ إِنِّيٓ أُشْهِدُ اللّٰهَ وَاشْهَدُوٓا أَنِّي بَرِيٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُونَ ﴿۵۴﴾

هود ﷺ وويل چي زه خدای ﷻ شاهدوم پر ځان او تاسي هم شاهدان اوسئ پر ماچي

په تحقيق زه بېزاره يم د هغو بتانو څخه چې تاسي يې د خداى پاک شريکان بولئ.

مِنْ دُوْنِهٖ فَكِيْدُوْنِيْ جَمِيْعًا ثُمَّ لَا تُنْظِرُوْنِ ﴿۵۵﴾

ماسوا له خداى ﷻ څخه يعني نه يې عبادات کوم او نه ځني بېرېږم. نو تاسي او ستاسي خدايان حيله وکړئ زما په ضرر او اهلاک کي په ګډه يعني تاسي او ستاسي خدايان اتفاق سره وکړئ زما په ضرر رسولو يعني ستاسي پر زعم چي زموږ خدايانو ته څوک بېکنځل کوي زموږ خدايان وه هغه ته ضرر رسولاى سي كما يدل عليه قولكم الا اعتراك آه "ثم لاتنظرون" بيا مهلت مه راکوئ ماته.

**يوه سه:** چي کسره د نون دال پر يا محذوفه ده والاصل لاتنظروني.

**بوه سه:** چي په دې قول د هود ﷺ سپکاوى د قوم دى او اظهار د اعتماد پر خداى دى او اعلان د عجز ددوى د خدايانو دى لانها احجار جمادات لاتنفع ولاتضر.

**فائده:** په دې قول کي : هود ﷺ معجزه ده. ولي چي وروسته ددې قول د هود چي اجتماع پېش رو يه ودوى ته ورکړي او دوى جبابره هم وه او وه وينو ته د هود ﷺ تږي هم وه لكن نه يې ضرر وررساوه او نه يې هلاک کړى.

اِنِّيْ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللّٰهِ رَبِّيْ وَرَبِّكُمْ ؕ مَا مِنْ دَآبَّةٍ اِلَّا هُوَ اٰخِذٌۢ بِنَاصِيَتِهَا ؕ

زما تکيه او اعتماد پر الله ﷻ دى چي رب زما او ستاسي دى، نسته يوه دابة (دابة مايدب اى يتحرك على الارض فيعم الانسان وغيره) مگر نه خداى ﷻ نيونکى دى د نزلې د وېښتانو د هغې دابې.

**يوه سه:** چي ناصيه ځاى ته د شنه کېدلو د وېښتانو وايي چي په مقدمه حصه کي د سر وي چي په پښتو کي يې نزله بولي، او هغه وېښتانو ته هم وايي چي د هغه حصه شنه وي.

**فائده:** سر څلور حصې دى (۱) ناصيه چي ذکر سوله (۲) مقابل د ناصيه قفا بولي يعني څټ (۳) او مابين د ناصية (۴) او څټ د يوه غوږه او د بل غوږ پر برابر قرنان بولي دوه ښکرونه" اصطلاح د عربو" عرب چي يو سرى په ذلت او مقهوريت وبل سري ته بيانه وي، نو وايي ناصية فلان بيد فلان اى هو ذليل ومقهور له" والمراد باخذ الله بناصية كل دابة" نفاذ قدرته تعالى فيهم" والمعنى

الا هو مالک لها قادر علیها یصرفها علی ما یرید بها.
مقصود د دې بیان څخه اظهار د عظیم قدرت د خدای دی او غالب سلطنة د خدای دی
اوداچي پر مخلوق که څه هم ډېر جلیل دی په قوت او په جثه کي فهو صغیر ذلیل بالنسبة
الی قدرته تعالی. نو بعض مفسرین وایي چي دا عبارت قرآني کنایة ده. او بعض
مفسرین وايي استعارة تمثیلیه ده کما قولهم للمتحیر في امر ما" رئیتک تقدم رجلا
وتؤخر اخری والتفصیل في علم البیان" علما په پوهېږي که څه هم عوام نه په پوهېږي.
**سوال**: تا خو ویلي وه چي زما تفسیر د عوامو دپاره دی او دلته وایې که څه هم
عوام نه په پوهېږي؟
**ځواب**: ما داسي نه دي ویلي چي د عوامو دپاره دی بلکه ما صرف داسي ویلي
دی چي زما تفسیر په پښتو ژبه دی په دې وینا کي عوام او خواص دواړه داخل دي.
**سوال**: عینا دا سوال او جواب تا بل ځای په دې تفسیر کي هم راوړی دی، نو د
تکرار یې څه فائده؟
**ځواب**: غرض مې نیوی د حاسدانو د خبرو دی چي هغه پر هر ځای تنقید کوي
چشم بد اندیش که بر کنده باد .......... عیب نماید هنرش در نظر
ته که د حاسدانو د حالاتو تفصیل غواړې د درمختار مقدمه ملاحظه کړه.

إِنَّ رَبِّي عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ

په تحقیق زما خدای پر لاره سمه دی" یعني علی الحق والعدل، نو محسن ته
ثواب ورکوي پر احسان د هغه فضلا منه او بد کاره ته د بد کار جزا ورکوي عدلا
منه او هغه څوک چي خدای ﷻ سره اعتصام وکړي هغه خدای ﷻ نه ضائع کوي.

فَإِن تَوَلَّوْا فَقَدْ أَبْلَغْتُكُم مَّا أُرْسِلْتُ بِهِ إِلَيْكُمْ

اصل یې "تتولوا" وو یوه تایې حذف" یعني که تاسي اعراض وکړئ د هغه څه
څخه چي ما تاسي ته دعوت در کړي دي یعني من التوحید، په تحقیق ما تاسي
ته ورساوه هغه دین چي زه د تبلیغ د هغه خدای را استولی وم وتاسي ته.
**یوه سه**: چي اصل جزا ده ان محذوف ده مذکور آیت دلیل د جزا محذوفي دی
والتقدیر فان تولوا فلا تفریط ولا تقصیر بي اذ قد ابلغتکم آه.

وَيَسْتَخْلِفُ رَبِّي قَوْمًا غَيْرَكُمْ

او خدای ﷻ به خلف ستاسي پيدا کړي يو قوم غير د تاسي څخه يعني تاسي به هلاک کړي او ستاسي عوض به هغه قوم وګرځوي چي تر تاسي فرمان بردار وي او د خدای عبادت کوي په توحيد سره ولي ستاسي عذر نه سو پاته چي ما تبليغ د ما ارسلت به درته وکړي او خپله وظيفه مي اجرا کړه.

وَلَا تَضُرُّونَهُ شَيْئًا إِنَّ رَبِّي عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَفِيظٌ ﴿۵۷﴾

او ضرر نسي رسولای وخدای ﷻ شيئا من الضرر (فشيئا مفعول مطلق) بلکه ضرر د شرک ستاسي وتاسي ته راجع دی او يا معنی دا ده چي ستاسي په هلاک کي تاسي د خدای ﷻ وخدايي ته نقصان نه سئ رسولای (فشيئا مفعول به دی) په تحقيق زما رب پر هر شي رقيب دی يعني خبر دی ستاسي په عملو او قادر دی ستاسي پر مجازات او غافل نه دی ستاسي د عملو څخه. نو بايد مؤمن همېشه طاعت د خدای ﷻ ته.

وَلَمَّا جَاءَ أَمْرُنَا نَجَّيْنَا هُودًا وَالَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا

هغه وخت چي ورسېدی امر زموږ يعني د عذاب د هود موږ نجات ورکړی و هود او و هغو کسانو ته چي ايمان يې راوړی وو د هود سره په رحمت سره زموږ يعني په فضل زموږ نه په عمل د دوی.

**پوه سه**: چي مؤمنان د قوم هود (۴۰۰۰) څلور زره کسان وه.

وَنَجَّيْنَاهُم مِّنْ عَذَابٍ غَلِيظٍ ﴿۵۸﴾

او نجات ورکړی موږ ودوی ته د عذاب سخت څخه.

**پوه سه**: چي تکرار د "نجيناهم" لپاره د تاکيد دی او لپاره د تعظيم د قوم هود دی او لپاره د تهويل د عذاب دی.

**فائده**: عذاب د قوم هود ډېر سخت باد او نهايت ګرم ؤ چي ددوی يعني د کفارو په پزه ننوتی تر دبره به يې راووتی او عضواً عضواً به يې سره جلا کړه.

**درویش وايي**: چي د عاديانو مفصله قصه په تفسير کي د سورة الاعراف تېره سوه.

**فائده:** هود ﷺ او مؤمنان چي قوم يې هلاک سو د مکې مکرمې پر لور روان او هورې يې د خداى ﷻ عبادت کاوه تر مرگ پورې.

**فائده:** په انسان العيون کي وايې چي د هر نبي قوم چي هلاک سوى دى ماسوى د موسى ﷺ هغه نبي مکې ته راغلى دى او هورې يې د خداى ﷻ عبادت کاوه تر مرگه پورې.

**وَتِلْكَ عَادٌ جَحَدُوا بِآيَاتِ رَبِّهِمْ وَعَصَوْا رُسُلَهُ**

**يوه سه:** چي تلک اشارة ده وقوم ته د هود چي قوم عاد وه او سبب د تانيث يې تاويل دى په قبيله سره او بعض مفسرين مضاف محذوف بولي يعني تلک اثار عاد يعني تاسې سفر وکړئ په مځکه کي او اثار د قوم عاد وگورئ لاجل العبرة.

بيت:. پند گير از مصائب ديگران.......... تا نگيرند ديگران ز تو پند

**ترجمه**" دغه ده قبيله د عاد. يا دغه دي آثار د عاد چي دوى تکذيب او انکار کړى وو په آياتو د خداى ﷻ، او دوى عصيان کړى وو د رسولانو د خداى ﷻ.

**پوښتنه:** رسول د عاد يانو خو يو وو، نو جمع يې د کوم حکمت دپاره راوړه؟

**ځواب:** په جمع کي تنبيه پر دې ده چي انکار د يوه رسول انکار د ټولو رسولانو دى ولي چي رسولان ټوله دعوت وتوحيد ته کوي او يو د بل تصديق کوي بلکه په اصول او عقائدو کي د دين ټوله سره شريکان دي البته په فروع کي د دين اختلاف سره لري، نو انبيا عليهم الصلوة والسلام لکه د يوه پلار زامن چي مندي يې سره جلا وي" وقد جاء معناه في الحديث النبوي الصحيح.

**وَاتَّبَعُوا أَمْرَ كُلِّ جَبَّارٍ عَنِيدٍ ﴿٥٩﴾**

او دوى متابعت کاوه په شرک کي د امر د هر نوي ظالم چي د توحيد سره يې ضديت درلودى والمعنى چي دوى د خپلو رئيسانو متابعت کاوه او د هغه چا چي دوى ته به يې د توحيد تبليغ کاوه د هغه څخه به يې انکار کاوه" په تبيان کي وايې چي جبار المتعظم في نفسه (چي په نفس کي ځان لوى پر هر چا په خيال ورځي المتكبر على العباد) او چي کبر کوي پر خلگو" والعنيد" الذي لا يقول بالحق ولا يقبله او دعنود او د معاند هم داغه معنا ده.

وَأُتْبِعُوا فِي هَٰذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ

او په دوی پسې کړه سوی دی لعنت من الناس والملائكة او په آخرة کې هم لعنة دی یعنې د خدای د جانب څخه.

**بوه سه**: چې د اتبعوا ضمیر و رؤساو او تابیعنو ته د دوی راجع دی.

**فائده**: اثر د لعنت د ورځې د قیامت التابید فی النار دار الاشرار والكفار والفجار والهلاک فی الدنیا" عصمنا الله تعالی منها بفضله وكرمه.

أَلَا إِنَّ عَادًا كَفَرُوا رَبَّهُمْ ۗ أَلَا بُعْدًا لِّعَادٍ قَوْمِ هُودٍ ﴿٦٠﴾

خبر اوسئ چې د عاد قوم کفر وکړی د خدای ﷻ یعنې انکار د توحید د خدای ﷻ یې وکړی "او یا کفران د نعمتو د خدای ﷻ یې وکړی. خبر اوسئ چې لیرې والی دی وي د رحمت څخه او یا معنی هلاک دي وي.

**بوه سه**: چې دا جمله د بنرا د لعنت یا د هلاک و عاد یانو ته ده او تنبیه پر دې ده چې دوی مستحق د ما نزل علیهم وه بسبب ما حکی الله عنهم.

**فائده**: ذکر د الا دوه ځایه او ذکر د نامه د عاد دپاره د عبرت د نورو نسلو دی په حال سره د دوی او رسوایې د دوی ده او قوم هود عطف بیان د عاد دی او اشاره واختلاف ته د قوم او د هود ده" قال المولوي المعنوي رحمه الله في مثنویه في بیان العبرت.

پس سپاس اورا که مارا در جهان ......... کرده پیدا از پس پیشنان
تا شنیدیم آن سیاستهای حق ......... بر قرون ماضیه اندر سبق
استخوان وپشم آن کرگان عیان ......... بنگیرید وپند گرید ای جهان

**مسئله**: په کفایه شرح الهدایه کې راغلي دي چې لعن پر دوه قسمه دی (۱) بعد دی د رحمت څخه د خدای ﷻ او دا لعن بې کافره بل چاته نسته (۲) او لیرې والی دی د درجې د ابرارو او صالحانو والثاني هو المراد بقوله علیه الصلوة والسلام المحتکر ملعون" لان الاحتکار (یعنې خوراکې مواد د ګرانی دپاره رانیول او ساتل یې) کبیره" ګناه ده او مذهب د اهل السنة والجماعة دا دی چې په ارتکاب د ګناه کبیرې سړی کافر نه ګرځي چې مستحق د لعن اول دی وګرځي. خلافا للمعتزلة والخوارج.

**مسئله**: لعن عام روا دی "کما جا في الحديث لعن الله الراشي والمرتشي والرائش يعني ورکوونکی د رشوت او اخستونکی د رشوت او چي په مابين کي د دوی واوسطه وي" وكذا جا في الحديث لعن الله اكل الربوا و موكله وكاتبه وشاهده الى آخير الحديث.

**درویش وايي**: چي نور گنړ شمېر حد ښونه په لعن عام کي راغلي دي.

**فائده**: لعنت پر شخصي سړي بېله کافره پر چا نه دی روا.

**پوه سه**: چي ابن الصلاح په خپله فتاوی کي وايي چي قاتل د حسين ﷺ يعني الامر بقتله وهو يزيد لا يكفر بذالك بلكه مرتکب د کبيره گناه دی وانما يكفر القاتل بقتل نبي من الانبيا ﷺ ابن صلاح وروسته زياته کړې ده چي د يزيد په باره کي درې فرقې دي (۱) دوستي او محبت ورسره کوي او وايي چي ښه کار يې وکړی (۲) فرقه ښکنځل ورته کوي او لعنت پر وايي (۳) فرقه نه دوستي ورسره کوي او نه لعنت پر وايي بلکه مرتکب د گناه کبيره يې بولي" ابن الصلاح دا دریم مذهب مختاره کړی دی" لکن العلامة سعد الدين التفتازاني رحمه الله وايي "ونحن لا نتوقف في شانه بل في ايمانه لعنة الله عليه واعوانه والله اعلم بالصواب.

نه مجتهد يم نه قاضي او نه مفتي ......... بلکه خوار عبيد الله يمه عاصي.

(يعني زه ناقل يم د علماؤ رحمهم الله د اقوالو.)

**وَإِلَىٰ ثَمُودَ أَخَاهُمْ صَٰلِحًا**

اى وارسلنا الى ثمود" قبيله من العرب په نامه د لوړ نيکه مسمی ده" يعني ثمود بن عاد بن ارم بن سام بن نوح ﷺ په تفسير کي د ابي الليث السمرقندي رحمه الله وايي چي ثمود گاهي غير منصرف راځي للتانيث بتاويل القبيلة والعلمية" او گاهي منصرف هم راغلی دی للتاويل بالقوم "اخاهم" يعني شريک د دوی په نسب کي "صالحاً" عطف بيان دی لاخاهم وهو صالح بن عبيد بن آسف بن ماسخ بن عبيد بن خاور بن ثمود.

**قَالَ يَٰقَوْمِ ٱعْبُدُوا۟ ٱللَّهَ مَا لَكُم مِّنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُۥ**

جمله مستانفه جواب د سوال دی گويا چا پوښتنه وکړه چي صالح چي ثمود ته

واستول سو، نو یې څه وویل دوی ته، ای قوم زما (بتقدیر الیا وتعویض الکسرة منها) عبادت کوئ د خدای ﷻ. نشته تاسي لره معبود بالحق غیره الله دا جمله تعلیل د ماقبل جملې یعني اعبدوا الله.

**یوه سه:** چي عبادت کول د خدای ﷻ چي مشرک ته وویل سي معنا یې توحید ده ای وحدوا الله.

هُوَ أَنشَأَكُم مِّنَ الْأَرْضِ وَاسْتَعْمَرَكُمْ فِيهَا فَاسْتَغْفِرُوهُ ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ ۚ إِنَّ رَبِّي قَرِيبٌ مُّجِيبٌ ﴿٦١﴾

تاسي خدای ﷻ پیدا کړي یاست د مځکي څخه یعني بخلق ابیکم آدم منها، او تاسي یې آباد کړي یاست په مځکه کي او ضحاک رحمه الله یې ترجمه داسي کړې ده چي طویل عمرونه یې درکړي دي تاسي ته حتی چي ددوی د یوه سړي عمر به له دري سوه کاله څخه نیولې بیا تر زر کالو پوري و، طلب د مغفرت له خدای پاک څخه وکړئ بالایمان، کاشفي رحمه الله وایي ایمان آرید تا شمارا بیا مرزد. بیا توبه وکاږئ خدای پاک ته من عبادة غیره لان التوبة لاتصح الا بعد الایمان کما لایخفی. په تحقیق زما خدای قریب دی په رحمت سره. کریمه: ان رحمة الله قریب من المحسنین" او قبلونکی د دعا دی. شیرازي قدس سره وایي:

محالست اگر سر برین در نهی ........ که باز آیدت دست حاجت تهی

کریمه: ادعوني استجب لکم.

قَالُوا يَا صَالِحُ قَدْ كُنتَ فِينَا مَرْجُوًّا قَبْلَ هَٰذَا ۖ أَتَنْهَانَا أَن نَّعْبُدَ مَا يَعْبُدُ آبَاؤُنَا

قوم ورته وویل ای صالح ته وې په موږ کي د امید سړی یعني زموږ خیال وو چي ته به زموږ سردار وګرځې د مخه تر دې دعوت چي ته موږ امر کوې چي عبادت د خپلو خدایانو پرېږدئ اوس مو نو امید در څخه قطع سو، آیا ته موږ منع کوې چي موږ عبادت کوو د هغو خدایانو یعني الاوثان چي عبادت یې کاوه زموږ نیکه ګانو، نو لفظ "یعبد" حکایت د حال ماضیه دی.

وَإِنَّنَا لَفِي شَكٍّ مِّمَّا تَدْعُونَا إِلَيْهِ مُرِيبٍ ﴿٦٢﴾

او په تحقیق موږ په شکر کي د هغه شي څخه چي ته موږ وربولې یعني توحید

المعبود وترک عبادة الاصنام چي موږ په شک کي اچولي یو.

قَالَ يٰقَوۡمِ اَرَءَيۡتُمۡ اِنۡ كُنۡتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنۡ رَّبِّىۡ

صالح علیه السلام قوم ته وویل ای زما قومه تاسي ماته خبر راکړئ که زه ووم پر بیان حق د جانب څخه د رب زما.

**پوښتنه**: صالح علیه السلام خو متیقن وو چي زه پر بیان حق یم د خدای جل جلاله د خوا څخه. نو کلمه د شک چي ان ده ولي وویل؟

**ځواب**: صالح علیه السلام کلمه د شک په اعتبار د مخاطبینو وویل چي هغه د ده د نبوت څخه منکر وه، نو ګویا د داسي ورته وویل چي تاسي فرض کړي که زه ووم آه.

وَاٰتٰىنِىۡ مِنۡهُ رَحۡمَةً فَمَنۡ يَّنۡصُرُنِىۡ مِنَ اللّٰهِ اِنۡ عَصَيۡتُهٗ فَمَا تَزِيۡدُوۡنَنِىۡ غَيۡرَ تَخۡسِيۡرٍ﴿۶۳﴾

او راکړه سوې وو وماته رحمت یعني نبوت او علم دین، نو به څوک زما سره کومک وکړي یعني خلاص به کړي ما د عذاب څخه د خدای جل جلاله (بحذف المضاف وتضمین النصر لمعنی المنع) که زه عصیان وکړم د خدای جل جلاله څخه یعني په تبلیغ کي د رسالت او په منع کي شرک به تعالی، نو تاسي نه زیاته وئ ماته چي بېرته مو ودین د آباو بولي سوی د دې څخه چي ماته خسران ورسوئ.

**سوال**: صالح علیه السلام خو په خسران کي نه وو، نو څه معنی د "ماتزیدوننی غیر تخسیر"؟

**ځواب**: روح المعاني او روح البیان" او مظهري" او قرطبي بلکه ټولو مفسرینو رحمهم الله تخمینا په ګډه دوه جوابه د سوال مذکور ورکړي. اول چي تاسي زما متابعت وکړئ او رئیس د قوم وګرځوئ لکه چي دا قول د دوی دلالت پر کاوه" قد کنت فینا مرجوا" ماته نه فائده کوي غیر د تخسیر څخه. نو تزیدوننی په معنی د تفیدوننی اذلم یکن فیه تخسیر اصلا حتی یقبل الزیادة" یعني زما عمولته را باطله وي او د عذاب سره د خدای جل جلاله مي مخامخ کوئ" دوهم دا چي په خواصو د ابواب کي د شافیې د ابن حاجب رحمه الله راغلي دي چي باب د تفعیل ګاهي د پاره د نسبت راځي "نحو فسقته ای نسبته الی الفسق" وفجرته ای نسبته الی الفجور" فکذا التخسیرة بمعنی النسبة الی الخسران" یعني زه به نسبت ستاسي و خسران ته کوم" واقول انکم لخاسرون".

**درويش وايي:** چي دا دوهم جواب حسين بن الفضل وركړى دى" والفرق بين الجوابين ان الفاعل على الاول" القوم وصالح مفعوله وعلى الثاني بالعكس انتهى مافي التفاسير مع زيادة التوضيح من العبد العاصي.

**درويش وايي:** چي علامه بغدادي رحمه الله په روح المعاني كي نور جوابونه هم راوړي دي ونقل كلها يفضي الى الاطناب وفيما نقلنا كفاية.

**درويش وايي:** چي قوم د صالح عليه السلام يوه ورځ د عيد درلوده چي ټول به دښت ته ولاړه. نو صالح عليه السلام په اجتماعي ورځ كي د دوى ودوى ته دعوت د توحيد وركړى "وترك الشرك" نو دوى ورته وويل چي ته موږ ته يوه معجزه ښكاره كړه چي دليل ستا د نبوت وي صالح عليه السلام ورته وويل "اية آية تريدون" نو رئيس د دوى جندع بن عمرو ويوې لوى ځنډي د غره ته اشاره وكړه چي د دغه غره ځخه به يوه اوښه راوزي چي لوى نس يې وي" يعني لكه د غره د دغه حصه او په وړيو به پټه وي او د لسو (۱۰) مياشتو برالبه به وي (چي د اوښې ولادت او نتاج پر لس مياشتي كېږي) او هغه اوښه به لنګېږي جونګى يې دونه وي لكه موږ.

**درويش وايي:** چي د دوى په خيال دا د عقله ليري كار وو" د صالح په قدرت به داونسي او دوى غافله وه چي په قدرت د رب د صالح خو پوره ده" كريمه" اذا اراد شيئا ان يقول له كن فيكون" او قوم د صالح د ده سره ټينګي وعدې وكړې كه تا دغسي وكړه موږ پر تا ايمان راوړو يعني تا په نبوت منو" نو صالح عليه السلام دوه ركعته لمونځ وكړى او خداى ته خواست وكړى. نو د غره ځخه داسي اواز پيدا سو لكه اوښه چي لنګېږي غر سره وچاودى او په اوښه ځنډي را ووتل" او هغې ته سمدلاسه حالت د لنګول پېښ سو او د موږ په شان غټ جونګى يې وزېږاوه.

بعض مفسرين رحمهم الله وايي چي دا اوښه دومره غټه وه چي ميل په ميل كي پرېوتله يعني چوګېدله راوي وايي چي د دې معجزې په ليدو سره ځلور زرو (۴۰۰۰) كسانو سره د جندع ايمان راوړى" فقال صالح عليه السلام.

**وَيٰقَوْمِ هٰذِهٖ نَاقَةُ اللّٰهِ لَكُمْ اٰيَةً**

دا اوښه د خداى ده (نسبت وخداى ته يې په دې سبب وكړى چي دا اوښه په

محض قدرة د خداى ﷻ پيدا سوه بېله سبب عادي).

**پوه سه:** چي هذه مبتدا ده او ناقة الله يې خبر دى او لكم خبر مقدم دى پر مبتدا چي آية دى لكون المبتدا نكرة محضة كما هو القانون النحوي.

**فَذَرُوهَا تَأْكُلْ فِي أَرْضِ اللَّهِ وَلَا تَمَسُّوهَا بِسُوءٍ فَيَأْخُذَكُمْ عَذَابٌ قَرِيبٌ**

تاسي يې پرېږدئ دا به خوراک کوي يعني د نباتاتو او د بلگو د درختو (وتشربو ماؤها يې پرېښو لدلالة الاكل عليه) والمقصود منه دا دى چي نفقه يې پر تاسي نه ده لازمه، او مه مسه کوئ په بدو سره، يعني که يې تاسي مسه کړئ په سوء سره، نو تاسي ته به ورسېږي عذاب نژدې يعني په درو ورځو کي.

**پوه سه:** چي دا اوښې به په دوبې د شيلې د ونو پر غاړه خوراک کاوه د خلگو چارپايان د اوښې د ېېري نه ورتله، او ژمي کي بې د شيلې د نس وانبه خوړله او د خلگو چارپايانو د دې د ېېري د شيلې لوړ وانبه خوړل دا پر وطن والو ډېره درنه پرېوته ولې چي هغه ښه وانبه د دوبي او د ژمي به اوښې خوړله وفي رواية چارپايان د خلگو د ېېري د اوښې شيلې ته د ونو هرگز نه ورتله" دا شکايت خلگو و صالح ؑ ته وکړى" بيا د صالح او د دوى مشوره پر نوبت وکړه سوه" يعني په ورځ د اوښې به ستاسي چارپايان په کور کي وي، او يوه ورځ دي ستاسي د چارپايانو وي، اوښه به نه ورځي" نو دا نوبت دوى ته اشق تر اول سو.

**فَعَقَرُوهَا فَقَالَ تَمَتَّعُوا فِي دَارِكُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ**

دوى مړه کړه ناقة الله، پس وويل (صالح ؑ) تاسي ژوند کوئ په خپلو کورو کي درې ورځي.

**پوه سه:** چي عاقر که څه هم قدار بن سالف ؤ لکن چونکه دا کار قدار په مشوره د دوى وکړى، نو د دې سببه يې نسبت د هلاک يې وټولو ته وکړى اونبه چي مړه سوه غوښې يې پر ټوله اهل قريه ووېشلې.

**درويش وايې:** چي تفصيل د دې په تفسير کي د سورة الاعراف مطالعه کړه.

**پوه سه:** چي د دار څخه يا دنيا مراد ده او يا بلد د دوى درې ورځي" يعني (۴) شنبې (۵) شنبې او جمعه چي اوله ورځ به د ټولو مخان ژړ وي، او دوهمه ورځ به سره وي" او دريمه ورځ به تور وي او د شنبې په ورځ عذاب پر تاسي نازلېږي.

ذٰلِكَ وَعۡدٌ غَيۡرُ مَكۡذُوبٖ ۝٦٥

دغه د درو ورځو وعده دروغ نه ده" بعض مفسرین وايي چي مكذوب مصدر ميمي دی كالمجلود" والمفتون" او بعض مفسران وايي چي اصل يې مكذوب فيه وو حرف جر حذف سو ضمير يې و مكذوب ته نقل سو.

فَلَمَّا جَآءَ أَمۡرُنَا نَجَّيۡنَا صَٰلِحٗا وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مَعَهُۥ بِرَحۡمَةٖ مِّنَّا وَمِنۡ خِزۡيِ يَوۡمِئِذٍۚ

نو هغه وخت چي امر د عذاب زموږ ورسېدی، نو نجات ور كړی موږ و صالح ته او هغو كسانو ته چي ايمان يې راوړی وو سره د ده په رحمت عظيم سره زموږ د خوا او دغه رنګه مو نجات وركړی د رسوايي د دغې ورځي يعني هلاک مو نه كړه لكه كفار.

إِنَّ رَبَّكَ هُوَ ٱلۡقَوِيُّ ٱلۡعَزِيزُ ۝٦٦

په تحقيق ستا خدای قادر پر هر شي او غالب دی.

وَأَخَذَ ٱلَّذِينَ ظَلَمُواْ ٱلصَّيۡحَةُ فَأَصۡبَحُواْ فِي دِيَٰرِهِمۡ جَٰثِمِينَ ۝٦٧

او ونيول هغه كسان چي ظلم يعني كفر يې كاوه يوې ناري د جبرئيل (د يوې نعرې تفسير يې په سبب د دې وسو چي صيحة فعلة دی فعلة بفتح الفا وقال اهل الصرف ان وزن فعلة للمرة) او بعض مفسرين وايي چي د آسمان دخوا يو داسي چغه وسوه چي د هرې تكي آواز په كښې وو. نو د دوی زړونه په سينو كي وچاودل والاول هو الاشهر، نو وګرځېده دوی په خپلو كورو كي هلاک پر زنګنو ناست.

كَأَن لَّمۡ يَغۡنَوۡاْ فِيهَآۗ أَلَآ إِنَّ ثَمُودَاْ كَفَرُواْ رَبَّهُمۡۗ أَلَا بُعۡدٗا لِّثَمُودَ ۝٦٨

ګويا دوی نه دي اوسېدلي په خپلو كورو كي يعني موت په اجل واحد مره سوه. اګاه اوسه چي قوم ثمود كفر او انكار وكړی د توحيد څخه د خدای ﷻ اګاه اوسه چي بعد دي وي دوي لره د رحمت څخه د خدای قوم لره د ثمود.

**فائده:** ثمود په تاويل د قبيلة مؤنث دی. نو غير منصرف دی او په تاويل د قوم مذكر دی" په دې آيت كي پر قرائت مشهوره اول ثمود منصرف دی يعني منون دی او تنوين يې په الف بدل كړی دی او دوهم ثمود غير منصرف دی سره د دخول لام جاره په فتحه ويل كېږي.

وَلَقَدْ جَاءَتْ رُسُلُنَا إِبْرَاهِيمَ بِالْبُشْرَىٰ قَالُوا سَلَامًا

او په تحقيق راغله رسولان زمونږ يعني الملائكة، و ابراهيم ته په زيري سره د اسحاق او د يعقوب چي د اسحاق زوى دى او د ابراهيم لمسى دى" وقيل باهلاک قوم لوط.

**پوه سه**: چي "سلاماً" مفعول مطلق د فعل محذوف دى اى نسلم عليک سلاماً.

**پوه سه**: چي ابن عباس رضي الله عنهما او عطاء رحمه الله وايي چي دا ملكي دري وو جبرئيل او ميكائيل او اسرافيل" او محمد بن كعب وايي چي جبرئيل وو او (۷) ملكي نوري ورسره وو" او ضحاک وايي (۹) ملكي نوري ورسره وو او مقاتل وايي (۱۲) ملكي نوري ورسره وو او سدي وايي (۱۱) ملكي وو پر رنگ د ښائسته غلمانو.

**درويش وايي**: لا يمكن الجمع بين هذه الروايات او تعيين د عدد امر عقلي هم نه دى بلكه سمع ته ضرورت لري او روح المعاني نور اقوال او روايات پر زيات كړي دي ولله در روح البيان حيث قال جاء جبرئيل وجمع من الملائكة معه ولي چي روح البيان اذهان د سامعينو د اضطراب او تشويشه وساتل والله اعلم بالصواب.

**پوه سه**: چي لام د لقد موطئة د قسم محذوف دى اى بالله قد جاء.

**فائده**: تحية د ملكو ابراهيم ته په جمله فعليه سره وه.

قَالَ سَلَامٌ

**پوه سه**: چي جواب د ابراهيم په جمله اسميه سره دى او سلام مرفوع دى په حذف د مبتدا اى جوابي سلام يا په حذف د خبر مقدم اى عليكم سلام" په هر صورت جواب د ابراهيم احسن دى تر تحية د ملكو لان الجملة الاسمية تدل على الاستمرار بقرينة المقام بخلاف الفعلية كذا قال النحاة "كريمه" وإذا حييتم بتحية فحيوا باحسن منها او ردوها.

**پوه سه**: چي ملكي چونكه په رنگ د ښائسته خوش رنگه هلكانو وي، نو ابراهيم نه وپيژندلي چي ملكي دي بلكه د مهمانانو شک يې پر راغلى، نو يې په مهمان خانه كي كښېنولې او د ډوډۍ بندوبست يې ورته وكړى "وذالک قوله تعالى.

فَمَا لَبِثَ أَنْ جَآءَ بِعِجْلٍ حَنِيذٍ ﴿٦٩﴾

بتقدير في الجارة مع ان اى في ان، نو درنگ او معطلي ونه کړه په دې کې چې رایه وړې، تا آنکه آورد گوساله بریان کرده سنگ گرم، نو "حینذ" فعیل په معنی د مفعول دی روح البیان وایي چې "حینذ" هغه غوښي بولي چې پر گرمو ډبرو پخه سي بېله تنور او بېله اوره لکه د صحرا د خلگو چې دا عادت دی چې غوښي پر تودو ډبرو پخوي لکه کباب بېله کتوي. په تفسیر کواشي کې وايي چې "حینذ" هغه غوښي دي چې په یو غار ځای کې پر تودو ډبرو پخې کړي چې غوړي تر څاځي.

**بوه سه:** چې عام مال د ابراهیم غواوي او غوايي او گلګیان (او سخندران) وه

**فائده:** دا تول له تلوار د ابراهیم د مهمان نوازئ نتیجه وه.

فَلَمَّا رَآ أَيْدِيَهُمْ لَا تَصِلُ إِلَيْهِ نَكِرَهُمْ وَأَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيفَةً

ابراهیم چې ولیده چې لاسونه د میلمنو نه سوه اوږده وعجل حینذ ته یعني خوراک یې نه کړی شروع. نابلده یې په خیال ورغله بیضاوي وايي چې نکر "انکر" استنکر په یوه معنا دي یعني ابراهیم په دې نه سو پوه چې سبب د نه خوړلو د مهمانی څه شی دی، او پټ په زړه کې ور وگرځېدل د مهمانانو څخه بېره" ولې د قدیم څخه تر اوسه پوري دا عادت دی چې مېلمه چې ډوډی د کور نه خوري هغه مېلمه د شر وي لکن ظاهره دا ده چې ابراهیم په پوه سو چې ملکي خو دي لکن د دې څخه وبېرېدی چې په ما کې یو فعل منکر په نېز د خدای ﷻ نه وي پیدا سوی او یا د قوم د هلاک دپاره نه وي راغلي" ملکو چې د ابراهیم خوف احساس کړی، نو یې ورته وویل.

قَالُوا لَا تَخَفْ إِنَّا أُرْسِلْنَا إِلَىٰ قَوْمِ لُوطٍ ﴿٧٠﴾

بېرېږه مه موږ را استول سوي یو د پاره د اهلاک د قوم لوط.

وَامْرَأَتُهُ قَائِمَةٌ فَضَحِكَتْ

ماینه د ابراهیم سارة بن هاران بن ناخور وهي ابنة عم ابراهیم ولاړه وه دپاره د

خدمت د مېلمنو او ابراهیم ﷺ د مېلمنو سره لکه د صحرا د خلکو چي تر اوسه دا عادت دی چي ښځي یې د مېلمنو خدمت کوي او ستر نه کوي او شاید د ابراهیم ﷺ په دین کي ستر نه وو لکه په ابتدا کي د اسلام چي ستر نه وو.

**یوه سه**: چي اکثر مفسرین پر دې روښ دي چي مراد د ضحکت څخه ضحک متعارف مراد دی یعني خندا دون القهقه وفوق التبسم لکن په سبب کي د خندا دې اختلاف دی" بعض وايي چي د دې خوشحالی په اثر یې وخندل چي خوف د ابراهیم او د دې زائل سو، چي ملکو ورته وویل لا تخف او قتادة وايي چي د تعجب د لاري وخندل چي قوم لوط ته عذاب نژدې دی او دوی هنوز په غفلت کي د کفر او د عصیان د فعل خبیث د لواطت ډوب دي، او سدي رحمه الله وايي چي ابراهیم چي دوی ته یعني عجل حنیذ ودوی ته راوړی او دوی نه خوړله فخاف ابراهیم وظنهم لصوصاً چي غله دي. ولي چي د پخوا د زماني د غلو دا قانون و چي د یو چا و کور ته به یې اراده د غلا وه د هغه کور ډوډۍ یې نه خوړله چي دا احسان د کور والا به موږ شرموي، په خلاف د غلو زموږ د زماني د چا په کور کي چي مهماني وخوري او په مهمان خانه کي بیده سي مابنام کور ته ورسي مال ځني یوسي، او که کور والا مزاحمت ورسره وکړي اخیر دی مر کړي او مال ځني یوسي حتی په کور کي د ښځو د لاسو د زرو بنګړي ځني وکاږي.

**یوه سه**: چي د لفظ د ولي د درویش تبصره وه، اوس بیرته د سدي رحمه الله د روایت پر لور، فلما رئ ابراهیم وسارة ایدیهم لاتصل الیه، ساره وخندل او وه یې ویل تعجب دی زموږ وه مهمانانو ته چي موږ یې خدمت په خپله کوو لپاره د اکرام د دوی او دوی زموږ ډوډۍ نه خوري انتهی روایة سدي باختصار.

**درویش وايي**: چي من عجائب تفاسیر ضحکت مانقل من مجاهد وعکرمة من غیر سند کماذکر المظهري "حاضت في الوقت" دې ته حیض ورغلی دستي. د تعجب ځای دادی چي د حیض سبب نو څه ؤ، او دا د امرأته قائمة سره څه تعلق لري، مظهري رحمه الله یوه محاوره د عربو له قاموس څخه نقل کړې ده ضحکت الارنب ای حاضت. مظهري د خلګو په خیال دا ورکوي چي قاموس د آیت د

ضحکت ترجمه په حاضت سره کړې ده کلا وهاشا، قاموس خو د لغتو يو معتبر کتاب دی د قرآن تفسير خو نه دی صرف معاني لغويه د لسان العرب بيانوي. او بعض وايي چي ساره له خوشاليه وخندل چي ملکو وويل "انا ارسلنا الی قوم لوط" خوشالي په دې وه چي اهل فساد له منځه ولاړ سي. او له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چي ساره پر دې وخندل چي ابراهيم عليه السلام سره د خادمانو او مريانو له دې درو کسو څخه دومره ډېر بېرېږي كذا في روح المعاني.

**درويش وايي:** قيل في سبب الضحک غير ماذكرناه والله اعلم.

## فَبَشَّرْنٰهَا بِإِسْحٰقَ وَمِنْ وَّرَآءِ إِسْحٰقَ يَعْقُوْبَ ﴿٧١﴾

موږ وروسته تر خوشالۍ د ساره رضي الله عنها امرئة ابراهيم عليه السلام كمادل عليه قوله تعالی "فضحكت" بل لوی زېری د خوشالۍ په واسطه د ملکي پر دې وکړی.

**پوښتنه:** نسبت د زېري يې ولي ودې ته وکړی او سره ددې چي نسبت خو د نر دی. نو پر ابراهيم عليه السلام به يې زېری کړی وای؟

**ځواب:** سبب د بشارت ودې ته دادی چي ساره عقيم يعني وچه وه او بل داچي ددې بنې هاجرې زوی درلودی يعني اسماعيل عليه السلام.

**بوه سه:** "باسحٰق" په ځای کي د جر په فتحه سره دی سبب يې ووېل سو چي غير منصرف دی للعجمة والعلمية.

**بوه سه:** چي وراء ظرف مکان په معنی د قدام او خلف دواړو راغلی دی چي له اضداد څخه سي او گاهي مجازاً ظرف زمان هم مستعملېږي "اسحٰق يعقوب" يعني وهبناها وروسته تر اسحٰق يعقوب چي ددې لمسی سي، د يعقوب د بشارت سبب دادی چي زېری ورکړل سي چي ته به ژوندی يې لمسی يعقوب ابن اسحٰق به هم وويني.

**درويش وايي:** چي ساره ته دا زېری د اسحٰق او د يعقوب وسو دې تندی په چپلاخه وواهه كما جا في موضع آخر من القرآن فصكت وجهها دا د ښځو عادت دی چي يوه ډېره د تعجب خبره واوري ددې په شان کي دوی تندی په چپلاخه ووهي. دلته دا زېری هم د تعجب خبره وه ولي چي دا عمر رسيده وچه وه. لهذا قالت "يٰويلتیٰ"

قَالَتْ يَٰوَيْلَتَىٰٓ ءَأَلِدُ وَأَنَا۠ عَجُوزٌ وَهَٰذَا بَعْلِى شَيْخًا ۖ إِنَّ هَٰذَا لَشَىْءٌ عَجِيبٌ

اى تعجب مالره. استفهام لپاره د تعجب دى لا للانكار، والمعنى آيا زه به لنګېږم او حال دادى چي سپين سرې سال خورده يم چي په قول د ابن اسحق د نيوې كالو وه او په قول د مجاهد رحمه الله د نهه نيوې كالو وه. او دا زما مېړه دى يعني ابراهيم عليه السلام چي سپين ږيرى دى چي د يو سل او شلو (۱۲۰) كالو دى. په تحقيق دا ولادت د دوو سال خورده وو تر منځ يو شى دى د تعجب وړ.

**بوه سه**: چي دا كلمه اصلاً په شر كي مستعملېږي، نو په امر فظيع پورې خاصه ده او د تعجب په وخت كي هم ويل كېږي په دې ځاى كي لپاره د تعجب ده ومبشر به من ولد وولد ولد، او الف د ويلتى بدل له يا ځخه د اضافت دى كما في قرائة الحسن رحمه الله ياويلتي باليا.

**فائده**: شيخاً حال دى له بعل ځخه عامل يې معنى د اشير ده چي په هذا كي ستـه كما في كتب النحو.

**بوه سه**: چي مفسرين رحمهم الله وايي چي په منځ كي د بشارت او ولادت يو كال تېر سو.

قَالُوٓا۟ أَتَعْجَبِينَ مِنْ أَمْرِ ٱللَّهِ

ملكو ورته وويل لپاره د انكار پر تعجب ددې كما يدل عليه قوله تعالى ان هذا لشئ عجيب" فالهمزة للانكار، آيا ته تعجب كوې وه امر ته د خداى جل جلاله يعني قضائه وقدرته. ولي چي خداى پاك اراده د يو شي وكړي هغه به حتماً كېږي. سعدي مفتي رحمه الله وايي چي جبرئيل عليه السلام يو وچ لرګى له منځني ځخه راپورته كړى او د ګوتو په منځ كي يې سره ومښى هغه لرګى شين سو د ستي. نو دا بوه سوه چي دا امر د خداى پاك دى.

**بوه سه**: چي د خداى عزوجل د قدرت عجائب ښځي ډېر دي فلا ينبغي التعجب مثلاً امرئة عمران چي حنه يې نوم ؤ عقيم يعني وچه وه تر سپين سر تو به پورې ثم حملت بمريم عليها السلام لكه په آل عمران كي چي تېره سوه. نو چي حمل په قدرت د خداى جل جلاله دى نو حيض ته ضرورت نه لري يعني چي كلان سالي ښځي ته خو

حيض نه ورځي نو حمل به څرنګه واخلي، او دا هم له قدرت څخه د خدای پاک لیري کار نه دی چي عمر رسیده ښځي ته دي حیض پیدا سي، په تاریخ اسلامي کي راغلي دي چي حجاج بن یوسف چي اظلم د انسانانو ؤ څه وخت چي يې پر عبدالله بن الزبير رضي الله عنهما حمله په مکه مکرمه کي وکړه دی يې ګرفتار کړی امر يې وکړی چي د ذم ذم پر غاړه دي ذبح سي. اسماء بنت ابی بکر صديق رضي الله عنهما چي د سيدتنا عائشة رضي الله عنها خور وه او د سلو کالو وه وره راغله لکړه ور څخه وه څه وخت چي د عبدالله بن الزبير رضي الله عنهما پر غاړه چاړه کش سوه او وينه يې مور وليدل دستي حيض هم ورغلی او تر تيو يې شيدي راغلي، نو دې وويل چي زويه هغه رحم چي ته پکښي ژوندی سوی وې هغه دريسي وژړل او تي چي تا شيدې څني رودلي هغو هم دريسي وژړل. نو زه نه دريسي ژاړم وقالت انا لله وانا اليه راجعون" څني راهي سوله.

**سوال**: د تعجب معنی خو داده چي يو سړی امر خارق للعادة ووينی ورته حيران سي، نو دلته د ابراهيم عليه السلام د کور والا خو دا شان عجب او خارق للعادة ؤ چي د دوو عمر رسيده نر او ښځي څخه عيال پيدا کېږي، او دا چي دا کار خو مقدور د خدای جل جلاله منافي د استعجاب سره نه دی. ولي چي هر شی خو مقدور د خدای دی که څه هم مخالف د عادت وي. نو پر دې ښځه ولي ملکو انکار د تعجب وکړی؟

**ځواب**: روح المعاني ا. مظهري وايي چي ساره رضي الله عنها په مهبط د وحي او ليدلو سره د خارق العادة او معجزاتو په کور کي وه يعني د ابراهيم عليه السلام کور والا وه نو دې ولي تعجب کاوه وه ولادت ته له دې څخه چي عجوز عقيم وه او ددې له خاوند څخه چي شيخ ؤ، نو ځکه ملکو انکار پر وکړی "اتعجبين آه"

رَحْمَتُ اللهِ وَ بَرَكٰتُهٗ عَلَيْكُمْ اَهْلَ الْبَيْتِ

بعض مفسرين رحمهم الله وايي چي دا دعا د ملکو له خوا څخه وه. او بعض وايي اخبار دی د ملکو له خوا څخه، نو که دا جمله اخبار سي د ملکو له خوا څخه، نو دا جمله مستأنفه ده علت د انکار د ملکو ده، نو ګويا ساره رضي الله عنها ته ووېل سوه چي

ته څرنګه تعجب کوې ولې چې امثال ددې رحمت الولاد او برکت خو ستاسې پر کور د پر نازل سوي دي.

**پوه سه:** چې د پر مفسرين رحمهم الله وايي چې مراد له رحمت څخه نبوت دی يعني د ابراهيم عليه السلام او له برکاتو څخه مراد اسباط د بني اسرائيلو دي، ولې چې انبياً د بني اسرائيلو ټول له دغو اسباطو څخه وه او ټول له اولاد د ساره رضي الله عنها وه.

**نکته:** پر دې تقدير يې څکه رحمت په لفظ مفرد راوړی او برکات يې په صيغه د جمع راوړه فافهم. او بعض تفاسير وايي چې د رحمت معنی نعمت ده او يا قرب الهي دی او د برکت نما او زيادت دی په هر شي کي.

**پوه سه:** چې "اهل البيت" منداً ده په حذف د حرف نداً يعني يا اهل البيت او يا منصوب على المدح ده بحذف اعنى.

**درويش وايي:** چې منصوب على المدح يا مرفوع على المدح مثال يې دادی بسم الله الرحمن الرحيم بالنصب او الرفع، نو نصب يې په حذف د اعني دی او رفع يې په حذف د مبتدأ ده ای هو، مع ان المقام مقام الجر لكونهما صفتان للفظ الله المجرور بالاضافة، وعلى هذا فقس المنصوب على الذم او المرفوع على الذم مثل اعوذ بالله من الشيطان الرجيم بنصب الرجيم او برفع الرجيم مع كونه صفت للمجرور وهو لفظ الشيطان. وهكذا المنصوب على الترحم والمرفوع عليه نحو مررت بعبدک المِسکين او المَسکين برفع المسکين او بنصبه مع انه صفت لعبدک المجرور.

**فائده:** دا تفصيل ما ددې لپاره وکړی چې مظهري فقط ويلي وه چې اهل البيت منصوب على المدح دی انتهی.

## إِنَّهُ حَمِيدٌ مَّجِيدٌ ﴿٧٣﴾

په تحقيق خدای جل جلاله فاعل د هغو کارو دی چې دی مستحق د حمد ګرځوي خصوصاً په حق کي د ساره رضي الله عنها او کثير الخير والاحسان دی خپلو بندګانو ته من العوام والخواص نو حميد فعيل په معنی د مفعول دی، كذا قال صاحب روح المعاني، او مجيد فعيل په معنی د فاعل دی کما لايخفى فافهم.

فَلَمَّا ذَهَبَ عَنْ إِبْرٰهِيمَ الرَّوْعُ وَجَآءَتْهُ الْبُشْرٰى يُجَادِلُنَا فِىْ قَوْمِ لُوْطٍ ﴿٧٤﴾

پس هغه وخت چې ولاړه يعني زائله سوه له ابراهيم ﷺ څخه يېره (لکه چې په هغه آيت کې ذکر سوه چې دی له راغليو مهمانانو څخه وېرېدی فاحبس منه خيفة) او راغلی ورته زېری د زوی اسحق او د لمسي يعقوب "يجادلنا" دا جواب د "لما" دی.

**سوال**: يجادل خو مضارع ده او دا مجادله خو د قرآن تر حکايت دمخه وه نو حق د عبارت به داسي نه وُ جادلنا؟

**ځواب**: دې ته په نحو کې حکايت د حال ماضيه وايي، نو عرب په حال ماضيه کې چې عجيب او غريب حال وي لفظ د مضارع په معنی د حال استعمالوي تاچې هغه حالت ماضيه وه اورېدونکو ته حاضر کړي ددوی تاچې دوی تعجب ورته وکړي وهذا قانون کلي في لسان العرب الذي ورد عليه القرآن. او بل ځواب دادی چې مضارع په سياق کې د "لما" په معنی د ماضي ده کجواب لو.

**پوښتنه**: مجادله او بحث د خدای پاک خو نه دی روا؟

**ځواب**: يجادلنا دلته په معنی د يکلمنا دی او سألنا سوال المتضرع. او اکثره مفسرين وايي چې په عبارت کې مضاف محذوف دی يعني يجادل رسلنا وهم الملائكة "في قوم لوط" او معنا د مجادلة الرسل داسي وه چې ابراهيم ﷺ وملکو ته وويل چې په ښارو او وطنو کې د قوم لوط که پينځوس کسه د مؤمنانو وي تاسي دا ځايونه هلاکوئ؟ ملکو ورته وويل لا! بيا ابراهيم ﷺ ورته وويل که څلوېښت کسه وي؟ ملکو ورته وويل لا! نه يې هلاکوو. بيا ابراهيم ورته وويل که دېرش کسه وي؟ ملکو ورته وويل لا. حتی ابراهيم ﷺ تر پينځو پوري ورته وويل ملکو ورته وويل لا. بيا ابراهيم ﷺ ورته وويل که يو مسلمان پکښې وي اتهلکونها؟ ملکو ورته وويل يا. نو ابراهيم ﷺ ورته وويل ان فيها لوط. ملکو ورته وويل نحن اعلم بمن فيها. موږ ښه خبر يو بمن فيها چې لوط دی لننجينه الا امرئته كانت من الغابرين يعني من الباقيين في العذاب والهلاک لانها كانت كافرة منافقة كما حكى الله ذالک في موضع آخر من القرآن.

**فائده**: د ابراهیم ﷺ دا گمان ؤ چي قرئ لوط د لوط سره هلاکېږي، نو ځکه يې سوال تر لوط ﷺ پوري راورساوه او له دې سببه ملکو ورته وويل نحن اعلم بمن فيها الخ. يعني ملکو ابراهيم ﷺ ته د نوح ﷺ د نجات زيرئ ورکړئ.

إِنَّ إِبۡرَٰهِيمَ لَحَلِيمٌ أَوَّٰهٞ مُّنِيبٞ ۝٧٥

په تحقيق ابراهيم حليم ؤ چي تلوار يې په انتقام د مسيئ نه کاوه، ډېر اُوه اُوه يې کاوه پر گنهو که څه هم معصوم ؤ او يا کثير التاوه پر خلکو چي ايمان يې نه راوړئ، راجع الى الله و.

**پوهه**: چي مقصود په ذکر کولو د صفاتو د ابراهيم ﷺ بيان دئ د سبب د مجادله د ابراهيم په شان کي د لوط عليهما السلام يعني دده زړه نرم ؤ او ترحم يې ډېر ؤ، نو ملکو په وخت کي د بحث د ابراهيم ﷺ ده ته داسي وويل.

يَٰٓإِبۡرَٰهِيمُ أَعۡرِضۡ عَنۡ هَٰذَآۖ إِنَّهُۥ قَدۡ جَآءَ أَمۡرُ رَبِّكَۖ وَإِنَّهُمۡ ءَاتِيهِمۡ عَذَابٌ غَيۡرُ مَرۡدُودٖ ۝٧٦

اي ابراهيمه ددې جدال څخه لاس واخله، په تحقيق سره رسېدلې ده قضأ الهي په اهلاک سره د قوم لوط بحيث لا مردله، نو ددوئ په باره کي سوال او خواست فائده نه کوي، او په تحقيق قوم لوط ته راتلونکى دئ عذاب چي هيڅ نه ردېږي نه ستا په جدال او شفاعت سره او نه په بل سبب سره.

**فائده**: لوط ﷺ د ابراهيم ﷺ وراره ؤ يعني لوط ابن آذور ابن آذر. او بعض اهل تاريخ وايي چي د اکا زوئ يې ؤ او ساره امرئة ابراهيم د لوط ﷺ خور وه. نو دې چي واورېدئ هلاک د قوم لوط نو ډېره غمجنه سوه، نو ابراهيم ﷺ جدال شروع کړئ، نو که د خداى پاک سره وي کما هو ظاهر القرآن، نو دا جدال دئ د ضعيف د قوي سره لا بالعکس او جدال دئ د محتاج فقير سره د غني کريم، او جدال دئ د رحمت او طلب دئ د نجات د قوم کافرين څرنگه ابراهيم ﷺ کاوه مع انهم اعدا الله؟

**ځواب**: مقصود د ابراهيم ﷺ رفع د عذاب مع الکفر نه وه بلکي غرض دده امهال ؤ د نزول د عذاب لعلهم يتوبون ويؤمنون کما يدل عليه قوله تعالى ان ابراهيم لحليم کمامر من تفسير الحليم.

**پوهه**: چي راويان د قصي وايي چي ملائکه چي د ابراهيم ﷺ له مجادله څخه

فارغه سوه، نو د هغې لوی قریې له قرې څخه د قومِ لوط چې سدوم یې بلله راهي سوې په صورت د ښائسته هلکانو د انسانانو. نو تقریباً د ابراهیم ﷺ د قریې او د لوط ﷺ د قریې تر منځ څلور فرسخه مسافت ؤ هورې په نیمایي کي د ورځي ورسېدل. نو پر یو ځاه یا یو لښتي ښځي سره جمع وې چي اوبه یې ورلې او په هغو ښځو کي د لوط ﷺ لور هم وه. نو د لوط ﷺ لور پوښتنه څني وکړه چي تاسي د کومه ځایه راروان یاست او چېري ځئ؟ دوی ورته وویل چي د فلاني ځای څخه راروان یو او دې سدوم قریې ته مو نیت د ورتګ دی. نو د لوط ﷺ لور دوی خبر کړه د خباثت د عمل د اهل سدوم یعني اللواطة مع حسان الوجوه ددې مراد دا ؤ چي تاسي خو هم حسان الوجوه یاست. ملکو ظاهراً پر ځانو حالت د غم او خواشنی ښکاره کړی. نو ملکو د لوط ﷺ لور ته وویل چي په دې قریه کي څوک صالح سړی نسته چي مونږ مېلمانه کړي؟ دې ورته وویل چي هیڅ صالح سړی نسته بېله هغه شیخ (خپل پلار ته یې اشاره وکړه چي هغه د کور په دروازه کي ولاړ ؤ) ملکي په هغه انسي صورت کي ده ته ورغلې وهو قوله تعالی.

وَلَمَّا جَاءَتْ رُسُلُنَا لُوطًا سِيءَ بِهِمْ

نو چي ورغله رُسل زمونږ لوط ﷺ ته، نو دی غمجن سو په ورتګ ددوی. غم دده ددې جهته نه ؤ چي دا خلګ خو مسافر دي دودی او مهماني غواړي فحاشا بیت النبوة عن ذالک، بلکې په دې سبب محزون او غمجن سو چي د لوط ﷺ خو دا یقین ؤ چي دا خو انسانان دي او ډېر ښائسته هلکان دي او وه ده ته د خپل قوم خباثت او فعل د لواطت معلوم ؤ او ده په ځان کي طاقت د مقاومت او مدافعت نه لیدی، نو ځکه خوابدی سو ددوی په ورتلو سره.

وَضَاقَ بِهِمْ ذَرْعًا وَقَالَ هَٰذَا يَوْمٌ عَصِيبٌ ﴿٧٧﴾

او تنګ سو لوط ﷺ په سبب د ملکو، او وویل لوط ﷺ چي دا ورځ ده ډېره سخته یعني پر ما باندي.

**پوه سه**: چي ذرعاً تمیز دی له نسبت څخه د "ضاق" و لوط ﷺ ته او دا تمیز محول له فاعل څخه دی یعني ضاق ذرعه، بغوي رحمه الله وایي چي مراد له ذرع

څخه قلب دی. او بیضاوي وايي چي صدره. او مظهري وايي چي ذرع په اصل لغت کي لاس ته وايي تر څنګلي پوري. او قوت ته هم وايي لکه ید چي قوت ته وايي. نو معنی د آیت داده چي ضعیف سو قوت او طاقت د لوط ﷺ په سبب د ملکو چي په صورت کي د ښائسته هلکانو وې او د فحاشی څخه د قوم د دوی سره یې چاره نه لیدله. او هیڅ حیله یې په دماغ کي نه ورتله.

**فائده:** خدای پاک ملکو ته ویلي وه چي تر هغو دا قوم مه هلاکوئ چي لوط پر دوی څلور واره شاهدي ادا کوي چي زما قوم ډېر بد قوم دی. نو ملکو ته لوط وویل چي تاسي ته څه خبر در رسېدلی دی زما د قوم په حال کي. ملکو ورته وویل چي څه حال دی ستا د قوم. لوط ﷺ ورته وویل اشهد بالله چي دا قریه شر د قری از روی عمل (یعني اهل ددې قریې بد د خلګو دي از روی عمل یعني اللواطة) څلور واره یې دا شاهدت مکرر ووایه. نو قوم لوط چي د لوط ﷺ سره ډېر زیبا او ښائسته هلکانو ولیدل نو.

## وَجَآءَهُ قَوْمُهُ يُهْرَعُونَ إِلَيْهِ

راغله لوط ته قوم دده په ډېر سرعت او تلوار. ابن عباس رضي الله عنهما او قتاده رحمه الله د یهرعون معنی یسرعون کړې ده. او حسن بصري رحمه الله وايي چي اهراع تګ دی دعادي تګ او ځغاستي تر منځ چي په پښتو یې ډېلک تګ بولي. او بعض اهل تاریخ وايي چي قوم د لوط ﷺ خو ملکي حسان الوجوه مېلمانه د لوط نه وه لیدلي لکن لوط چي مېلمانه کور ته راوستل ماینې ته یې وویل چي ته چېګه ولاړه سه ډوډۍ او کټغ پوخ کړه د مېلمنو لپاره. ماینه یې له کوره په یوه بهانه ووتل او د نژدې کورو خلګو ته یې وویل چي زموږ په کور کي داسي ښائسته هلکان دي پاک او خوشبویه کالي یې اغوستي دي د لوط مېلمانه دي فعند ذالک وجائه قومه الآية.

## وَمِنْ قَبْلُ كَانُوا يَعْمَلُونَ السَّيِّئَاتِ

او دمخه تر دې ورځي دوی عمل د سیئاتو کاوه یعني لواطة.

**سوال:** لواطت خو یوه سیئه ده نو د جمعیت سبب یې څه دی؟

**ځواب**: جمعیت یې په سبب د ډېر والي د فاعلانو دی.

## قَالَ يٰقَوْمِ هٰٓؤُلَآءِ بَنَاتِيْ

وويل لوط چې قوم قصد د لواطت د ملکو وکړی په ګمان د غلمانو، دادي زما لوڼې تاسي ته به یې په نکاح درکړم او تاسي خپل قضا شهوت پر وکړئ.

**فائده**: قوم دده لوڼې په نکاح ځني غوښتلې ده نه ورکولې په سبب د خباثت ددوی او ددې چې د لوط کفو نه وه.

**یوه سه**: چې بعض خلګ وایي چې په دې سبب ده نه ورکولې چې دده لوڼې مؤمناتې وې او دوی کافران وه او نکاح د مؤمنه خو د کافر سره نه ده روا، لکن دا خبره غلطه ده ولې چې دا حرمت خو شرع جدیده یعني زموږ په شریعت کې نه ده روا حتی چې علیه الصلوة والسلام چې نبي نه و خپل یوه لور یې چې رقیه یې نوم وه وعتبه بن ابي لهب ته ورکړې وه. او بله لور یې چې زینب نومېدله ابی العاص بن الربیع ته په نکاح ورکړې وه وهما کافران مشرکان. او حسین بن الفضل وایي عرض علیهم بناته بشرط الاسلام.

**درویش وایي**: چې وهذا لیس بشیئ لان هذا لایفهم من عبارة القرآن ولا جا في حدیث حسن ولا صحیح.

**درویش وایي**: چې زه په دې موضع کې ډېر فکرجن او حیران وم، چې د لوط خو دوې یا درې لوڼې وې. نو څرنګه لوط ودوی ته پېش نهاد د لوڼو د نکاح وکړی او سره ددې چې دوی خو ډېر راغلي وه. حتی چې په روح المعاني کې مي داسي ولیدل چې د لوط دوې لوڼې وې چې یوه زعورا نومېدله او بله زیتاه نومېدله. او دده د قوم دوه سرداران وه چې ټوله قوم ددغو دوو سردارانو اطاعت کاوه، نو د لوط ﷺ مراد دا و چې زه به دغه دوې لوڼې ودغو سردارانو ته ورکړم او دا دوه سرداران به خلګ زما د مېلمنو د لواطت څخه منع کړي، دا د لوط ﷺ لويه مهمان نوازي وه چې خپلې لوڼې د دفع د ضرر د مېلمنو څخه پېش کړې، ددې خبرې تائید دا کوي چې د دوو لڼو د لوط په یوه وار نکاح د جماعت کثیره سره هیڅ صورت په هیڅ ملت کې نه لري، روح المعاني وایي چې ابو الشیخ له ابن عباس رضي الله عنهما او ابن ابي حاتم له ابن

جریر څخه، او ابن ابی الدنیا او ابن عساکر د سدي رحمه الله څخه داسي روایت کړی دی چي مراد د لوط عليه السلام ښځي د امت دده وي.

**سوال:** ښځي د امت دده خو حاضري نه وي، نو په هؤلآء سره اشاره څرنګه ورته روا ده؟

**ځواب:** روح المعاني داسي ځواب ورکړی دی لتنزیلهن منزلة الحاضر عنده.

**پوښتنه:** لوط عليه السلام یې اضافت وځان ته څرنګه وکړی في قوله بناتي. روح المعاني جواب داسي ورکړی دی لان کل نبي اب لامته (ای اب معنوی لهم لتربیته ایاهم تربیة روحانیة) کما في قرائة ابن مسعود رضي الله عنه النبي اولی بالمؤمنین من انفسهم وهو اب لهم وازواجه اماتهم. وقرء ابي رضي الله عنه مثل ذالک لکن قدم وازواجه امهاتهم علی وهو اب لهم. والمراد بالنبي في هذه الآیة هو رسول صلى الله عليه وسلم.

**درویش وایي:** چي په مشهور قرائت کي علی ما في المصاحف المطبوعة عبارة د وهو اب لهم نشته، ددې سببه نسبت د هغه قرائت چي وهو اب لهم په کتبې دی وه ابن مسعود او ابی رضي الله عنهما ته مي وکړه.

## هُنَّ اَطۡهَرُ لَکُمۡ

دوی ښه پاکي دي تاسي لره تر لواطت د غلمانو ولي دوی خو په نکاح صحیح تاسي وطي ورسره کوي او فرج د ښځي د قاذوراتو د دبري پاک دی.

**پوه سه:** چي "هن" مبتدأ ده او "اطهر" یې خبر دی.

**سوال:** اطهر خو اسم تفضیل دی چي وجود د اصل فعل په مفضل علیه کي غواړي، نو باید اصل طهارت په لواطت کي هم وي ولیس کذالک؟

**ځواب:** د اسم تفضیل هر ځای دا مقتضی نه ده لان العرب یقولون النکاح اطهر من الزنی. دا قول خو پر دې دلالت نه کوي چي په زنی کي هم طهارت سته لانه خبث من کل الوجوه. او دوهم دادی چي قوم د لوط پر زعم فاسد باطل ویل چي په لواطت کي هم طهر سته یعني روا دی. نو لوط عليه السلام ددوی پر زعم باطل ورته وویل "هن اطهر لکم" دریم ځواب دادی چي په ورځ د احد چي اوویا مؤمنانو جام د شهادت نوش کړی او ابو سفیان جنګ متوقف کړی او د احد غره

پر ځانګه يې نعره وکړه پر عليه الصلوة والسلام او پر مؤمنانو باندي چې د عليه الصلوة والسلام سره د غره په لمن کې جمع وه، داسي يې وويل اعل هبل چي ددوی د يوه بت او معبود نوم ؤ. نو عليه الصلوة والسلام وخلګو ته وويل الا تجيبوه؟ مسلمانانو ورته وويل چي څرنګه جواب ورکړو، عليه الصلوة والسلام ورته زياته کړه قولوا الله اعلى واجل. دا خو هم دواړي صيغې د اسم تفضيل دي او ددې تقاضى نه کوي چي په هبل بت کي علو او جلالت سته وامثال ذالک کثيرة وفي ما ذكرناه كفاية.

## فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَلَا تُخْزُوْنِ فِيْ ضَيْفِيْ ۭ اَلَيْسَ مِنْكُمْ رَجُلٌ رَّشِيْدٌ ۝

او تاسي ما مه رسوا کوئ او مه مي شرمنده کوئ د مېلمنو په باره کي يعني چي تاسي لواطت ورسره وکړي. آيا نسته له تاسي څخه يو سړی چي قوم ته حقه لار بيان کړي او امر بالمعروف او نهي عن المنکر ورته وکړي.

## قَالُوْا لَقَدْ عَلِمْتَ مَا لَنَا فِيْ بَنٰتِكَ مِنْ حَقٍّ ۚ وَاِنَّكَ لَتَعْلَمُ مَا نُرِيْدُ ۝

دوی وويل چي ته پوهېږې يا لوط چي موږ لره نسته ستا په لوڼو کي هيڅ حق يعني هيڅ حاجت نه ورته لرو ولي چي موږ د فرج شوقيان نه يو. او ته اې لوطه ښه پوهېږې په هغه شي چي موږ اراده ورته لرو يعني اتيان ادبار الرجال المردان.

## قَالَ لَوْ اَنَّ لِيْ بِكُمْ قُوَّةً اَوْ اٰوِيْٓ اِلٰى رُكْنٍ شَدِيْدٍ ۝

**بوه سه:** چي کلمه د "لو" لپاره د تمنى ده نو جواب نه غواړي. وويل لوط وه دوی ته کاشکي مالره قوت په بدن کي وای چي ستاسي دفع مي په کړې وای لکن زه يو يم تاسي ډېر ياست، نو زه تاسي نسم دفع کولای په يوازي بدن، او بعض مفسرين رحمهم الله وايي چي کلمه د "لو" شرطي ده جواب يې محذوف دی وتقديره لوقيت بنفسي، او يا زه ورضم سوی وای د قبيله قوي ته چي ستاسي له شر څخه مي ځان ساتلی وای. د "لو" جواب محذوف دی په معطوف کي کما في المعطوف عليه والتقدير لا متنعت به عنکم.

**بوه سه:** چي په قاموس کي وايي الركن بالضم الجانب الاقوى من الجبل وغيره

وما تقوى به من ملک وجند وغیره. نو په دې آیت کې لوط ﷺ قوم او قبیله د جانبه سره د غره په قوت کې.

**پوه سه**: چې "او آوى الى ركن شديد" معطوف پر لو ان لي بكم قوة.

**سوال**: او آوى آه خو جمله فعليه ده او ان لي بكم قوة خو جمله اسميه ده فكيف يصح العطف؟

**ځواب**: ان في المعطوف عليه فعل مقدر والتقدير لو ثبت ان لي آه.

**پوه سه**: چې بغوي رحمه الله له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت کړی دی چې لوط ﷺ د سرای دروازه د دننه له خوا څخه بنده کړه او مېلمانه يعني ملکي په سرای کې وې. او لوط ﷺ د قوم لواطت غوښتونکو سره من وراء الباب زاری کولې لکه دمخه چې تېره سوه او لواطت کارانو کوشش کاوه چې د سرای پر دېواله ورواوړي. نو ملکو چې دا حال د عجز او زاریو د لوط ﷺ ولیدی نو.

قَالُوا يَلُوطُ إِنَّا رُسُلُ رَبِّكَ لَن يَصِلُوا إِلَيْكَ

نو ملکو وویل چې موږ رسولان د خدای ﷻ یو یعني چې لپاره د اهلاک د قوم لوط را استول سوي یو او ستاسې لپاره رکن شدید یو. هرګز دوی تا ته هیڅ ضرر نه سي رسولای یعني دروازه ورخلاصه کړه او موږ او دوی سره پرېږده. لوط ﷺ چې دروازه خلاصه کړه او دوی ورننوتل. نو جبرئیل ﷺ په اجازه د خدای پاک په خپل صورت ملکي کې ځان ورښکاره کړی او په وزر یې دوی پر مخ ووهله سترګې یې پوچې او په سترګو رانده سوه او میدان یې کړه لار د نجات نه ورمعلومېدله. نو یې سره نعرې کړې النجاة النجاة چې په وه سرای ته د لوط لوی ساحران د دنیا راغلي دي چې پر موږ یې سحر وکړی او په عین حال کې یې لوط ﷺ ته دا پېش رو هم واهه چې ته په سرای کې اوسه سبا به یې موږ او ته سره ګورو چې موږ په تا څه کوو او خپل مکافات سبا له تا څخه اخلو.

**فائده**: په صحيح حديث کې راغلي دي "قال رسول الله ﷺ رحم الله اخي لوط فقد ياوى الى ركن شديد يعني نصر الله ومعونته" ابن شيخ وايي وايي چې د حديث په دې عبارت کې لقد رحم الله آه اشاره ودې ته ده چې دا قول دده اویاوی

الى ركن شديد د نبوت د منصب سره نه ښايد له ولي چي ددې عبارت څخه کلي نا اميدي دده ښکارېږي د ناصره څخه چي دده سره دي کومک وکړي. او سره ددې نصرت او معونت د خداى ﷻ ركن شديد ؤ دده لپاره. اليس الله بكاف عبده.

**فائده:** ابن عباس رضي الله عنهما وايي "مابعث الله نبياً بعد لوط الا في عز قومه كما كان رسول الله ﷺ يحميه قبيلته بني هاشم خصوصاً عمه ابو طالب چي هغه: قوم يو برجسته مشر ؤ او د عليه الصلوة والسلام په كلكه حامي ؤ او عليه الصلوة والسلام چي هجرت ته مجبور سو وروسته تر وفات د ابو طالب مجبور سو.

**فائده:** لوط عليه السلام وملكو ته وويل چي زمانه د هلاک ددې گمراهانو کله ده؟ ملکو ورته وويل چي صبحدم ده. لوط عليه السلام ورته وويل اريد أسرع من ذالک زما خو ښه داده چي دستي يې هلاک کړئ ملکو ورته وويل "أليسَ الصُّبحُ بقَريب"

فَأَسْرِ بِأَهْلِكَ

ته بوزه يا لوط خپل اهل يعني عيال.

**فائده:** د حرمينو شريفينو قاريان "فاسر" په وصل سره د الف وايي هر ځاى چي دا لفظ واقع سي د باب د مجرد يعني سرى يسري، نو كلمه د "با" لپاره د تعديت ده. ولي چي مجرد لازمي دى. او نور قاريان ټوله "فاسر" په قطع د الف وايي له باب څخه د افعال يعني اسرى يسري كما في المصاحف المطبوعة. نو پر دې تقدير با زائده ده لان باب الافعال متعدي بنفسه ومعناه السير بالليل.

بِقِطْعٍ مِّنَ الَّيْلِ وَلَا يَلْتَفِتْ مِنكُمْ أَحَدٌ

ابن عباس رضي الله عنهما يې تفسير كوي بطائفة من الليل. او ضحاک رحمه الله وايي بقية من الليل. او قتاده رحمه الله بعد ما مضى اوله. درويش وايي والمآل واحد. او تر شا كېږي دي نه يو له تاسي څخه په تگ كي چي ستاسي څخه تر شا پاته سي او بعض مفسرين وايي چي تر شا دي نه گوري فالامر بالاسرا متوجه الى لوط والنهي عن الانصراف على التفسير الاول او يا نظر الى الورا متوجه الى من تبعه.

# إِلَّا امْرَأَتَكَ

مگر نه ستا ماینه چي کافره وه. تحقيق الاستثنا:

**پوه سه**: چي بعض قرا امرئتک په رفع سره وايي او بدل يې بولي د احد د لفظ څخه بغوي وايي چي معنی د آيت پر دې تقدير داده لايلتفت احد الا امرئتک نو لوط دا هم وسره بيولې وه او تولـه ملگري يې په دې امر کړي وه چي تر شا به نه گورئ لهول العذاب الواقع على البقية في القرية. نو امرئة لوط چي دربې د عذاب واورېدی تر شا يې وکتله او داسي يې وويل واقوماه فادركها حجر فقتلها او اکثره قرا يې په نصب د امرئته کما في المصاحب المطبوعة وايي، بغوي و روح البيان وايي چي دا استثنا له اسرا څخه ده: نو معنی د آيت داده فاسر باهلک الا امرئتک فلاتسربها. ولي چي د دې محبت له قوم سره دی. نو د قوم سره يې پرېږده چي ددوی سره يو ځای هلاکه سي. حاصل الكلام دادی چي مبنی د قرائت د رفع او نصب پر دې ده چي د دې امرئة لوط په ماينه کي دوه روايته دي يو دا چي په قوم کي يې پرېږده مه يې درسره بيايه. او بل دا چي درسره وه يې باسه چي تر شا وگوري نو به هلاکه سي قاله صاحب المدارک..... بيت:

بابدان يار شد همسر لوط ........... خانه نبوتش گم شد

**درويش وايي**: چي روح البيان نور هيڅ نقض او ابرام نه دی راوړی مگر مظهري يو سوال وارد کړی دی او دفع يې په قول د بيضاوي کړې ده. او صاحب د روح المعاني ډېر طويل بحث کړی دی چي دا سوالونه او جوابونه تر فهم د متعلمانو د تفسير ايوبي لوړ دي نو ځکه ما صرف نظر کړه.

# إِنَّهُ مُصِيبُهَا مَا أَصَابَهُمْ

په تحقيق دې ته يعني امرئة لوط ته رسېږي هغه چي قوم ته دي ورسېږي من العذاب يعني امت دعوت ته د لوط.

**فائده**: انه مصيبها آه علت دی د استثنا د امرئة لوط پر تقدير د نصب او پر تقدير د بدليت له احد څخه که مرفوع سي فتأمل فيه هداک الله عزوجل.

إِنَّ مَوْعِدَهُمُ الصُّبْحُ ۚ أَلَيْسَ الصُّبْحُ بِقَرِيبٍ ﴿٨١﴾

په تحقيق وخت د نزول د عذاب پر دوی وخت د سپېدو دی.

**یوه سه**: چي دا سبب دی د وتلو د لوط او د اهل دده په شپه کي. لوط ﷺ ملکو ته وویل چي زه تر سپېدو دمخه نزول د عذاب پر دوی غواړم. ملکو ورته وویل آیا نه دي سپېدې نژدې بلکې نژدې دي.

فَلَمَّا جَاءَ أَمْرُنَا جَعَلْنَا عَالِيَهَا سَافِلَهَا

پس هغه چي راغلی امر زموږ یعني عذاب زموږ او یا امر په عذاب ورکولو ملکو ته موږ وګرځول لوړه حصه د قری لوط کښته یعني مخکه مو چپه پر راواړول.

**سوال**: ددې کار کونکي خو ملکي وې، نو حق د عبارت داسي نه ؤ فجعلوا عليها سافلها؟

**ځواب**: هو! لکن خدای پاک نسبت وځان ته وکړی لانه تعالى هو السبب الآمر بذالک القلب تعظيماً وتهويلاً لشان ذالک. بغوي رحمه الله وايي چي جبرئيل ﷺ خپل وزر تر ټولو قری لوط لاندي کړی چي په ځای کي د قرآن تعبير په مؤتفکات سره ځني سوی دی چي هغه ټولي پينځه قريې وې اعظم يې سدوم وه چي په دې قريو کي پينځه لکه انسانان وه. او دا ټولي قريې يې پورته کړې حتى چي اسمان والا ملکو اذانونه د چرګانو او د سپو غپا ددوی واورېده نه يو بيده په دوی کي راويښ سو او نه يو لوښی چي اوبه وغيره پکښې وې چپه سو، وروسته يې مخکه چپه کړه وهذا رواية ابن جرير وابن المنذر وابن ابي حاتم رحمهم الله عن سعيد بن جبير رضي الله عنه.

وَأَمْطَرْنَا عَلَيْهَا حِجَارَةً مِّن سِجِّيلٍ مَّنضُودٍ ﴿٨٢﴾

او وروسته تر قلب موږ ورولې پر قری لوط ډبري چي د سجيل په نامه يادېږي. په تفسير زاهدي کي وايي چي لويه ډبره يې لکه خوم او کوچنۍ ډبره يې لکه منګی دومره وه، تاريخ وايي چي دغه ډبري پر هغو کسانو هم وه اورېدلي چي د قری لوط څخه خارج د تجارت وغيره لپاره تللي وه حتى چي يو سړی د ډبري له

ببرې په حرم مکي نتوتې ډېره څلوېښت ورځې په هوا ولاړه وه حتی چې دې له حرمه راووتی پر راشوه سوه.

**پوښتنه:** وروسته تر قلب د مځکي د ډبرو د باران څه فائده لانهم ماتوا بقلب الارض؟

**ځواب:** یوه فائده خو یې داده چې ددغو ډبرو په ذریعه دباندې تر قرې لوط خلگ د قوم لوط مړه کړي کمامر عنقریب، او بل ځواب اظهار د شدید غضب الهي دی پر دوی لکه پر قوم د صالح علیه السلام وروسته په صیحه د جبرئیل تول مړه سوه وروسته یې زلزله پر مسلطه کړه.

**فائده:** سجیل معرب دی د سنگ گله څخه یعني هغه ډبرې چې له ختو څخه جوړې وي او په اور پخې سوي وي. او قتاده او عکرمه رضي الله عنهما وایي چې سجیل ختو ته وایي یعنې د ختو مرغټانې، استدلالاً بقوله تعالی في موضع آخر لنرسل علیهم حجارةً من طین. او ضحاک رحمه الله وایي چې پخې خښتې وې وهذا یناسب ماقیل کمامر انه معرب سنگ گل "منضود" ابن عباس رضي الله عنهما متتابع یعني پرله پسې صیغه د اسم مفعول ده. روح البیان وایي کقطار الامطار لکه پرله پسې څاڅکي د باران. او پاني پتي او روح البیان په یوه خوله وایي والنضد هو وضع الشئ بعضه فوق بعض.

مُسَوَّمَةً عِندَ رَبِّكَ ۖ وَمَا هِيَ مِنَ الظَّالِمِينَ بِبَعِيدٍ ﴿٨٣﴾

"مسومة" صفت دی د حجارة یعني علامه داره چې د دنیا له ډبرو څخه جلا وې. قتاده او عکرمه رضي الله عنهما وایي چې پر هره ډبره سره خطونه وه لکه تپونه د انسانانو. او حسن بصري او سدي رحمهما الله وایي چې پر هره ډبره لکه مهر داسي شی و چي په هغه مهر کي به نوم نوشته و د هغه سړي چې په دې ډبره به ویشتل کېدی "عندربک" متعلق دی په مسومة پوري په دې وصف کي اشاره ودې ته ده چې دا تسویم د هرې ډبرې په قدرت د خدای جل جلاله و والله علی کل شئ قدیر فلا استبعاد في ذالک التسویم "وما هي من الظالمین" نه دي دغه ډبرې له ظالمانو څخه والمراد بالظالمین مشرکی مکة. او بغوي له قتاده او عکرمه رحمهما الله څخه روایت کړی دی من ظالمی هذه الامة حیث کانوا ومن

کانوا "ببعید" لېږي، ولې دا ظالمان په سبب د ظلم او شرک ددوی مستحق د ورته باران د ډبرو دي.

**درويش وايي:** چې په درمنثور کې وايي اخرج ابن ابي حاتم وابو الشيخ عن الربيع په تفسير کې ددې آيت چې هر ظالم چې مونږ اورېدلي دي خدای پاک د هغه لپاره يوه ډبره تاکلې ده چې انتظار ددې کېږي چې کله به پر نازله سي.

**يوه سه:** چې "تذکير" د بعيد په تأويل د حجر دی فافهم.

**درويش وايي:** چې ډېر په زړه پوري تفسير دادی چې ضمير د هي راجع وه قری لوط ته وي، او له ظالمين څخه مراد اهل مکه دي، والمعنى نه دی قری د لوط چې سرنگون سوې ده له مشرکانو څخه د مکې لېرې بلکې دوی په اسفاور کې وشام ته پر دغه محکه تېرېږي يعني بايد عبرت واخلي او شرک پرېږدي..... بيت:

پند گير از مصائب ديگران .......... تا نگيرند ديگران ز تو پند

**سوال:** دا قريې خو عاليها سافلها سوې، نو دوی کفارو ته د مکې يې څه درک معلومېږي چې دوی پند او عبرت ځني اخلي؟

**ځواب:** د دغو قری وو خرابه امارات ښکاره معلومېږي چې هوري توري اوبه ولاړي دي والله اعلم.

**درويش وايي:** چې په حديث صحيح نبوي کې راغلي دي چې عليه الصلوة والسلام د صحابه کرامو ﷺ سره په مسجد نبوي کې ناست ؤ چې لوی درب يې واورېدی يعني لکه يو لوی دېوال چې ونړېږي صحابه کرام ﷺ وارخطا سوه او وېرېدل عليه الصلوة والسلام ورته وويل دا درب د څه شي ؤ الله ورسوله اعلم، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چې دا يوه ډبره وه چې د جهنم له غاړي څخه اوويا کاله کېدله چې راروانه وه اوس يې بېخ ته ورسېدل.

**يوه سه:** چې عليه الصلوة والسلام دوی ته دا خبره د کنايې په توگه وکړه، دوی له دغو خبرو څخه نه وه فارغه سوي چې د منافق په کور کې بغاري چې فلانی مړ سو، او عمر د هغه منافق اوويا کاله ؤ، نو دا منافق گويا اوويا کاله د دوزخ له غاړي څخه روان ؤ چې مړ سو درب يې سو بېخ ته يې ورسېدی.

وَإِلَىٰ مَدْيَنَ أَخَاهُمْ شُعَيْبًا

او قوم مدين ته مو واستاوه ورور ددوى يعني ددوى د قبيلې او قوم سړى يعني شعيب عليه السلام.

**پوه سه:** چي مدين د ابراهيم عليه السلام زوى ؤ او وروسته نوم د هغې قبيلې وګرځېدى چي مدين يې جد اعلى ؤ او داغه رنګه نوم د يو ښار هم دى مدين بن ابراهيم جوړ كړى ؤ، فعلى الاول معنى الآية وارسلنا الى قبيلة مدين. وعلى الثاني وارسلنا الى اهل مدينة مدين "شعيباً" عطف دى د اخاهم وهو ابن ميكيل بن يشجر بن مدين بن ابراهيم عليه السلام.

قَالَ يَا قَوْمِ اعْبُدُوا اللَّهَ مَا لَكُمْ مِنْ إِلَٰهٍ غَيْرُهُ

شعيب (عليه السلام) دوى ته وويل اې قومه زما توحيد د خداى جل جلاله وكړئ يعني لا اله الا الله ولي چي قوم دده مشركان وه يعني شرک او بت پرستي پر بېردئ. ولي چي تاسي لره نسته معبود بالحق غير له خداى جل جلاله څخه.

**درويش وايي:** چي دا معامله مع الحق وه.

وَلَا تَنْقُصُوا الْمِكْيَالَ وَالْمِيزَانَ

او تاسي كم مه وركوئ وه خلګو ته په پېمانه يا كيلي شيانو كي او ترازو په وزني شيانو كي چي دې ته په عربي كي بخس وايي كما جا في موضع آخر من القرآن الكريم.

**درويش وايي:** چي ددوى معامله وه د خلګو سره بالظلم چي شى به يې پر چا خرڅاوه او يا به يې پور وركاوه په كوچنى پېمانه به يې وركاوه يا به يې په كوچني كاني ور تاله. بعض مفسرين وايي چي د هر يوه د شعيب عليه السلام له قومه څخه په كور كي به يې دوې پېمانې وې يوه لويه او بله كوچنى. او بعض د ترازو غټي ډبري او بعض كوچنى ډبري چي په عربي يې سنجات بولي. نو چي دوى به له يو چا څخه شى رانيوى هغه لويه پېمانه سنجات به يې وروه ايستل، او چي پر چا به يې خرڅول هغه كوچنى پېمانه يا سنجات به يې ور ته راوړه.

**درویش وایي:** چي ورته فعل ته تطفيف هم وايي كما جا في موضع آخر من القرآن ويل للمطففين الآية.

## إِنِّيٓ أَرَىٰكُم بِخَيۡرٍ

په تحقيق زه تاسي وينم په خير كي يعني په ثروت او غنا كي چي تطفيف ته ضرورت نه لري او نجس ته د حقوقو د خلگو بلكې تاسي بايد په شكرانه كي د نعمتو د خداى ﷻ خلگو ته تر حق بالا شيان وركولاى تفضلاً واحساناً.

## وَإِنِّيٓ أَخَافُ عَلَيۡكُمۡ عَذَابَ يَوۡمٖ مُّحِيطٖ ﴿٨٤﴾

او زه بېرېږم پر تاسي باندي له عذاب څخه د يوې ورځي چي د هغې ورځي عذاب به پر تاسي ټولو احاطه وكړي او ټول به هلاک كړي، بعض مفسران وايي چي مراد د عذاب د ورځي د قيامت، او بعض مفسران وايي چي مراد عذاب د ورځي د استيصال.
**فائده:** محيط يې صفت د "يوم" وگرځاوه او سره ددې محيط پر دوى خو عذاب دى لاشتمال اليوم على العذاب المحيط بهم.

## وَيَٰقَوۡمِ أَوۡفُواْ ٱلۡمِكۡيَالَ وَٱلۡمِيزَانَ بِٱلۡقِسۡطِ

او اې قومه زما پوره وركوئ پيمانه او ترازو په عدالت سره يعني د چا حق مه يكښي خورئ.
**پوښتنه:** خداى پاک د وړاندي وويل "ولا تنقصوا المكيال والميزان" نو دلته د اوفوا الكيل والميزان فائده څه ده؟
**ځواب:** مفسرين رحمهم الله وايي چي امر په شي سره لكه دلته اوفوا الكيل آه وروسته تر نهي له ضد څخه د هغه شي چي لا تنقصوا المكيال آه او لپاره د مبالغې دى، او لپاره د تنبه پر دې دى چي يوازي ځان ساتل له تطفيف څخه عمداً كافي نه دى، بلكې پر خلگو لازمه ده سعي په ايفا كي د كيل او ميزان ولو بادنى زيادة في المكيل والموزون، هم ددغه احتياط له كبله امام اعظم ابو حنيفة رحمه الله وايي چي كه چا مكيل رانيوى يا موزون په پيمانه يا ترازو سره لم يجزي للمشتري ان يبيعه حتى يعمد الكيل والوزن فيه. لما في الحديث نهى رسول الله ﷺ حتى يجرى فيه الصاعان صاع البائع وصاع المشتري رواه ابن ماجه واسحاق بن ابى شيبة من حديث جابر رضي الله عنه.

**سوال**: ددې حديث دوه سنده دي دواړه سنده اهل الجرح والتعديل ضعيف گڼلي دي؟

**ځواب**: ابن الهمام رحمه الله د هدايې په شرح کي وايي چي دا حديث حجت دی او استدلال په صحيح دی لکثرة طرقه، او نورو امامانو زموږ د احنافو رحمهم الله د مذهب سره موافق قول په کړی دی. يعني امام مالک والشافعي واحمد رحمهم الله او په بل حديث کي راغلي دي چي احمد. ابو داؤد، ترمذي، نسائي، ابن ماجه او حاکم رحمهم الله له حديث څخه د سويد بن قيس رضي الله عنه قال رسول الله ﷺ زن وارجح فانا معشر الانبياء هکذا نزن.

**وَلَا تَبْخَسُوا النَّاسَ أَشْيَاءَهُمْ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْأَرْضِ مُفْسِدِينَ**

او تاسي کم مه ورکوئ شيان ددوی که مکيل وي او که موزون او که عدد وي، نو دا تعميم بعد التخصيص دی فافهم، او تاسي عثی مه کوئ په ځمکه کي، والعثی تنقيص الحقوق وغيره من انواع الفساد فيشمل التطفيف في الکيل والوزن والعدد والسرقة والنهب وغيرها من انواع الفساد.

**پوښتنه**: د مفسدين د قيد څه فائده ده او عثی خامخا فساد دی؟

**ځواب**: مفسدين حال مؤکده دی د عامل خپل لان عثی په معنی د افسد دی.

**درويش وايي**: چي ددې سوال يو دقيق ځواب سته چي بعض مفسرينو راوړی دی هغه دا چي عثی مطلق افساد دی که صلاح پکښې وي او که نه. نو فعل د خضر عليه السلام چي يوه کښتی يې عيبي کړه چي د اوبو له خوا يې يوه تختې ځني وکښل او هلک چي نابالغه وژمر يې کړی هم شامل ده. او له مفسدين څخه مراد هغه افساد دی چي هيڅ صلاح يې مفضي نه وي، نو فعل د خضر عليه السلام خارج سو کما في فعليه من الصلاح المذکور في قصة مرافقة موسى مع الخضر عليهما السلام المذکورة في القرآن الکريم في مقامه فتأمل غاية التأمل، حتى تفهم هذا الجواب الدقيق ومن الله التوفيق.

**بَقِيَّتُ اللَّهِ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ**

ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي د آيت معنا داده چي هغه باقي مانده مال چي

تاسي کيل او وزن پوره ورکړی بهتر دی تر تطفيف په کيل او وزن، ولي هغه باقي مانده مال چي تاسي ته پاته سي تر پوره کولو د کيل او وزن حلال محض دی. او چي تطفيف وکړي هغه حرام دی ولا يستوي الحلال البحت مع الممزوج بالحرام، که تاسي ياست ايمان والا.

**يوه سه:** چي جزاً د "ان" محذوفه ده يعني فافعلوا ماتؤمرون به من الله وهو ايفا الکيل والوزن وانتهوا عما نهاکم الله منه من التطفيف والبخس. په شرح الشرعة کي وايي چي مسلمان بايد په حيلو او تلبيس او تطفيف سره مال جمع نه کړي فانه يذهب برکته بلکي شايد چي دغه مال چي ته يې حبةً حبةً سره جمع کوې جمعاً جمعاً به يې خدای پاک درڅخه واخلي او گناه به يې پر تا ذره ذره پاته سي.

**حکايت:** يو سړی ؤ چي د خپلي غوا شيدې به يې ځرڅولې او نيمی به يې اوبه وراچولې، يو وخت تېز باران وسو سېل راغلی د هغه غوا يې ورمړه کړه. نو د هغه سړي يوې کوچنۍ لور وخپل پلار ته داسي يوه د وعظه ډکه خبره وکړه "يا ابت قد جمعت المياه التي تجعلها في اللبن وقتلت البقرة.

وَمَآ أَنَا۠ عَلَيۡكُم بِحَفِيظٖ ۝

زه نه يم ساتونکی ستاسي له بدو کارو څخه. او يا معنا داده چي زه نه يم ساتونکی ستاسي د عملو چي ثواب يا عذاب يې درکړم وانما انا ناصح مبلغ اليکم بالامر والنهي، شيرازي قدس سره وايي:

من آنچه شرط بلاغست باتو ميگويم ...... تو خواه از سخنم پند وخواه ملال

قَالُواْ يَٰشُعَيۡبُ أَصَلَوٰتُكَ تَأۡمُرُكَ أَن نَّتۡرُكَ مَا يَعۡبُدُ ءَابَآؤُنَآ

ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي شعيب عليه السلام ډېر لمونځونه کول. نو ځکه قوم يې ورته وويل اي شعيب آيا ستا ډېر لمونځونه تا امر کوي چي موږ به پرېږدو يعني عبادت د هغو شيانو چي بتان دي چي د هغو عبادت زموږ پلرو او نيکه گانو کاوه.

**پوښتنه:** دوی څرنگه نسبت د امر وه لمونځو ته د شعيب عليه السلام وکړی او سره ددې چي هر عاقل په دې پوهېږي چي لمونځونه خو آمر نه سي کېدای بلکي آمر خو شعيب عليه السلام و؟

**ځواب**: هو! لکن دا خبره دوی استهزاءً ورته وکړه یعني نور خو ته نه نبي یې او نه د خدای مرسل یې او په تاکي بېله دېرو لمونځو بل خوی نشته. نو دا خبره ددوی هم استهزا بالشعیب ﷺ ده او هم استهزا دده په لمونځو ده.

**پوه سه**: چي انبیا ﷺ دوه قسمه خدای پاک را استولي دي. بعضو ته امر د جهاد خدای پاک ورکړی دی لکه داؤد، سلیمان او موسی ﷺ او هم علیه الصلوة والسلام بعد الهجرة مامور بالجهاد ؤ. او بعض امر د جهاد نه لري صرف او صرف خلګ وه توحید ته په موعظت سره رابولي. شعیب ﷺ د قسم ثاني څخه ؤ.

اَوْ اَنْ نَّفْعَلَ فِیْۤ اَمْوَالِنَا مَا نَشٰٓؤُا اِنَّكَ لَاَنْتَ الْحَلِیْمُ الرَّشِیْدُ

عطف دی پر موصول یعني کلمه ما، والتقدیر او نترک ان نفعل آه یعني چي موږ په خپلو مالو کي کوو هغه څه چي زموږ خوښ وي من التطفیف.

**پوه سه**: چي دا خبره دوی په مقابل کي د هغه امر د شعیب ﷺ وکړه ولاتبخثوا الناس اشیاءهم.

**پوه سه**: چي "حلیم" (یعني بردباره) او رشید (پر هدایت) دوه وصفه جلیل دي کما لا یخفی، نو دوی یعني کافرانو ده ته دا دوه وصفه څه رنګه ثابت کړه. ابن عباس ﷺ چي مراد له "حلیم" څخه سفیه (بېعقل) او له رشید څخه غوي (یعني ګمراه) مراد دی. ولي چي عرب شی په ضد سره موصوفوي لکه سړی چي لړم وهلی وي سلیم یې بولي، نو په دې دوو صفتو استعاره تهکمیه ده. فالمراد ضد معناهما تهکماً واستهزاءً والی هذا ذهب قتاده والمبرد. او روح البیان وایي چي حلیم رشید په لغت کي د اهل مدین الاحمق السفیه ته وایي کما في ربیع الابرار.

**درویش وایي**: چي کله دا ثابته سي نو استعاره او مجاز نشته. او د روح المعاني او مظهري دا احتمال هم راوړی دی چي ته حلیم رشید یې ستا په زعم، او بعض مفسرین ﷺ وایي چي مراد ددوی دا ؤ چي ته خو حلیم رشید وې زموږ په زعم، نو تا ولي داسي غلطه لار اختیار کړه وهو المنع عن الشرک الذي هو مذهب اٰبائنا واجدادنا. لکه قوم د صالح ﷺ چي ده ته وویل قد کنت فینا

مرجوا، روح المعاني وايي چي اول مذهب يعني د ابن عباس رضي الله عنهما ترجيح ورکړه سوی ده بانه انسب بما قبله لانه تهکم ايضاً.

قَالَ يٰقَوْمِ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كُنْتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّيْ وَرَزَقَنِيْ مِنْهُ رِزْقًا حَسَنًا

شعيب ( عليه السلام ) ورته ووېل اې قومه زما تاسي خبر راکړئ که چېري زه وم پر بصيرت او بيان واضح له جانبه څخه د خداى جل جلاله بالوحي والنبوة او ماته رزق راکړه سوى ؤ له جانبه څخه د خداى جل جلاله يعني بې تکليفه زما لخوا په تحصيل کې د رزق "رزقاً حسناً" يعني حلالاً.

**پوه سه:** چي "منه" حال دی له "رزقاً" څخه ای کائناً منه لکن حال چي مقدم سوی دی لکون ذی الحال نکرة کما هو القانون النحوي چي ذو الحال چي نکره وي تقديم د حال پر واجب دی لانه لو اخر يشتبه بالصفة.

**پوه سه:** چي راويان وايي چي شعيب عليه السلام کثير المال و من النقود والمواشي

**فائده:** جواب ده يعني "ان کنت" محذوف دی، تقديره فهل يجوز لي ان اخون في وحيه واخالفه في امره ولهيه دا عذر د شعيب عليه السلام له خوا څخه ددې لپاره چي قوم ودە ته ويل چي دين د قوم تا تر پښو لاندی کړی.

وَمَا اُرِيْدُ اَنْ اُخَالِفَكُمْ اِلٰى مَا اَنْهٰىكُمْ عَنْهُ

او زه اراده نه لرم چي زه دي وکړم هغه کار چي تاسي څني منع کوم، دده مراد دادی که ما انهاکم عنه حق وايي او د ثواب کار وای ما به کولای لکن زه شرک نه کوم او نه بخس تطفيف په بيع کي د مکيل اود وزن کوم او تاسي هم څني منع کوم، نو په دي پوه سئ چي هغه شی چي زما پر ځان پېرزو دي پر تاسي مي عيناً هغه شی پېرزو دی، پښتانه وايي:

بنده راسه د خداى خپل سه .......... لکه پر ځان داسي پر بل سه

وهذا بعينه مضمون الحديث النبوي الصحيح.

اِنْ اُرِيْدُ اِلَّا الْاِصْلَاحَ مَا اسْتَطَعْتُ

زما نه ده اراده په منع کي ستاسي له شرک څخه او د بخس او تطفيف څخه

مگر اصلاح ستاسي يعني خلاصون ستاسي له عقائد فاسده وو څخه او له افعال قبيحه وو څخه او بيا له فساد خلاص ژوند ستاسي او له تاريکی څخه د شرک ونور ته د ايمان رابلل ستاسي، په "ما استطعت" کي که کلمه د ما مصدريه سي. نو معنی د آيت داده چي په اندازه د استطاعت خپل او که ما موصوله سي، نو بدل دی له اصلاح څخه. والمعنی ان اريد الا الذي استطعته بحذف العائد الی الموصول.

وَمَا تَوْفِيقِيٓ إِلَّا بِٱللَّهِۚ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ

التوفيق في الشرع موافقة الاسباب للمطلوب الخير يعني ما ته نه ده اسانه اصابت و حق ته او اصلاح ستاسي، مگر نه په خدای ﷻ سره ای بهدايته ونصره ومعونته وتهيئ اسباب ذالک الذي اردت، پر هغه خدای ﷻ زما تکيه ده. او خاص وخدای ﷻ ته زما رجوع ده په حوادثو کي د دنيا او په نوائبو کي د آخرت.

**يوه سه**: چي تقديم د جار او مجرور لپاره د حصر دی. يعني خاص الخاص زما پر خدای ﷻ اعتماد او تکيه ده لان الله يحب المتوکلين.

**فوائد**: ددې آيت يوه فائده داده چي کفار دي طمع نه زما ورجوع ته ددوی ودين ته کوي لکه چي کفارو به ده ته دعوت د رجوع ورکاوه وه دين ته د آباؤ يعني الشرک، او بله فائده يې داده چي زما ستاسي په تهديداتو او پېشرو باک نه کېږي. او بله فائده يې تهديد دی ودوی ته چي ستاسي رجوع وخدای ﷻ ته ده للجزا في الآخرة.

وَيَٰقَوْمِ لَا يَجْرِمَنَّكُمْ شِقَاقِيٓ أَن يُصِيبَكُم مِّثْلُ مَآ أَصَابَ قَوْمَ نُوحٍ

او اې قومه زما تاسي ته دي کسب يعني پيدا نه کړي زما بغض او عداوت يعني په سبب د دعوت زما تاسي ته وتوحيد ته. چي تاسي ته دي دروررسېږي من العذاب. په مثل د هغه عذاب چي قوم ته د نوح ورسېدی من عذاب الاستيصال بالغرق.

أَوْ قَوْمَ هُودٍ أَوْ قَوْمَ صَٰلِحٍۚ وَمَا قَوْمُ لُوطٍ مِّنكُم بِبَعِيدٍ ﴿٨٩﴾

يا قوم ته د هود من عذاب الاستيصال بالريح يعني په باد سره. او يا قوم

صالح ته ورسیدی من العذاب بالصیحة (په نعره د جبرئیل) والرجفة (او په زلزلې د ښځکې) او نه دی قوم د لوط چې عذاب شدید پر مسلط سو من قلب الارض والرمی بالحجارة لـه تاسي څخه لـېرې پـه زمانه کې فـانهم کـانوا اقـرب الاقـوام المهلکة زماناً منکم، او یا معنا داده چې قوم لوط اقرب مکاناً وتاسي ته وه ولې تاسي او دوی سره همسایه واست، او بعید چې یې مفرد راوړی او سره ددې چې دا قوم لوط خو ډېر نفر وه، نظراً الی افراد لفظ قوم وان کان جمعاً معنیً.

**پوه سه**: چې "ان یصیبکم" مفعول ثاني د "لایجرمنکم" ده

**تنبیه**: امام مظهري رحمه الله د دفع د سوال مذکور لپاره "شیئاً" مقدر کړی دی ولاحاجة الی التقدیر لما قلنا ان لفظ القوم مفرد وان کان جمعاً معنیً ومثل ذالک یجوز فیه افراد الخبر وجمعه کما تقرر في کتب النحو.

**وَاسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ ثُمَّ تُوبُوا إِلَيْهِ إِنَّ رَبِّي رَحِيمٌ وَدُودٌ ۝**

او تاسي طلب د بخښې وکړئ لـه خدای جل جلاله څخه خپل د هغه سابق کفر او عصیان خپل بالایمان والندامة علی المعاصي الصادرة منکم، بیا رجوع وخدای ته وکړئ یعني بامتثال او امره والانتهاء عن المعاصي في المستقبل. په تحقیق زما خدای عظیم الرحمة دی للمؤمنین التائبین "ودود" پر وزن د فعول دی یا په معنی د فاعل دی یعني محب للمؤمنین یا په معنی د مفعول دی ای محبوب للمؤمنین.

**درویش وایي**: چې کاشفي رحمه الله په تفسیر حسیني کې وایي قطب الابرار مولنا یعقوب چرخي رحمه الله درشرح اسماء الحسنی معنی ودود برین وجه آورده است که خدای متعال دوست دارنده نیکی بهمه کس وخلق ودوست در دلتهای خلق، یعني او نیک را دوست میدارد ونیکان اورا دوست میدارند الی اخیره.

**پوه سه**: چې خدای جل جلاله لره محبت د بندګانو سره نه وای لما هدی عباده ولما فرح بتوبة عبده المؤمن ویدل علی ذالک الحدیث الصحیح الذي رواه اصحاب الصحاح قال رسول الله ﷺ هر آئینه خدای جل جلاله ډېر خوشاله کېږي په توبه د عبد مؤمن تر هغه سړي چې دی واروي په یو دښت مهلک کې یعني د یوه ګړي ارام لپاره په وخت کې د غایت ګرمي او دده سره راحله ورسره وي چې پر

هغه راحله يعني اوښه باندي دده خواړه او اوبه وي (نو اوښه چوکه کړي زنګنونه يې نه وتړي) نو دی سر کښېږدي بيده سي، يو ګړی وروسته چي راويښ سي اوښه تللې وي يعني په طلب د مرعي پسې، نو دی يوې خوا او بلې خوا ته ځغلي په طلب د اوښي حتی چي ګرمي او تنده يې ډېره سي يعني اوښه هم نه کړي پيدا، نو دی د ځانه سره دا مشوره وکړي چي تر هغې درختي لاندي چي زه دمخه هوري بيده وم پرې به وزم تر هغو چي له تندي مرم. نو هلته چي ورسي او سر کښېږدي په درياب کي د خوب غرق سي چي دی راويښ سي، نو راحله سره له باره د طعام او شراب ورته ولاړه وي فلا الله افرح اشد فرحاً بتوبة العبد المؤمن تر دغه سړي چي زاد او راحله پيدا کړي الى اخير الحديث او کما قال ﷺ.

## قَالُوا يٰشُعَيْبُ مَا نَفْقَهُ كَثِيْرًا مِّمَّا تَقُوْلُ

جمله مستأنفه ده، وويل قوم د شيعب ﷺ ووده ته اې شعيب موږ نه پوهېږو په ډېرو ستا د خبرو.

**پوه سه**: چي دا قول ددوی يا استهانت او سپکاوی ؤ د خبرو دده لکه په عرف کي هم ورته وينا سته. يو سړی وبل ته وايي د سپکاوي په توګه زه ستا په خبرو نه پوهېږم، او که استهانت نه وای، نو شعيب ﷺ خو ددوی سره ددوی په لغت خبري کولې.

**فائده**: مراد ددوی له کثير قول څخه وعظ د وجوب التوحيد لله تعالى وترک الشرک والدليل على ذالک من جانب شعيب ﷺ وترک النجس والدليل على ذالک او يا واقعاً په دغو خبرو د شعيب ﷺ دوی د زړه له کومي نه پوهېدل لقصور عقولهم وعدم تفکرهم فيه.

**درويش وايي**: چي روح البيان ددې آيت په تفسير کي ويلي دي ای کل ماتقول آه، لکن سيد آلوسي رحمه الله په تفسير روح المعاني کي وايي ولا يصح ان يراد به الکل وان ورد في اللغة، ولي چي مما تقول يابى عنه انتهى، لان من في مما للتبعيض، او بعض مفسرينو چي ويلي دي چي شعيب ﷺ په ژبه کي بندبدی فليس بشئ لما جا في الخبر ان شيعباً کان خطيب الانبياً.

# وَإِنَّا لَنَرَىٰكَ فِينَا ضَعِيفًا

او موږ وينو تا اې شعيب په موږ کې ضعيف، يعني که موږ تا ته اراده د شر وکړو نه زموږ څخه ځان نه سې ساتلای او يا سپک يې پر موږ باندې چې هيڅ قدر نه لرې، بغوي رحمه الله وايي چې شعيب عليه السلام په ستر گو ړوند ؤ، نو مراد له ضعف څخه ددوی ضعف البصر دی.

**مسئله**: معتزله وايي چې نبي نه سي اعمى (ړوند) کېدلای قياس پر قضاً کوي چې قاضي به ړوند نه وي، او داغه رنگه يې پر شاهد قياسوي چې شاهد به هم ړوند نه وي، لکن دا قول ددوی غلط دی، ولې چې قضاً او شهادت په ستر گو پوري اړه لري بخلاف النبوة لان تبليغ الرسالة لايتعلق ولايتوقف على البصر کما لايخفى وذهاب بصر يعقوب عليه السلام ثبت بنص القرآن، کريمه: وابيضت عيناه نهو کظيم، کريمه: فارتد بصيراً.

**فائده**: سيد محمود الآلوسي رحمه الله په روح المعاني کې وايي چې تفسير د ضعيف په ړانده سره ضعيف دی، ولې چې د فينا قيد نه صحيح کېږي، ولې سړی چې ړوند وي نو خو هر چېرې ړوند وي، او د يعقوب عليه السلام ړوندوالی خو عارضي وي يعني د ډېرې ژړا پر فراق د يوسف عليه السلام امام همام فخر الدين الرازي په تفسير کبير کې وايي چې بعض اصحابو زموږ يعني اهل السنة والجماعة ړندوالی پر انبياً روا بللی دی، لکن د شعيب عليه السلام په باره کې دا حمل صحيح نه دی لمامر ان التقيد بالظرف يعني فينا نه صحيح کېږي دی وايي ان المصحح عند اهل السنة ان الانبياً عليهم السلام ليس فيهم اعمى بالعمى الاصلي اصلاً، روح المعاني وايي والاخبار المروية في باب کون شعيب اعمى لم نقف تصحيحها ممن يعول عليه سوى الحاکم لکن تصحيح د حاکم لا اعتماد عليها انتهى.

**درويش وايي**: چې آلوسي رحمه الله نوري ډېرې اوږدې خبرې کړې دي، فائده: په تحقيق د آلوسي رحمه الله د بغوي رحمه الله خبره رد سوه په باره د شعيب عليه السلام چې په ستر گو ړوند ؤ، درويش چې هغه مسئله راوړې له قول څخه د بغوي رحمه الله مأخوذ وه والله اعلم حاصل دا چې قول د صاحب د روح المعاني او امام رازي رحمه الله پر ذروة د تحقيق دی او اليق بالقبول دی.

وَلَوْلَا رَهْطُكَ لَرَجَمْنٰكَ ۖ وَمَآ اَنْتَ عَلَيْنَا بِعَزِيْزٍ ﴿٩١﴾

که ستا قوم نه وای مونږ به ته وژلی وای په ډبرو ویشتلو سره، بعض مفسرین وايي چي مراد حقيقت رجم بالحجارة دی چي معنی یې سنګسار ده. او بعض مفسرین وايي چي رمی بالحجارة کنایه له سخت وژلو څخه ده وان لم یکن هناک رمی بالحجارة. ووجه هذه الکنایة چي قابیل بن آدم چي خپل ورور په ډبرو مړ کړی، نو له دې سببه هر قتل شدید ته رمی بالحجارة وايي. او ته نه یې پر مونږ عزتمند چي ستا عزت به تا له مونږ څخه خلاص کړي بلکې ستا رهط پر مونږ عزت لري ولې زمونږ پر دین دي

**بوه سه:** چي بغوي رحمه الله وايي چي شعیب علیه السلام ډېر قوي قوم درلودی. مطلب دادی چي که مونږ ستا له قوم څخه نه بېرېدلای مونږ به ته وژلی وای آه.

**درویش وايي:** چي دا خبره له بېرې صحیح نه ده. ولې چي رهط له درو کسانو څخه تر لسو پورې بعض وايي له درې څخه تر اوو پورې. نو مخالفین او منکران د شعیب علیه السلام چي تعداد یې وزرو کسانو ته رسېدی څرنګه له لسو یا له اووه کسانو څخه بېرېدل بلکې صحیح هغه ده چي روح البیان او بیضاوي وايي چي معنا د آیت داده چي که نه وای احترام او عزت او مراعات ستا د قوم چي زمونږ سره پر کفر متفق دي لرجمناک آه. یعني که تا مونږ مړ کړو نو باید د هغو خواه بده نه سي.

**درویش وايي:** چي روح البیان او مظهري وايي چي دا تهدید د قوم او پېش رو د قوم د شعیب ولو رهطک آه د مغلوب سړي او د بېعقل سړي کار دی چي په دلائلو کي مغلوب سي لکه قوم شعیب باره په بکنځلو او پېش رو شروع کړی.

قَالَ يٰقَوْمِ اَرَهْطِيْٓ اَعَزُّ عَلَيْكُمْ مِّنَ اللّٰهِ ۖ وَاتَّخَذْتُمُوْهُ وَرَآءَكُمْ ظِهْرِيًّا ۖ

شعیب په استفهام د تعجب قوم ته وویل آیا زما قوم پر تاسي عزت ډېر لري تر خدای جل جلاله یعني زه د خدای رسول یم د هغه خدای مراعات نه کوئ په منع کي د قتل زما بلکې مراعات د قوم کوئ. او تاسي ګرځولی دی خدای پاک د شا وخوا ته منسوب الی الظهر.

**پوه سه**: چي "ظهري" منسوب دی الی الظهر چې په معنا د شا دی که څه هم لفظ ظهر مفتوح دی لکن کسره ورکول له تغیرات څخه د نسبت دی.

**درویش وایي**: چي لفظ د ظهري په کلام د عربو کنایه د بې پروایي ده په یو شي یقال فلان جعل امري ظهرياً فلاني وګرځاوه زما امر تر شا غور ځولی یعني التفات یې نه ورته وکړی وایضاً یقال السلطان جعل الرعیة وراء ظهرياً باچا وګرځول رعیت تر شا یعني پروا نه په کوي که څه هم بدحاله وي. ویقال ایضاً ان اولادي جعلني ظهريا. زما اولاد زه تر شا وغورځولم یعني بې باکي راسره کوي احترام د پلار ګلوی مي نه کوي. فالمعنى ء تركتم قتلي لاجل رهطي او په دې مو باک ونه کړی چې زه خو رسول د خدای یم. نو ګویا تاسي خدای وګرځاوه منبوذ وراء الظهر منسیاً باشراککم به واهانة رسوله. وهذا الصنیع لاینبغي لمن له ادنى فهم وعقل. والاستفهام في قوله قال ارهطي اعز الآیة لپاره د توبیخ او د انکار او د رد او تکذیب والكل محتمل.

إِنَّ رَبِّي بِمَا تَعْمَلُونَ مُحِيطٌ ﴿٩٢﴾

په تحقیق زما خدای ﷻ ستاسي پر عملو باندي محیط دی علماً او پر جزا د هغو محیط دی قدرة.

وَيَا قَوْمِ اعْمَلُوا عَلَىٰ مَكَانَتِكُمْ إِنِّي عَامِلٌ ۖ سَوْفَ تَعْلَمُونَ مَن يَأْتِيهِ عَذَابٌ يُخْزِيهِ

او وویل شعیب (ؑ) وقوم ته چي تاسي عمل کوئ پر خپل قدرت چي عداوت زما دی او قصد د اضرار زما دی، زه عامل یم پر خپل قدرت چي وعظ او تبلیغ د توحید د عبادت د خدای ﷻ دی. ژر دی چي تاسي به وپوهېږئ چي چا ته عذاب چي رسوا یې کړي یعني زه به هم که تاسي چي په هغه عذاب به شرمنده او رسوا سي او دا به هم معلومه سي چي درواغجن په ما او تاسي کي څوک دی.

**فائده**: که کلمه "من" استفهامیه وي، نو هغه د تعلمون د عمل مانع ده لان ماقبل الاستفهام لایعمل فیما بعده لفوات صدارة الاستفهام. او دا هم احتمال لري چي کلمه د من موصوله وي نو د تعلمون مفعول دی. فالمعنى سوف تعلمون الشقي الذي یاتیه العذاب الموجب.

وَمَنْ هُوَ كَاذِبٌ

او څوک دی دروغجن.

**پوه سه:** چي دا عبارت "ومن هو كاذب" معطوف دی پر من يأتيه او د هغه قسيم او مقابل نه دی، ولي چي قوم خو شعيب ته پيش رو د عذاب واهه او دی يې كاذب باله، نو ده ورته وويل چي سوف تعلمون من المعذب والكاذب انا او انتم.

وَارْتَقِبُوْٓا اِنِّیْ مَعَكُمْ رَقِیْبٌ ﴿٩٣﴾

او تاسي انتظار وكړئ زما وعيد ته چي ما ستاسي سره كاوه او زه ستاسي سره په انتظار د راتلو د عذاب پر تاسي باندي.

وَلَمَّا جَآءَ اَمْرُنَا نَجَّیْنَا شُعَیْبًا وَّالَّذِیْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ بِرَحْمَةٍ مِّنَّا

چي راغلی امر زموږ چي موږ مقدر كړی د هلاک د قوم شعيب لپاره فالامر واحد الامور لا الاوامر، موږ نجات وركړی وشعيب ته او هغه كسانو ته چي ايمان يې راوړی ؤ د شعيب سره "برحمة منا" ای برحمة كائنة في الازل په حق كي ددوی.

**پوه سه:** چي د رحمةٍ معنا داده چي دا نجات ددوی صرف رحمت او فضل ؤ زموږ لا بسبب من اعمالهم كما هو مذهب اهل السنة والجماعة.

**درويش وايي:** چي مظهري رحمه الله ويلي دي چي په عذاب د قوم شعيب ولما جآ بالواو ووايه لكه په قصه كي د عاد، ولي دمخه په دې دوو قصو كي داسي وعيد نه دی ذكر سوی چي سبب د مابعد دي وګرځي او دخول د فا دې ځای سي بخلاف قصتي صالح ولوط چي هوري نجات وروسته تر وعيد ذكر سوی دی وهو قوله تعالى في قصة صالح ذالک وعد غير مكذوب في قصة لوط ان موعدهم الصبح ولذالک جآ بفا السببية انتهى، روح المعاني دا خبره رد كړي ده او وايي چي په قصه كي د شعيب عليه السلام خو هم وعيد راغلی دی وهو قوله تعالى فارتقبوا الى معكم رقيب كه څه هم په لفظ د وعد نه ده راغلي انتهى.

وَاَخَذَتِ الَّذِیْنَ ظَلَمُوا الصَّیْحَةُ فَاَصْبَحُوْا فِیْ دِیَارِهِمْ جٰثِمِیْنَ ﴿٩٤﴾

او وه يې نيول هغه كسان چي ظالمان وه يعني قوم شعيب نارې د جبرئيل،

نخرجت ارواحهم، او بعض مفسرين رحمهم الله وايي چي د اسمان له خوا چغه وسوه او دوی يې هلاک کړه. نو دوی وګرځېدل په خپلو کورو کي مړه ځای پر ځای.

**كَأَن لَّمْ يَغْنَوْا فِيهَا ۗ أَلَا بُعْدًا لِّمَدْيَنَ**

ګويا دوی هيڅ وخت اقامت نه وٌ کړی په دغو کورو کي. آګاه او سه چي هلاک او لعنت دی اهل مدين لره بحذف المضاف وهو لفظ الاهل.

**پوښتنه:** چي په سورة الاعراف کي راغلي دي د قوم شعيب د عذاب په باره کي فاخذتهم الرجفة، اى الزلزلة فكيف الجمع؟

**ځواب:** تر صيحة جبرئيل وروسته مځکه په زلزله سوه.

**فائده:** بعداً وسحقاً ولعنةً وخيبةً وامثالها مصادر دي چي په ځای کي د افعالو قائم دی، او افعال يې ددوی سره نه مستعملېږي. فمعنى د بعداً بعدوا اى هلكوا ولعنوا بعداً. وقس عليه المصادر الباقية المذكورة.

**كَمَا بَعِدَتْ ثَمُودُ ﴿٩٥﴾**

لکه چي لېري وه له رحمت څخه د خدای ﷻ او يا كما هلكت او كما لعنت قبيلة د ثمود. نو تانيث د فعل مسند په تأويل د قبيلې دی. وجه الشبه بينهما ان عذاب هذين القومين من نوع واحد وهو صيحة جبرئيل عليه السلام. لكن صيحة د ثمود له کښتني خوا څخه وه او صيحه د مدين له لوړي خوا څخه وه.

**وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا مُوسَىٰ بِآيَاتِنَا وَسُلْطَانٍ مُّبِينٍ ﴿٩٦﴾**

اى بالله لقد ارسلنا. نو لام موطئه د قسم محذوف دی، موږ استولی موسی سره د معجزاتو باهره وٌ لکه عصا او يد بيضا وغيرهما من الآيات التسع. او په علبه ظاهره سره چي موسی سره ددې چي يو سړی وٌ غالب سو پر فرعون وجنوده مع ان فرعون كان حريصاً على قتله فلم يقدر او بعض مفسران وايي چي مراد له سلطان مبين څخه لکړه د موسی عليه السلام ده.

**سوال:** لکړه خو په آياتنا کي داخل وه نو بيا يې جلا ولي راوړه؟

**ځواب:** هو! داخله خو وه لکن افراد يې په سبب د تنبيه پر عظمت د معجزې د لکړي پر نورو معجزو. او روح البيان وايي چي مراد له آياتنا او د

سلطان مبين څخه يو شی دی يعني معجزات د موسی، والتقدير لقد ارسلنا موسی بالامر الجامع بين كونه آياتنا وبين كونه سلطاناً وحجةً على صدق نبوته.

**فائده**: له آياتو څخه مراد آيات د تورات نه دي. ولي نزول د تورات خو وروسته تر غرق د فرعون وسو.

**فائده**: "مبين" مشتق د ابان څخه دی چي لازمي او متعدي دواړه مستعملېږي فعلى الاول معناه الواضح وعلى الثاني معناه الموضح. والمآل واحد فعلى الاول معناه واضح في دلالته على نبوته وعلى الثاني معناه الموضح لنبوته.

إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَمَلَإِيهِ فَاتَّبَعُوا أَمْرَ فِرْعَوْنَ ۖ وَمَا أَمْرُ فِرْعَوْنَ بِرَشِيدٍ ﴿٩٧﴾

وه فرعون ته چي لقب ؤ د سلطان د عمالقه ؤ او نوم يې وليد بن مصعب بن الريان ؤ او وه اشرافو ته دده، نو دوی متابعت وکړی د امر د فرعون في الكفر والضلال وصدقوا معبوديته ودعوى الوهية. او نه دی امر د فرعون ذی رشد وهدايت بل غي وضلال مقصود په دې عبارت کي تنبيه پر حماقت د اشرافو چي دوی څرنګه متابعت کاوه د امر فرعون مع كونه بدهي البطلان حيث ادعى الالوهية مع كونه بشر مثلهم. يطعم ويشرب وينام ويبول.

يَقْدُمُ قَوْمَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَأَوْرَدَهُمُ النَّارَ ۖ

دمخه به وي فرعون تر قوم، دا جمله مستانفه ده لپاره د بيان د حال د فرعون او قوم دده په اخرت کي.

**پوه سه!** چي يقدم قومه په معنى د يتقدم دی. په ورځ د قيامت وه اور ته لکه چي په دې دنيا دي يتقدمهم الى الكفر والضلال. فرعون به ورولي قوم اور ته د دوږخ.

**سوال**: وروستل د فرعون قوم لره اورته خو مستقبل دی يعني په ورځ د قيامت نو په ماضي يې ولي تعبير وکړی؟

**ځواب**: نعم لكن تعبير بالماضي للدلالة على يتقن ذالك الايراد لان الماضي يدل على الامر المتحقق.

**فائده**: ورود په عربي ژبه کي عبارت له ورتګه څخه وه اوبو ته او ايراد چي

باب د افعال دی د بل چا وروستل دي اوبو ته او مورد اوبو ته وايي. نو فرعون یې مشابه کړی د هغه چا سره چي تر واردة دمخه ابو ته ځان ورسوي چي په عربي يې فارط بولي او اتباع دده يې مشابه کړه د واردة سره او اور يې مشابه کړی د اوبو سره ثم قيل.

**وَبِئْسَ الْوِرْدُ الْمَوْرُودُ﴿٩٨﴾**

بد دی اور ددوی چي دوی ورته وارد کړل سولو، فالمورد صفت دی ورد، والمخصوص بالذم وهو النار، ولي چي ورد چي په اصل کي ورود الى الماء دی د هغه فائده تسکين د عطش ده، او دفع د احراق الكبد ده من العطش، والنار ضد ذالک فيكون بئس الورود المورود.

**وَأُتْبِعُوا فِي هَٰذِهِ لَعْنَةً وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ ۚ بِئْسَ الرِّفْدُ الْمَرْفُودُ﴿٩٩﴾**

او په دوی يعني په فرعون او په اتباعو دده پسې کړه سوی دی په دې دنيا کي لعنت على لسان الانبياء والملائكة والمؤمنين. او په ورځ د قيامت هم پر دوی لعنت دی.

**پوه سه**: چي "رفد" كومک او عطيه ته واي او مرفود يې صفت دی او مخصوص بالذم يې محذوف دی وهو اللعنة. والمعنى بد دی کومک او عطيه چي دوی ته ورکړل کېږي چي هغه لعنت دی په دنيا او اخرت کي.

**سوال**: لعنة في الدنيا والآخرة، نو كومک او عطيه نه ده نو څرنګه اطلاق د رفد المرفود پر صحيح دی؟

**ځواب**: هو! لكن په لفظ کي د رفد المرفود استعاره تهکميه ده كذا قال صاحب روح المعاني وصاحب التفسير الكبير.

**درويش وايي**: چي صاحب د روح المعاني كما هو عادته په تفسير کي د الورد المورود والرفد المرفود ډېري اوږدې خبري کړي دي او نقض او ابرام يې راوړی دی چي حاصل د هغو خبرو بېله تشويش او اضطراب د زړو د مخاطبينو بل څه نه ده. فلهذا اعرضنا عنه. و اودنا التفسير اللائق بحال المتعلمين لتفسير الفقير غفرله المولى القدير... بيت:

تاطبع شریفت نه پذیرد ملالتی ........ آن به که نامه را بدعا مختصر کنم

ذٰلِكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْقُرٰى نَقُصُّهٗ عَلَيْكَ مِنْهَا قَآئِمٌ وَّحَصِيْدٌ ۝

"ذالک" مبتدا ده او وروسته يې خبر دی يعني دغه بناٴ او قصه چې موږ تاته بيان کړه، بعض د خبرو او قصو څخه د قری مهلکه وو دي، بعض د هغو قريو پر ځای دي يعني آثار يې معلومېږي او بعض له هغو څخه معدوم الآثار دي چې درک يې نه معلومېږي.

**پوه سه:** چې "حصيد" فعيل دی په معنی د محصود وهو في الاصل الزرع المحصود بالمناجل (يعني چې ورېبل سي په لورو سره).

**درويش وايي:** چې بعض مفسرين ترجمه د قائم په عامر سره کوي او ترجمه د حصيد په خراب سره کوي والاول هو الاشهر والانسب کما لايخفی.

**فائده:** چې آثار يې معلومېږي لکه دېوالونه ديار د عاد او ثمود دي او چې اثار يې محو وي مثل بلاد نوح ولوط عليهم السلام.

وَمَا ظَلَمْنٰهُمْ وَلٰكِنْ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَمَآ اَغْنَتْ عَنْهُمْ

او موږ ظلم نه دی کړی پر دغو قرای وو والمراد اهلها يعني موږ دوی نه دي هلاک کړي ظلماً بل هلکناهم بکفرهم وشرکهم. بلکې دوی پر خپلو ځانو ظلم وکړی چې هغه کارونه يې مختاره کړه چې سبب د نزول د عذاب پر دوی وګرځېدی من الکفر والمعاصي کما مرت في قصصهم. نو فائده نه ورسول دوی ته او دفع د عذاب نه وکړه له دوی څخه.

اٰلِهَتُهُمُ الَّتِيْ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ شَيْءٍ لَّمَّا جَآءَ اَمْرُ رَبِّكَ ؕ وَمَا زَادُوْهُمْ غَيْرَ تَتْبِيْبٍ ۝

خدايانو ددوی چې دوی يې عبادت کاوه ماسوی له خدای هيڅ فائده. کلمه د "من" لپاره د استغراق د نفي د فائدې ده، هغه وخت چې راغلی عذاب د رب ستا او نه کړی زيات دي بتانو دوی ته ماسوی له هلاک څخه. ولې چې هلاک ددوی په سبب د عبادت ددوی ددغو بتانو منځ ته راغلی.

وَكَذٰلِكَ أَخْذُ رَبِّكَ إِذَآ أَخَذَ الْقُرٰى وَهِيَ ظَالِمَةٌ

کلمه د کاف په "وکذالک" کي په محل د رفع ده، خبر مقدم دی د مصدر مذکور وروسته ای اخذ ربک ای مثل ذالک الاخذ الذي مر في القصص المذكورة قبل هذا، نیول د رب ستاسي یعني عذاب د خدای ستا چي نسي قریې یعني اهل د قریو، چي قرى ظالمان وي یعني اهل یې، دا جمله حال ده له قرای څخه.

**پوښتنه:** د اخذ نسبت یې ولي و قریو ته وکړی او سره ددې چي صفت د اهل ؤ؟

**ځواب:** لپاره د اشعار پر دې چي اثر د اخذ الهي دوی لره ؤ قریو ته هم وسو چي هغه هم خرابي سوې.

**فائده:** ددې حال فائده داده چي سامعان په دې پوه سي چي اخذ د خدای پاک په سبب د ظلم او کفر د اهل القرى ده ليكون ذالك عبرة لكل ظالم.

إِنَّ أَخْذَهُۥٓ أَلِيمٌ شَدِيدٌ

په تحقیق نیول د خدای ﷻ یعني عذاب یې دردناکه او سخت دی

په حدیث شریف کي په روایت د ابو موسی الاشعري رضي الله عنه راغلي دي چي رسول الله ﷺ وويل ان الله ليملي للظالم حتى اذا اخذه لم يفلته ثم قرء وكذالك اخذ ربك" په تحقیق خدای مهلت ورکوي ظالم ته، حتی چي ظالم ونسي یعني عذاب پر نازل کړي بیا نه پرېږدي نه په توبه او نه په ژړا، بیا علیه الصلوة والسلام دا آیت په طور د دلیل ووایه وکذالک آه. سعدي شيرازي ميگويد:

تو پیش از عقوبت دری عفو کوب ...... که سودی ندارد فغان زیر چوب
کسی کز صر صر ظلمش د ما د م...... چراغ عیش مظلو ما ن بمیرد
نمیترس سد که ا یز د تعا لی ...... اگر چه د یر گیر د سخت گیرد

**تفریع:** پر عاقل سړي لازمه ده چي گناه یې وکړه د خدای ﷻ د غضب او عذاب څخه دي وه ببرېږي او بلا مهلت والتسويف دي توبه وکاږي "کریمه: هلک المسوفون.... بیت:

قبول توبه بر رب کریم است ........ فعجل ان في التاخير آفات

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَآيَةً لِّمَنْ خَافَ عَذَابَ الْآخِرَةِ

"ان في ذالک" ای فیما انزل بالامم المهلکة. په سبب د کفر او عصیان ددوی او فیما قص الله من قصصهم "لآیة" یعني عبرت او موعظت دی هغه چا لره چي بیرېږي له ورځي څخه د آخرت یعني ایمان یې پر ورځ د آخرت وي. ولي هغه سړی دا عذابونه ددې دنیا نمونه بولي د عذاب شدید د ورځي د قیامت. واما من انکر یوم القیامة فهو بمعزل عن العبرة کما لایخفی.

ذَٰلِكَ يَوْمٌ مَّجْمُوعٌ لَّهُ النَّاسُ وَذَٰلِكَ يَوْمٌ مَّشْهُودٌ

"ذالک" یعني ورځ د قیامت چي د عذاب الآخرة څخه وفهمېدله. هغه ورځ ده چي د هغې ورځي لپاره جمع کېږي خلګ یعني لپاره د حساب په دغه ورځ او د مجازات بعد البعث والنشور. او دا ورځ د قیامت هغه ورځ ده چي حاضرول کېږي په دې ورځ خلګ ټوله لایغیب فیه احد. فالمشهود بمعنی المشهود فیه.

وَمَا نُؤَخِّرُهُ إِلَّا لِأَجَلٍ مَّعْدُودٍ

او موږ نه ده ځنډولې دغه ورځ مګر نه تر پایه رسېدو پورې د اجل معین په علم کې د خدای "فالکلام علی حذف المضاف ای لانتهاٰ اجل "حسین کاشفي رحمه الله وایي مګر از برای ګذشتن مدتي شمرده. یعني تا وقت وی نه رسد قائم نګردد "حسب ما یقتضیه الحکمة الآلهیة

يَوْمَ يَأْتِ

**پوه سه:** چي "یوم" دلته په په معنی حین ده یعني حین یاتي ذلک الیوم المؤخر بانقضاٰ الاجل المعدود"وهو یوم القیامة.

**فائده:** موږ چي تفسیر د یوم په حین سره وکړی، نو هغه سوال دفع سو چي ضمیر د یاتي خو ورځ د قیامت راجع دی، نو معنی د کلام داسي سوه چي هغه ورځ چي راسي ورځ د قیامت فیلزم ظرفیة الشئ لنفسه وان یکون للزمان زمان وجه د دفع یې دا ده چي یوم مذکور فی الایة په معنی د حین چي هغه شامل دی ورځي ته د قیامت وغیره من الاوقات، نو دا د قبیلې څخه د ظرفیت د کل دی جز

لره ولا محذور في جزئية زمان لزمان آخر، الا ترى ان الساعة جزٔ من اليوم واليوم جزٔ من الاسبوع والاسبوع جزٔ من الشهر وهكذا.

**فائده**: په يات کي يأ د اضافت حذف کړې ده اکتفاً بکسرة التاً والاصل ياتي كما لا يخفى.

## لَا تَكَلَّمُ نَفْسٌ

الاصل لا تتكلم فحذف احدى التائين كما هو القانون الصرفي خبري نسي کولای يعني د قسم څخه د شفاعت او يا نجات وركونكو خبرو څخه لفرط دهشة ذالك اليوم، نفس هيڅ نفس.

**پوه سه**: چي نكرة په سياق كي د نفي عام ده.

## إِلَّا بِإِذْنِهِ

مگر نه په اجازه د رب العزة "كما ورد في موضع آخر من القرآن" لا يتكلمون الا من اذن له الرحمٰن" وقوله تعالى من ذالذي يشفع عنده الا باذنه.

**درويش وايي**: چي چي اول د من ياذن له فى الشفاعة هو سيد البشر ﷺ كما ثبت في الاحاديث الصحيحة المروية في البخاري وغيره ثم سائر الانبيأ عليهم السلام ثم الشهدأ ثم الاوليأ ثم وثم.

**پوه سه**: چي د قيامت ورځ زر كاله ده په كلو د دنيا وفي هذا اليوم مواقف واحوال ففي بعض الاحوال يتكلمون ويتسائلون وفي بعض الاحوال لا يتكلمون من شدة الاهوال، سعيد شيرازي رحمه الله وايي:

گر بمحشر خطاب قهر بود .......... انبيأ را چه جای معذرتست
پرده از لطف گوبر دارد .......... كه اشقيأ را اميد مغفرت است

## فَمِنْهُمْ شَقِيٌّ وَسَعِيدٌ ۝

**پوه سه**: چي ضمير د منهم راجع دی واهل الموقف ته كما يدل عليه لا تكلم نفس، او يا وناس ته راجع دى كما يدل عليه يوم مجموع له الناس. يعني بعض د اهل موقف يا بعض د ناس شقي وي يعني بد بخت او گمراه چي كتب عليه

الشقاوة باختياره طريقهم اى طريق اهل الشقا. او بعض نېک بخته او مؤمن وي كتب له طريق السعادة باختيارهم ذالک في الحيوٰة الدنيا فلا دليل في هذه الآية للجبرية خذلهم الله تعالى فتأمل.

**فائده**: "شقي" مبتدأ ده او "منهم" خبر مقدم دی، وقدم الخبر لتنكير المبتدأ كما هو القانون النحوي. او "سعيد" هم مبتدأ ده خبر يې محذوف دی يعني منهم لدلالة قوله فمنهم عليه.

**فائده**: شقي يې دمخه راوړی لان المقام مقام الانذار وهو للاشقيا او لكثرة اهل الشقاوة في اكثر الازمنة، په تفسير روح البيان كې وايي چې علامه د شقاوت پينځه شيان دي (١) قساوة القلب: يعني د زړه سخت والی چې د وعظ په اورېدلو نه نرم كېږي (٢) جمود العين: وچ والی د سترگو چې له بيرې د خدای له عذابه يو وخت يې هم سترگه وښكه نه كوي (٣) محبة الدنيا: د دنيا محبت چې سره د غنى او فقر كوي (۴) طول الأمل: چې د ژوند حرص يې ډېر وي (۵) قلة الحيا: حيا يې لږ وي يعني بې شرم وي، او د سعادت علامات هم پينځه دي (١) لين القلب: يعني ضد القسوة (٢) كثرة البكا يعني ضد د جمود العين (٣) زهد في الدنيا يعني ضد محبة الدنيا (۴) وقصر الأمل يعني ضد طول الأمل (۵) كثرة الحيا يعني ضد قلة الحيا.

**درويش وايي**: چې له علي بن ابي طالب ﷺ څخه روايت دی، دی وايي چې موږ په يوه جنازه كې په جنة البقيع كې وو چې رسول الله ﷺ راغلی او په لاس كې يې لكړه وه، نو كښېنستی او په لكړه يې مځكه گروله، يو ساعت وروسته يې وويل "ما من نفس منفوسة الا كتب مكانها من الجنة او النار والا كتب شقي او سعيد "نو يو سړي ورته وويل "الا نتكل على كتابنا وندع العمل؟" آيا موږ توكل پر خپل مكتوب ازلي عندالله ونه كړو او عمل نه پرېږدو؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل "لا، اعملوا فكل ميسر اما اهل الشقا فيسروا العمل اهل الشقاوة. واما اهل السعادة فيسروا العمل اهل السعادة الى اخير الحديث" رواه البغوي بسنده.

فَأَمَّا الَّذِينَ شَقُوا فَفِي النَّارِ لَهُمْ فِيهَا زَفِيرٌ وَشَهِيقٌ ﴿۱۰۶﴾

پس هغه کسان چي پر شقاوت وي هغه په اور کي وي او دوی لره په اور کي زفير او شهيق وي، ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي زفير صوت شديد ته وايي او شهيق صوت ضعيف ته وايي، او ضحاک او قتاده رحمة الله عليهما وايي چي زفير اول ته د ناري د خره وايي او شهيق اخير ته د ناري د خره وايي كذا في القاموس.

**درويش وايي:** چي ولا منافات بين الروايتين كما لا يخفى لان اول صوت الحمار شديد وآخره ضعيف، او روح المعاني وايي چي په اتفاق د اهل اللغة من الكوفية والبصرية الزفير بمنزلة ابتدا صوت الحمار والشهيق بمنزلة اخير نهيقه.

**درويش وايي:** چي په لفظ کي د "منزلة" په زفير او شهيق کي اشاره ودې ته ده چي اطلاق د زفير او شهيق پر صوت د اهل النار تشبيهاً او استعارةً دى، ويمكن حل كلام ابن عباس رضي الله عنهما او كلام د ضحاک او قتاده رحمهما الله په آيت کي پر قول د روح المعاني فتأمل جداً.

خَالِدِينَ فِيهَا مَا دَامَتِ السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ

دوی به همېشه وي په اور کي تر هغو چي دوام او بقا لري اسمانونه او مځکه.

**پوه سه:** چي آلوسي رحمه الله وايي چي دا عبارت تعبير د دوام او تابيد څخه على عادة العرب حيث يقولون لا يأتيک فلان مادامت السموات والارض يريدون التابيد، وايضاً يقول العرب لا افعل كذا ما لاح كوكب كناية عن التابيد وايضاً تقول لا يكون كذا ما اضا الفجر، وما اختلف الليل وامثال ذالک وكل ذالک كناية عن التابيد، والسر في ذالک ان العرب يعني اهل الجاهلية يزعمون ان السموات والارض باقيتان ابداً لزعمهم ان الدنيا باقية ابداً لاباد وينكرون الآخرة وتبديل السموات والارض وعدم بقائهما انما هو على رأى اهل الشرع حيث ورد يوم نطوى السما كطي السجل للكتب، وايضاً ورد يوم تبدل الارض غير الارض والسموات مطويات بيمينه، كريمه: اذا السما انشقت الآية" كريمه: اذا السما فطرت واذا الكواكب انتثرت الآية" كريمه: اذا الشمس كورت الآية"

الی غیر ذالک من الآیات الدالة علی عدم بقا هذه السموات والارض.

**درویش وایي:** چې پر تقدیر د عدم الکنایة عن التائید یمکن ان یراد بها سموات الآخرة وارضها. ولاشک سموات الآخرة وارضها مخلدة دائمة لان اهل الآخرة لابدلهم من مظل ومقل اما سما یخلقها الله تعالی یومئذ فتظلهم وقد قالوا کل ما علاک فاظلک فهو سما کل استقرت علیه قدمک فهو ارض.

**درویش وایي:** چې په دې آیت کې صاحب د روح المعاني ډېرې اوږدې خبرې کړې او نقض او ابرام یې هم راوړی دی ان شئت فارجع الیه.

## إِلَّا مَا شَاءَ رَبُّكَ

مګر نه هغه کسان چې د خدای ﷻ اراده ورته وسي د عدم الدوام في النار. مظهري رحمه الله وایي چې دا استثنا دلالت کوي پر عدم دوام د استقرارهم في النار ویؤیده ماروی عن ابن مسعود رضي الله عنه لیأتین علی جهنم زمان لیس فیها احد وذالک بعد مایلبثون فیها احقابا جمع د حقب ده چې اتیا یا سل کاله ته وایي. ومن الصوفیة من قال به الشیخ محي الدین بن عربي. په وروسته کې مظهري وایي وهذا القول ای قول ابن العربي مردود بالاجماع والنصوص. طبراني او ابو نعیم له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چې علیه الصلوة والسلام وویل که اهل النار ته وویل سي چې تاسي په اور کي یاست په عدد د ټولو سنګرېزو د دنیا دوی به ډېر خوشاله سي یعني په سبب ددې چې تاید خو نسته. او که اهل جنت ته وویل سي چې تاسي به په جنت کي یاست په حساب د ټولو شګو د دنیا دوی به خوابدي سي، یعني په سبب ددې چې جنت خو دار الخلود نه دی، په اخیر کي علیه الصلوة والسلام وفرمایل لکن جعل لهم (ای لاهل النار واهل الجنة) الابد چې انتها نه لري. نو اهل النار ته به ډېر غم پیدا سي او اهل جنت ته به فرح علی الفرح پیدا سي، او بخاري او مسلم له ابن عمر رضي الله عنهما څخه روایت کړی دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل چې اهل جنت جنت ته داخل سي (یعني ټوله) او اهل النار اور ته داخل سي (یعني الکفرة) نو یو اعلان کونکی په منځ کي د جنت او دوزخ ودرېږي او ووایي یا اهل النار

لاموت ويا اهل الجنة لاموت كل خالد فيما هو فيه. واخرج البخاري عن ابي هريرة ﷺ مثل ذالک وامثال تلک الاحاديث كثيرة وفي كتب الصحاح مذكورة وفي ايراد كلها طول.

**پوښتنه:** په حديث کي د ابن مسعود او د ابو هريره ؓ تيره سوه "ليأتين على جهنم زمان ليس فيها احد. وهذا الحديث معارض لمامر من الاحاديث الدالة على التائيد؟

**ځواب:** بغوي رحمه الله وايي چي د ابن مسعود او ابو هريره ؓ د حديث معنى په نيز د اهل السنة والجماعة داده چي په طبقه د اهل الايمان من العصاة چي په دوږخ کي وه څوک به پاته نه سي بلکې ټوله به نقل کړل سي وجنت ته بعد المجازات بالنار موقتاً في تلک الطبقة. واما مواضع وطبقات الكفرة فمملوة منهم على التابيد وهذا وجه التطبيق بين الآحاديث المتعارضة ظاهراً كمامرت عنقريب.

**درويش وايي:** چي الا ماشاء ربک آه. حال دى له ضمير څخه د خالدين فيها، او كلمه د "ما" كه څيري خاص وي په غير ذوى العقول پوري كما هو المشهور لكن اطلاق يې مجازاً گاهي پر ذوى العقول هم روا دى عند هؤلاء كما في قوله تعالى "فانكحوا ماطاب لكم من النسآ" لكن صحيح داده كما في شرح عبدالرحمن الجامي على الكافية چي كلمه د "من" خاص ده په ذوى العقول سره او كلمه د ما عامه ده لذوى العقول وغيرهم. وعلى هذا فلا مجاز في هذه الآية الى اطلاقها على ذوى العقول.

**يوه سه:** چي په دې دوو استثناؤ کي چي يوه په حق کي د اشقياؤ وو ده او بل په باره کي د سعداؤ وو ده" مفسرانو رحمهم الله قسم قسم توجيهات كړي دي بعض مفسرانو په دواړو استثناوو کي دونه بعيده توجيه مختاره كړې ده چي عقل سليم ابا ځندي كوي او هيڅ مفسر نه دي ورته تللی" دغه مفسر په اوله استثنا کي وايي قلت او خپل مخالف قول لكل المفسرين يې بيان كړي ده او په دوهم استثنا کي وايې والمختار عندي بيا هغه مخالف الكل توجيه راوړې ده. والحق الصريح ما قال السيد محمود اللالوسي رحمه الله في روح المعاني وصاحب روح البيان

والبیضاوي رحمه الله والامام القرطبي رحمه الله والرازي رحمه الله هغه توجیه دا ده چي مصداق ده دوارو استثناو بعض عصات د مؤمنانو دي چي محکوم بالنار وګرځي موږ لفظ د بعض ورایه له دي کبله چي ډېر عصات المؤمنین په رحمت عامه د خدای ﷻ بخښل کیږي او لوی عدد په شفاعت د اوره خلاصیږي" او هغه څوک چي محکوم بالنار سي هغه هم مصداق د شقي دي په اعتبار د عصیان او هم مصداق د سعید باعتبار الایمان ویجوز اطلاق الضدین علی شیئ واحد" باعتبارین کما تقرر في العلوم العقلیة باسرها وههنا مقدمة مسلمة عن جمیع اهل السنة والجماعة چي په ورځ د قیامت نه د فتیل ظلم سته نه د قطمیر، نو مؤمن به ثواب د ایمان چي اصل الاصول دی خا ما خا ویني او دا مقدمه هم مجمع علیها چي داسي خدای ﷻ نه کوي چي مؤمن ته دي ثواب په جنت کي یو څه موده ورکړي او وروسته دي دوږخ ته د عصیان د جزا دپاره واستوي او بیا دي هلته علی التایید پرېږدي" دا تحقیق چي موږ واورېدی" اوس مسلمان عاصي چي ونه بخښل سي او شفاعت یې هم ونسي، نو د اشقیاو په ډله کي به واستول سي او هر څه جزا چي د ده دپاره لائقه وه عند الله الملک الجبار هغه موده په دوږخ کي تېره کړي بیا به د ثواب د ایمان دپاره جنت ته واستول سي علی التایید فیها. نو دا آیت فاما الذین شقوا ففي النار" عام دی کافرانو ته هم شامل او عصات المؤمنین المحکوم علیهم بالنار ته هم شامل دی، نو د الا ماشا ربک" استثنا د عصات المؤمنین مراد ده چي هغه خالدین فی النار نه دي بلکه جنت ته به ځي کما مر انفاً.

**سوال**: د اما الذین شقوا څخه مراد خو اشقیا وه چي که کافران وي او که عصات المؤمنین وي، نو باید ګرده د دوږخ څخه ووزي؟

**ځواب**: الوسوي رحمه الله وایي وذالک کاف في صحة الاستثنا لان زوال الحکم عن الکل یکفیه زواله عن البعض لانه یصح ان یقال جائني القوم کلهم الا زید وعمر لان نقیض الموجبة الکلیة هی السالبة الجزئیة" روح المعاني وایي چي هم دغه ډله اشقیا د مؤمنانو مراد دي په اشتثنا ثاني کي چي د سعدا څخه استثنا سوې ده کما سیاتي ولي دا کسان مؤمنان د دخول څخه د جنت وځنډېدل

هغه ځو ورځي د عذاب د دوی په دوږخ کي لان التابيد من مبدٔ معين ينتقض باعتبار الابتدا كما لهؤلا في دخول الجنة كما ينتقض باعتبار الانتها كمكث هولا في النار، مثال يې دا دی يو سړی ووايې چي ما د پنجشنبې ورځ په باغ کي تېره کړه الا ثلاث ساعات. نو دا کلام صحيح دی کي په ابتدا کي د ورځي د پنجشنبې درې ساعته وروسته ورغلی وي باغ ته او که په انتها کي د پنجشنبې د ورځي (۳) ساعته را وتلی وي وفيما نحن فيه هؤلا وان اشقوا بعصيانهم فقد سعدوا بايمانهم.

**پوښتنه**: خدای پاک ځو انسانان دوه قسمه ګرځولي دي فمنهم شقي وسعيد" نو دا تقسيم ځو بايد نه سي صحيح ولي چي شرط د تقسيم ځو دادی چي صفت د هر قسمه به په قسيم کي د ده نه وي" وقد وجد صفت الشقي فی السعيد وصفة السعيد في الشقي؟

**ځواب**: چي دا شرط هلته لازم دی چي تقسيم پر طريقه د انفصال حقيقي وي كما في قولهم العدد اما زوج واما فرد او يا پر وجه د مانعة الجمع وي كما في قولنا الحيوان اما انسان او فرس واما اذا كان التقسيم على طريقة مانع الخلو فيجوز الجمع في قولنا زيد اما انيكون فی البحر او لايغرق جمع يې روا ده چي په درياب کي دي وي او غرق دي نه وي په کښتی کي دي سپور وي او خلوه يې ناروا ده يعني په درياب کي دي نه وي او غرق دي وي ولي د ځمکي پتېبدو ته خسف وايي غرق نه ورته وايي والتقسيم في قوله تعالى فمنهم شقي وسيد على طريق منع الخلو يعني اهل موقف په ورځ د قيامت د دې دوو قسمو ځخه خارج نه دي" و ذالک لا يمنع اجتماع الشقي والسعيد في شخص باعتبارين كالمؤمن العاصي بانواع المعاصي روح المعاني په آخر کي وايي وهذا ما ذكره الامام الرازي رحمه الله في تفسيره الكبير واختاره القاضي البيضاوي رحمه الله وروسته روح المعاني سوال او جواب را وړي دي.

**پوښتنه**: تا توجيه د استثنائينو په قول د روح المعاني تر اذهانو د متعلمانو ستا د تفسير ډېره لوړه کړه حتی چي انفصال حقيقي او مانعة الجمع او مانعة

الخلو چي اصطلاحي الفاظ دي د منطق هم پکښي راوړه، نو ولې دا دوې استثناوې په ساده ډول عام الفهم توجیه نه بیانولې؟

**ځواب**: په ساده ډول بیان په تفاسیرو موجوده وو کې عند الفقیر نه وو" نو زه مجبوره او معذور یم په بیان فوق کې.

إِنَّ رَبَّكَ فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيدُ ﴿١٠٧﴾

په تحقیق ستا رب ای محمد ﷺ ډېر کونکی دی د شي چي ورته اراده یې سي.

وَأَمَّا الَّذِينَ سُعِدُوا فَفِي الْجَنَّةِ خَالِدِينَ فِيهَا مَا دَامَتِ السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ إِلَّا مَا شَاءَ رَبُّكَ عَطَاءً غَيْرَ مَجْذُوذٍ ﴿١٠٨﴾

او هر چي هغه کسان دي چي سعید او نیک بخت ګنړل سوي وي هغه به په جنت کې وي تر هغو تر هغو اسمانونه او ځمکه وي مګر نه هغه کسان چي اراده د رب ستا ورته وسي، ورکړه د خدای ده چي قطعه کېږي.

**درویش وایي**: چي د دې آیت تحقیق د تفسیر هغه وو چي د مخه تېر سو لفظاً لفظاً تضعیفاً وتحقیقاً.

**پوه سه**: چي "عطآ" مفعول مطلق دی د فعل محذوف ای اعطو اعطآ من قبیل قوله تعالی "انبته الله نباتا" یعني بحذف زوائد باب الافعال فی المصدر فتامل او د غیر مجذوذ معنا دا ده چي ابد الابدین دا نعم آلهیه باقي وي واعلاها الوصل الی رب تعالی وتقدس بلا حجاب وکیف.

فَلَا تَكُ فِي مِرْيَةٍ مِّمَّا يَعْبُدُ هَٰؤُلَاءِ

تفریع ده پر ماقبل یعني تا واورېده قصه د متقدمینو د کافرانو او سوء عاقبت د دوی. نو ته مه ګرځه په شک کې له جهت څخه د عبادت د دغو مشرکینو چي ستا د زمانې دي.

**پوه سه**: چي اصل د "تک" تکن نون یې په سبب د کثرة استعمال حذف سو.

**فائده**: من په مما کې اجلی او ما مصدري دی والمعنی کن علی یقین من ان عبادت یعني للاصنام هولا ضلال سیئي العاقبة وهم بسبب ذالک في ضلال مبین.

مَا يَعْبُدُونَ إِلَّا كَمَا يَعْبُدُ آبَاؤُهُم مِّن قَبْلُ

دوی عبادت نه کوي د بتانو مگر داسې لکه چې عبادت کاوه پلرو او نيکه گانو د دوی د مخه تر دوی.

**پوه سه**: چې ضمه د "قبلُ" مع دخول حرف الجر عليه د دې سببه ده چې مضاف اليه د قبل حذف سو قبل مبني پر ضمه سو والاصل قبلهم.

وَإِنَّا لَمُوَفُّوهُمْ نَصِيبَهُمْ غَيْرَ مَنقُوصٍ ﴿١٠٩﴾

او موږ پوره او کامل ورکوو دوی ته برخه د دوی، يعني د عذاب دنيوي او اخروي چې هيڅ کم به نه وي.

**پوه سه**: چې غير منقوص حال مؤكدة دی د نصيب څخه وفائده ته دفع توهم التجوز في نصيبه.

**ښهانه فائده**: د دې آيت څخه دا معلومه سوه چې تقليد يعني قبول د قول د غير بېله دليله په اصولو او اعتقادياتو کې نه دی روا بل لابد من النظر والاستدلال من حدوث العالم ووجود الصانع وقدرته وعلمه وحياته الى غير ذالک من الصفات لکن ايمان المقلد صحيح عند الحنفيفة والظاهرية.

**پوښتنه**: ايمان د مقلد څه معنی ده؟

**ځواب**: ايمان د مقلد دا معنی ده چې سړی عقيده وکړي پر جميع ما وجب عليه من حدوث العالم ووجود الصانع وصفاته وارسال الرسل وما جاؤا به حقا من غير دليل.

والدليل عليه ان النبي ﷺ قبل ايمان الاعراب والصبيان والنسوان والعبيد والاما من غير تعليم الدليل عليه لکن مقلد في الاصول گناه کار دی په ترک د نظر او استدلال ولې پر ده واجب دی ولا يحصل اليقين الا بترک التقليد.

**مسئله**: تقليد په فروع او عملياتو کې روا دی بالاجماع ونعم ما قال السعدي الشيرازي رحمه الله:

برگ درختان سبز درنظر هوشيار........ هر ورقي دفتريست معرفت کرگار

**سوال**: د موفوهم" معنی خو دا ده چي پوره ورکوم، نو ده غیر منقوص څه فائده ده؟

**ځواب**: دفع د توهم د مجاز ده ولي چي ګاهي یو څوک وایي وفیته حقه والمراد بعض اکثر د حق مي ورکړی ولو مجازا.

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ فَاخْتُلِفَ فِيْهِ

لام موطئه د قسم محذوف دی ای والله په تحقیق ورکړی وو مونږ موسٰی ته کتاب یعني التوراة، نو اختلاف وکړه سو په هغه کتاب کي یعني بعض ایمان پر راوړی او بعض انکار ځني وکړی.

وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْ وَاِنَّهُمْ لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيْبٍ

که نه وایي یوه کلمة او خبره چي په ازل کي خدای ﷻ کړې ده چي عبارت دی د تاخیر څخه د عذاب تر ورځي پوري د قیامت، نو به په دنیا فیصله سوې وای بین المحق والمبطل یعني بانزال العذاب علی المبطل ونجات المحق، او په تحقیق اهل مکة من المشرکین هر آئینه په شک کي دي د قرآن څخه او یا د عذاب څخه چي واقع کونکی د اضطراب دی د دوی په زړو کي.

**یوه سه**: چي په ذکر کی د کتاب موسٰی او اختلاف په هغه کتاب کي تسلي وعلیه الصلوة والسلام ته ده. یعني ته باک مه کوه په اختلاف د قوم ستا په کتاب کي ستا چي قرآن عظیم الشان دی او صبر وکړه پر تکذیب د قوم خپل لکه موسی چي صبر پر تکذیب.

**فائده**: درویش وایي: چي په بیان سره د اختلاف په کتاب کي د موسی ﷺ هغه سوال دفع سو چي د وړاندي آیت په شان کي د موسی ﷺ او د تورات او اختلاف دده د قوم تېر سو، نو عطف د "وانهم لفي شک آه" څه مناسبت ورسره لري.

**سوال**: د قرآن ذکر خو دمخه نه دی راغلی، نو ارجاع د ضمیر د "منه" وقرآن ته اضمار قبل الذکر نه دی؟

**ځواب**: مقام د تسلي د علیه الصلوة والسلام دلالت کوي پر قرآن فافهم.

وَإِنَّ كُلًّا لَّمَّا لَيُوَفِّيَنَّهُمْ رَبُّكَ أَعْمَالَهُمْ

التنوين عوض من المضاف اليه اى كل واحد من المختلفين فيه المؤمنين منهم والكافرين.

**پوه سه:** چي لام اول مؤطئه د قسم دی واللام الثاني جواب د قسم محذوف دی "او لما بتشديد الميم اصل يې لمن ما په كسره د ميم چي لام جاره دی پر ما موصوله داخل سو" يا موصوفه، نو وروسته نون ساكنه سره د ميم د ما جمع سو نو په قانون صرفي يې ادغام واجب دی، نو نون يې په ميم بدل كړی، نو په لفظ كي دري ميم سره يو ځای سوه ،نو يو ئـي حذف كړی اول يا د مابين على اختلاف اقوال الصرفيين وتقدير العبارة ان جميعهم لمن الذي على تقدير الموصولة او من فريق پر تقدير د موصوفه "والله ليوفينهم" چي پوره به وركوي خدای ﷻ جزاً د اعمالو د دوی من الايمان وسائر الحسنات والكفر وسائر المعاصي شرا او خيرا.

إِنَّهُ بِمَا يَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿١١١﴾

په تحقيق خدای په عمل د دوی خبر دی هذا على تقدير انيكون كلمه مصدريه او بما يعملونه كه ما موصولة سي فالعائد محذوف.

فَاسْتَقِمْ كَمَا أُمِرْتَ وَمَن تَابَ مَعَكَ

نو دوام وكړه پر استقامت ته ای محمد ﷺ استقامة كما امرت لكه ته چي امر سوی يې په هغه استقامت او هغه څوک چي توبه يې كښلې وي د شرک څخه او ايمان يې راوړی وي ستا سره.

**پوه سه:** چي ومن تاب عطف دی پر ضمير مستتر په استقيم كي كه څه هم تاكيد په ضمير منفصل سره يې نه دی سوی لان وجود الفصل په كما امرت سره كافي دی په عطف كي پر مستتر كما هو القانون النحوي.

**پوه سه:** چي لفظ د فاستقم تفريع پر ماقبل يعني چي خدای ﷻ بيان كړی حال د مختلفينو په توحيد او نبوة كي او په وعد او وعيد كي مفصل بيان

وکړي. نو امر کړی رسول خپل ومن تبعه په استقامت سره څرنګه چي د خدای ﷻ د خوا څخه تاسي امر کړه سوي یاست.

**فائده**: لفظ د استقامت پر ټوله دین محیط دی من العقائد چي توسط دی په مابین کي د تشبیه د خدای ﷻ لکه مجسمه چي وایي خدای لره جسم او اعضاً ستته" او تعطیل لکه حکماً چي وایي خدای یوازي عقل اول پیدا کړی وبس" او په مابین کي جبر یعني چي عبد مجبور محض دی حسنه او سیئه د خدای ﷻ د خوا څخه دی او د اختیار لکه قدریه چي وایي چي بنده خالق د خپلو اعمالو دی الی غیر ذالک من مذاهب المبتدعه او استقامة په اعمالو کي حین تبلیغ الوحي وبیان شرائع الاسلام مفصلا والقیام بالعبادات من غیر افراط ولا تفریط ومراعات حقوق الناس والانتقام من الظالم للمظلوم وامثال ذالک.

**درویش وایي**: چي چونکه استقامة دونه فراخه لمن لري نو څکه صوفیه کرام رحمهم الله وایي چي استقامة فوق الکرامة دی" حاصل د کلام دا دی چي استقامة ډېر سخت کمال انساني دی.

**درویش وایي**: چي مسلم د سفیان بن عبد الله څخه روایت کړی دی دی وایي چي ما وویل "یا رسول الله قل لي فی الاسلام قولا لا اسئلک عنه احدا بعدک قال قل امنت بالله ثم استقم" هم دا سبب دی چي ټوله مؤمنان په خپلو لمنځو کي مکرر وایي " اهدنا الصراط المستقیم آو" وایي.

بغوي وایي چي د ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت کوي دی رضی الله عنه وایي ما نزلت علی عهد رسول الله ﷺ من اية هی اشد علیه من هذه الایة ولذالک قال شیبتني سورة هود" چي په هغه کي امر د فاستقم آه موجود دی.

**درویش وایي**: چي هغه توجیه د دې حدیث چي مظهري رحمه الله کړې ده چي نفس د علیه الصلوة والسلام خو مجبول علی الاستقامة وو او مخلوق علی خلق عظیم وو لکن د جهت شاق والي د استقامت پر من تبعه د مبارک شفقت علی الامة داسي وویل شیبتني سورة هود انتهی دې توجیه ته ضرورت نسته ولي چي هر څوچي قرب د خدای ﷻ ته ډېر ېږي هغونه خوف او خشیة د خدای ﷻ څخه ډېر ېږي.

**درویش وايي:** چې خواجه عصمت بخاري رحمه الله در صفت وبيان اهل استقامت چنين فرموده:

کسی را دانم استقامت.......... که باشد بر سر کوی ملامت
ز اوصاف طبیعت پاک برده ......... باطلاق هویت جان سپرده
تمام از گرد تن دامن نشانده .......... برفته سایه وخورشید مانده

ابو علي الجرجاني رحمه الله وايي:

کن طالب الاستقامة لا طالب الكرامة

فان نفسک متحركة في طلب الكرامة..... وربک يطلب منک الاستقامة"

روایت: یو چا د ابو سعید قدس سره څخه چې فلاني ولي الله پر اوبو تګ کوی ده ورته وویل چې "ما هې او چنګوښه هم دغسې کوي" هغه ورته وویل چې فلانی ولی الله په هوا الوزي، ده ورته وویل چې مرغان تول داغسې دي. هغه ورته وویل چې فلانی ولي الله د شرق وغرب ته وبالعکس په یوه آن رفتار کوي ده ورته وویل ابليس كذالک" نو هغه ورته وویل فما الكمال والولاية عندک ده ورته وویل ان تكون في الظاهر مع الخلق وفي الباطن مع الحق" چې سادات د نقشبندي طریقې داسې تعبير كوي " سفر در وطن وخلوت در انجمن ونظر بر قدم.

وَلَا تَطْغَوْا إِنَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿١١٢﴾

او تاسې طغیان او سر کښي مه کوئ یعنې تر حدودو د شرعې مه تیریږئ" په تحقیق خدای ﷻ په هغه شي چې تاسې یې عمل کوئ دانا او خبر دی" بالبصير ه ليس بحاسة البصر بل بمعنى العلم بالمبصرات.

**یوه سه:** چې جمله ولا تطغوا نهي دي معطوف پر فاستقم دی عطف الانشا على الانشا.

**یوه سه:** چې مخاطب په لا تطغوا کې عليه الصلوة والسلام ومن تاب معه دي لکن په نهي کې طغیان تغليب د من تاب معه یې کړی دی پر عليه الصلوة والسلام باندې لان الطغيان انما يتصور في حقهم كذا في روح البيان ومثل ذالک في روح المعاني ص ۱۳۵، او قال صاحب روح المعاني في تلک الصفحة اي لا

تتحرفوا عما حد لكم بافراط او تفريط فان التوسط هو المحمود انتهى بزيادة.

وَلَا تَرْكَنُوْٓا اِلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا

او تاسي ميل مه کوئ وهغو کسانو ته چي ظالمان دي" فائدة الركون المحبة والميل القلبي كذا قال ابن عباس رضي الله عنهما او ابو العالية" لا ترضوا باعمالهم اى الظلمة" او سدي وايي "لا تدهنوا الظلمة" غوړه مالي مه کوئ د ظالمانو سره او بيضاوي رحمه الله وايي" لا تميلوا اليهم ادنى ميل فان الركون هو الميل اليسير لکه تعظيم د ذکر د دوی او په ملبوساتو کي د دوی سره تشبه کول" وغير ذالک.

**درويش وايي**: چي معاني مذکور د رکون سره نژدې دي لکن په بعض کي تغليط دی.

فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ

نو که رکون وکړئ وظالمانو ته، نو تاسي به مسه کي اور يعني د دوزخ.

**درويش وايي**: چي بيضاوي او روح البيان" او روح المعاني او مظهري يو د بل سره په نژدې الفاظو داسي ويلي دي چي لږ ميل وظالم ته سبب د مساس النار دی فما ظنک بالميل اليهم کل الميل" او بيا چي سرې په خپله ظالم وي.

**تنبيه**: دا آيت ابلغ آية دی په نهي کي د ظلم څخه.

**حکايت**: يو سړي خلف الامام لمونځ کاوه امام چي دا آيت قرائة کړی مقتدی بېهوښ سو" چي په هوښ کي راغلی چا پوښتنه ځندي وکړه چي څه دروسوه، نو هغه ورته وويل "هذا فيمن رکن الى الظالم فکيف حال الظالم" حسن بصري رحمه الله وايي چي خدای جل جلاله گرځولی دی توله دين بين لائين لا تطغوا ولا ترکنوا د امام اوزاعي رحمه الله څخه روايت دی "ما من شيئ الى الله من عالم يزور ظالما" يعني تر عالم چي ملاقات ته د ظالمانو ورځي.

**درويش وايي**: چي د اوسني عصر ملايان د ظالمانو حکامو ملاقات په واسطو کوي بلکه د امريکايانو او د نورو کافرانو" د اوس رضي الله عنه څخه روايت دی چي ده واورېدل له رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه چي ده صلى الله عليه وسلم وويل "من مشى مع ظالم ليقويه وهو يعلم انه ظالم فقد خرج من الاسلام.

**درویش وایي:** چې نن صبا مسلمانان د والرو دپاره امریکایانو ته جاسوسي کوي او د مسلمانانو کورونه په بمباره وي او نر او ښځي حتی د زانګو کوچنیان په وژني وهذه المعاملة الیوم رائجة في افغانستان" الله خیرا.

د ابو هریرة ﷺ څخه روایت دی چې ده واورېدل له یو سړي څخه چې ظالم "لایضر الا نفسه" ابو هریرة ﷺ وویل "بلی والله" یعني نوزو ته یې ضرر رسېږي قسم په خدای ﷻ "حتی الحباری لتموت في وکرها هزلاً بظلم ظالم" حتی چې حباری چې د یوه مرغه نوم دی مري به په خپله ځالګی. کې د لوږې او د ړنګروالي له سببه په سبب د ظلم د ظالم . وفي الحدیث ایاکم والظلم فانه یخرب قلوبکم"

معذرت دربیان حال بعض العلماً سعدي میګوید: بیت

تو ګوی آنچه دانی سخن سودمند ....... وګرهیچ کس نیاید پسند

**مسئله:** د سفیان ثوري رحمه الله څخه چا پوښتنه وکړه چې یو ظالم که په دښت کې د تندې څخه مړ کېدی یو بل سړی د دې په خوله کې اوبه وروا چوي سفیان ثوري ورته وویل "لا" ولې چې دا د ظالمه سره کومک دی. او نور علماً دا وایي چې اوبه دې ورکړي چې دی وروسته په خپله امکان لري چې د ظلم څخه به توبه وکاږي "وفي الحدیث" العلماً امناً الرسل علی عباد الله مالم یخالطوا السلطان (ملایان امینان د رسولانو دي پر بندګانو د خدای ﷻ تر هغه پوري چې د سلطان سره خلط ونه کړي) فاذا فعلوا ذالک فقد خانوا الرسل فاحذروهم واعتزلوهم (که دوی دا کار وکړی یعني مخالطة د سلطان سره وکړي. نو د داسي علماؤ څخه وبېرېږئ او ځندي ګوښه سئ).

**درویش وایي:** چې والله اعلم مراد د سلطان څخه په دې حدیث کې امیران د جور او ظلم دي چې امارت او سلطنت یې د توفک په زور وي نه د بیعت د اهل العقد والحل په واسطه. نو ددې امیرانو څخه امراً المسلمین في عصر الصحابة کالخلفاً الراشدین ﷺ وامیران د تابعینو د زماني خارج دي "البته" د وروسته ازمنه وو د امیرانو په ملاقات کې خیر نسته "الا ما شذ وندر" کعمر بن عبد العزیز ﷺ.



Scanned by CamScanner

وَمَا لَكُم مِّن دُونِ اللَّهِ مِنْ أَوْلِيَاءَ ثُمَّ لَا تُنصَرُونَ ﴿١١٣﴾

او نشته تاسي لره ماسوی د خدای ﷻ څخه هېڅ دوستان يعني چي تاسي دې د عذاب د خدای ﷻ څخه خلاص کړي.

**پوه سه:** جمله د "ومالکم آه" حال د مفعول څخه د "تمسکم" او بيا ستاسي سره کومک د خدای ﷻ د خوا هم نه کړه کېږي "اذ سبق حکمه تعالی ان یعذبکم فیه" شان نزول الآیة" ترمذي او نسائي د ابي اليسر ﷺ چي نوم يې په قول د بغوي رحمه الله (عمرو بن غزية الانصاري) وو دی وايي چي ما دوکان د خورما د خرڅولو لپاره خلاص کړی" يوه ښځه راغله چي خورما يې رانيول ما ورته وويل چي په دننه دکان کي تر دې ښه خورما سته. نو ښځه زما سره دننه دوکان ته ولاړه، نو ما په غاړه کي لاس ورواچاوه او مچه مي څندي واخيستله وروسته پښېمانه سوم. نو ابو بکر ﷺ ته ورغلم دا بيان مي ورته وکړی" هغه راته وويل استر على نفسک وتب" بيا عمر ﷺ ته ورغلم او دا سرګزشت مي ورته ووايه هغه هم داغسي راته وويل "استر على نفسک وتب" د دوی پر قول باندي مي صبر ونه سو رسول الله ﷺ ته ورغلم هغه ماجرى مي ورته ووايه" ﷺ راته وويل چي د غازي في سبيل الله په ماينه کي تا داسي خيانت وکړی حتی چي دی وايي چي زما دا ګمان سو چي زه د اهل النار څخه سوم بيا ﷺ سر کښته وڅړاوه او وحی ورته راغلې.

وَأَقِمِ الصَّلَاةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ اللَّيْلِ

فقال اصحاب رسول ﷺ آلهذا خاصة ام للناس عامة قال ﷺ بل للناس عامة.

**پوه سه:** چي "طرفی النهار" منصوب دی علی الظرفية. ولي چي طرفي مضاف دی ووقت ته چي نهار ده فاعطی حکم المضاف اليه.

**فائده:** مراد له "طرفی النهار" څخه غدوه ده چي قبل الزوال وخت ته وايي چي په دې کي د سهار لمونځ دی او عشيه ده چي بعد الزوال وخت ته وايي چي په دې کي د ماپښين او ماز ديګر لمونځ دی.

**پوه سه:** چي زلفاً عطف دی پر "طرفی النهار" نو "زلفاً" هم منصوب علی الظرفية دی، والمعنى ساعات من الليل القريبة الى النهار، نو په دې کي د ماښام

لمونځ او د ماخستن لمونځ دی. نو پينځه لمونځونه پوره سوه.

**فائده:** په دې آیت سره اشاره ودې ته ده چې "زلف" چې جمع دی اطلاق يې پر دوو لمونځو چې ماښام او ماخستن دی صحیح دی.

**فائده:** ددې آيت مثل هغه آيت دی چې په سورت "قٓ" کي راغلی دی "وسبح بحمد ربک قبل طلوع الشمس ای صل قبل طلوع الشمس وهي صلاة الفجر، وقبل الغروب ای صلاة الظهر والعصر، ومن الليل ای بعض اوقات الليل فسبحه ای صل فيه وهي صلاة المغرب والعشاْ ومن الليل فتهجد به" او په بعض ساعاتو کي د شپې د تهجد لمونځ کوه چې بعض علماْ وايي چې د تهجد لمونځ پر عليه الصلوة والسلام واجب ؤ. او بعض علماْ وايي چې له تهجد څخه صلوة الوتر مراد دی.

**فائده:** په امر کي د فعل الخير يعني الصلوة يوازې عليه الصلوة والسلام وګرځاوه في الظاهر وان كان مأمور به في المعنى عاماً. او په نهي کي له محظوراتو څخه يعني "لاتطغوا" ولاتركنوا" مخاطب غير له رسول ﷺ چې امت دی مخاطب يې وګرځول. وهذا من البلاغات الفائقة للقرآن فتدبر.

إِنَّ الْحَسَنَٰتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّـَٔاتِ ۚ

يعني مطلقاً خصوصاً الصلوة الخمس كما ههنا، بيا يې بدې يعني حکم د سيئاتو وهو العذاب مطلقا" يعني صغيره ګنهونه چې دلته تقبيل د ابي اليسر وو هغه ښځي لره" التقييد بالصغائر بقرينه قوله ﷺ الصلوة الخمس والجمعة الى الجمعة ورمضان الى رمضان مكفرات لما بينهن اذا اجتنب الكبائر.

ذَٰلِكَ ذِكْرَىٰ لِلذَّٰكِرِينَ ﴿١١٤﴾

"ذالک" اشارة الى قوله فاستقم وما بعده وقيل الى القرآن، موعظة ونصيحة لمن يتذكر ويتيغط.

وَاصْبِرْ فَإِنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ ﴿١١٥﴾

يا محمد على الطاعات وعن المعاصي وما اصابک من الاذى في تبليغ الدين وقيل على الصلوة، په تحقيق خدای ﷻ نه ضائع کوي اجر او ثواب د مخلصينو په عبادت کي.

**پوه سه:** چي تر وله امت تبع دی د علیه الصلوة والسلام په امر کي د صبر" لان الخطابات الشرع عامة الا ما خص برسول الله ﷺ.

**درویش وایي:** چي تفسیر د محسنینو ما په مخلصینو سره وکړی تبعا لما جا في الحدیث الطویل الذي رواه البخاري" الاحسان ان تعبد الله کانک تراه الی اخیر الحدیث.

## فَلَوْلَا كَانَ مِنَ الْقُرُونِ مِنْ قَبْلِكُمْ أُولُوا بَقِيَّةٍ

**پوه سه:** چي لو لا په معنی د هلا چي حرف تخصیص یې بولي که پر مضارع داخل سو یعني باعثه کول پر یو کار مثل هلا تضرب زیدا" او حرف تندیم یې بولي یعني پښېمان کول مثلا هلا لا قیت فلانا" او کان تامه په معنی د وجد دی والمعنی بالفارسیة پس چرا نبود او په پښتو نو ولي نه وه او مراد د قرون څخه قرون هالکة دي" او من قبلکم په تقدیر د الکائنة صفت دی د القرون پر مذهب د هغه چا چي حذف د موصول چي کلمة ال د سره د بعض صلة چي کائنة روا بولي" او هغه مذهب چي دغسي روانه بولي هغه یې په تقدیر د کائنة نکرة حال بولي د القرون څخه.

**فائده:** هر څه اهل د یوې زمانې قرن بولي لمن بعدهم لانهم یتقدمونهم په قاموس کي وایې چي قرن سل (۱۰۰) کاله ته وایې وهو الاصح ولي چي علیه الصلوة والسلام یو هلک ته داسي دعا وکړه عش قرنا هغه ځوانکی پر سل کاله عمر مړ سو، او دغه رنګه هر امت چي د یوه مخه مړه سي چي هېڅ څوک یې پاته نسي قرن بولي" لفظ د الو جمع ده ذو علی خلاف لفظه او بقیة فضل او خیر ته وایې ولي خیر بولي لان الرجل انما یستبقي مما یکسبه اجوده وافضله. نو تا د بقیة د لفظ د پاره د نقل ده کالذبیحة" عربي محاوره ده فلان من بقیة القوم ای من خیارهم، ومنه ما قیل فی الزوایا خبایا" وفی الرجال بقایا.

**درویش وایي:** چي لفظا لفظا ترجمه چي مو واورېده. نو د مجموع عبارت قرآني ترجمه دا ده. ولي نه وه یعني باید وای د اهل قرون څخه یعني هلاک سوي دي په عذاب آلهي سره چي تر تاسي د مخه دی خاوندان د فضل او شرف او خیر.

يَنْهَوْنَ عَنِ الْفَسَادِ فِي الْأَرْضِ إِلَّا قَلِيلًا مِّمَّنْ أَنجَيْنَا مِنْهُمْ

چي خلګ يې منع کولای د فساد څخه په مځکه کې بالکفر والمعاصي" او امر بالمعروف يې ورته کولای، مګر نه لږ کسان د اهل قرون څخه چې موږ نجات د عذاب څخه ورکړی دوی ته په سبب د دې چې هغو خلګ د فساد في الارض څخه منع کوله" وهم اتباع الانبياء عليهم السلام چې دوی د انبياء مسلک په امر بالمعروف او نهی عن المنکر پر ځای کړی وو.

**پوه سه:** چې استثناء د الا قليلا" منقطع ده ای قليلا ممن انجينا فهم نهوا عن الفساد ووجه الانقطاع ان هذا القليل لم يكن داخلا في الهالكين" لانهم هلکوا او هم بقوا" او کلمة د من په ممن انجينا کې بيانيه ده لا للتبعيض ولي ټوله ناجين نهی کونکي وه د فساد څخه.

وَاتَّبَعَ الَّذِينَ ظَلَمُوا مَا أُتْرِفُوا فِيهِ وَكَانُوا مُجْرِمِينَ ﴿۱۱۶﴾

او متابعت کاوه هغه کسانو چې ظالمان وه او نهی عن الفساد في الارض يې نه کاوه.

**پوه سه:** چې ضمير د فيه راجع وما ته يعني شي چې مراد ځندي شهوات دي والاتراف الانعام من الترف وهو النعمة ای انعموا فيه الشهوات واللذات" نو د دوی ټوله اهتمام په تحصيل کې د اسباب د شهواتو پر کار اچولي وو او د امر بالمعروف او نهی عن المنکر څخه يې اعراض کړی وو" وکانو مجرمين" او وه دوی کافران.

**پوه سه:** چې کفر اعظم د جرمو او سيئاتو دی لکه توحيد چې اعظم د حسناتو دی ولهذا لا يغفر الله الكفر اصلا ويغفر لاهل التوحيد ما يشاء من السيئات بلا توبة" يعني المغفرة بلا توبة مقيد بالمشية" واما المغفرة بالتوبة فامر يقيني حسب وعده تعالى ذالک ولا يخلف الله الميعاد" په صحيح حديث کې راغلي دي خدای جل جلاله خواص د بندګانو په عمل سيئ د عوامو نه نسي" يعني عذاب نه ورکوي تر هغو چې خواص قادر پر نهي عن المنکر د عوامو وي او سره ده هغه نهي عن المنکر نه ورته کوي يعني د تملق او غوره مالي او د تحصيل د اموالو د عوامو څخه، نو که عذاب آلهي نازل سي عوام او خواص به ټوله په بر کې ونسي.

**درویش وايي**: چي كما هو الشائع في الزمان الحاضر سنه ۱۴۲۸ه ق" وقبل ذالك بسنين كثيرة تدل عليه التجربة" سعدي شيرازي قدس سره وايي:
گرت نهي منكر بر آيد ز دست...... نه شايد چو بي دست وپايان نشست
بگو آنچه داني سخن سود مند...... و گر هيچ كس را نيايد پسند
چو دست وزبان را نماند مجال...... بهمت نمايند مردي رجال
يعني په دعا گوي مران ښكاره كوي اهل الله" يعني يقولون اللهم اهد قومنا فانهم لا يعلمون.

وَمَا كَانَ رَبُّكَ لِيُهْلِكَ الْقُرَىٰ بِظُلْمٍ وَأَهْلُهَا مُصْلِحُونَ ﴿١١٧﴾

**پوه سه**: چي كلمه د لام ليهلك د پاره د تاكيد د نفي ده او وروسته تر لام ان مصدري مقدر دى ولي چي حرف جر پر فعل نه داخلېږي او د مخه تر ربك لفظ د صفت مقدر دى والمعنى ما كان صفة ربك اهلاك اهل القرى په ظلم او ناحقي سره.

**پوه سه**: چي بظلم حال دى د ضمير څخه د فاعل په يهلك كي اى ما كان الله مهلكهم ظالما لهم" او اهل د قريو دي مسلمانان وي.

**فائده**: په دې آية كي تنزيه د خداى د ظلمه څخه. او روح البيان او مظهري په گډه سره بل تفسير د آيت په قيل سره راوړى دى چي حاصل يې دا دي چي بظلم متعلق په يهلك پوري دى او مراد د ظلم څخه شرك دى يعني خداى نه هلاك وي اهل القرى په مجرد شرك سره چي اهل يې مصلحون وي يعني يو پر بل ظلم نه سره كوي او مراعات د حقوق په كښي كېږي او امنيت د خلگو برحال وي ولهذا قيل يبقى الملك مع الكفر ولا يبقى مع الظلم ولي چي نوشيروان سره د دې چي كافر وو لكن چي پر رعيت يې ظلم نه كاوه او د ده په سلطنت كي دروازه د ظلم د رعيت يو پر بل هم بنده وه، نو نوم د عادل يې د تاريخ په پاڼرو كي تر اوسه محفوظ پاته دى د ده د تاريخ بيانونكي وايې چي نوشيروان چي مړ سو په قرار د وصيت د ده جنازه په ټوله ملك وگرځول سول او منادي به نعرې وهلې يعني د نوشيروان د خوا څخه كه د چا پر موږ يو حق د حقوقو وي را دي سي چي ور يې كړو ولكن هېڅ څوك پيدا نه سو. تاريخ وايې چي د ده دسلطنت په عصر

کي سید العالم محمد المصطفی ﷺ زوکړی دی" یو شاعر وایي:

شه کسری از ظلم ازان ساده است ....... که درعهد او مصطفی زاده است

د نني زمانې د شاهانو او رئیس جمهورانو ددې دوو بیتو څخه د سعدي رحمه الله ملاحظه کړه.

نیاید بنزدیک دانا پسند ......... شبان خفته و گرگ درگوسپند

مکن داتوانی دل خلق ریش ......... وگر میکنی میکنی بیخ خویش

**وَلَوْ شَاءَ رَبُّكَ لَجَعَلَ النَّاسَ أُمَّةً وَاحِدَةً وَلَا يَزَالُونَ مُخْتَلِفِينَ ﴿۱۱۸﴾**

او که د خدای ﷻ ستا مشیت یعني اراده وای نو ګرځولي به یې وای ټوله خلګ یوه ډله یعني مؤمنان صالحان. او همېشه خلګ په اختلاف کي دي له حق څخه وباطل ته قسم قسم اختلافونه من الاسلام والیهودیة والنصرانیة والمجوسیة والشرک. او په فرقو د ضلال بعض جبریان دي بعض قدریان دي بعض معتزله دي بعض مجسمه دي بعض روافض دي بعض خوارج دي الی غیر ذالک.

**فائده:** ددې آیت څخه دا معلومه سوه چي امر الهي او اراده د خدای ﷻ سره جلا دي، ولي چي خدای پاک ټوله انسانان په ایمان او اصلاح العمل امر کړي دي لکن اراده ددې نه ده کړې لان خلاف ارادته تعالی محال کما في هذه الآیة ایضاً "ماشا کان وماشا لم یکن.

**درویش وایي:** چي مشیت او اراده دوه قسمه ده کما في تفسیر الکواشي، یوه اراده د قسر او الجأ بولي چي د هغه تخلف نه دی روا کما في هذه الآیة او یو مشیت د اختیار ده چي د بنده د اختیار سره موافق خدای ﷻ ایجاد د شي او د یو کار کوي. مثلاً مرګ د بنده یا ناجوړي فلج وغیره فقر موت الاهل والعیال وغیر ذالک په مشیت قسر سره د خدای ﷻ دی، او لمونځ، روژه، حج وغیره په مشیت اختیار پوري د بنده اړه لري.

## إِلَّا مَن رَّحِمَ رَبُّكَ

مگر نه هغه کسان چي رحم وکړي ستا رب یا محمد ﷺ پر دوی.

**پوه سه**: چي عائد و "من" ته محذوف دی ای رحمه او ربک فاعل د رحم دی.
یعني چي خدای پاک پر چا رحم وکړي په خپل فضل او کرم سره. نو هغه پر صراط مستقیم دی او پر عقائد صحیحه وو باندي دی. او امتثال د اوامرو د خدای ﷻ کوي او ځانونه له منهیاتو څخه ساتي.

**پوه سه**: چي احمد، نسائي او دارمي رحمهم الله له ابن مسعود رضي الله عنه څخه داسي روایت کړی دی چي یوه ورځ علیه الصلوة والسلام موږ ته یو خط مستقیم ولیکی، ثم قال هذا سبیل الله ای الخط المستقیم. ثم خط عن یمینه وشماله خطوطاً ثم قال هذه خطوط ای خطوط المنهیات علی کل خط شیطان یدعوا الیه بیا علیه الصلوة والسلام په تائید د خپل قول دا آیت ووایه "وان هذا صراطي مستقیماً فاتبعوه ولا تتبعوا السبل آه"




## وَلِذَٰلِكَ خَلَقَهُمْ

**درویش وایي**: چي ددې آیت معرکة الآرا تفسیرونه دي، چناچه ابن عباس رضي الله عنهما مجاهد، قتاده او ضحاک رحمهم الله چي په "ذالک" کي اشاره ورحمت ته ده او تذکیر د اسم الاشاره یا په تأویل د رحمت ده په خیر سره او یا په سبب ددې چي رحمت مؤنث لفظي دی وفي مثله یجوز التذکیر والتانیث کما تقرر في علوم العربیة، او ضمیر د "هم" چي په "خلقهم" کي دی راجع وه "من" ته دی باعتبار المعنی. نو معنا د آیت داده چي لپاره د رحمت خدای پاک پیدا کړي دي بندګان. او حسن او عطا رحمهما الله وایي چي لپاره د اختلاف فیما بینهم خدای ﷻ پیدا کړي دي، نو "ذالک" اشاره ده وه مصدر مفهوم ته مختلفین، او ضمیر د هم راجع دی وناس ته، او لام د لذالک لام عاقبة دی، یعني ثمرة الاختلاف یې داده من کون فریق في الجنة وفریق في السعیر لان حکمة خلقهم لیس الاختلاف لقوله تعالی "وما خلقت الجن والانس الا لیعبدون" او بل دلیل دادی چي که خدای پاک خلګ د اختلاف لپاره

پيدا کړي وای، نو دوی ته به يې عذاب نه ورکولای پر ارتکاب د باطل. روح المعاني وايي كذا قال غير واحد. وروى عن الامام مالك رحمه الله مايقتفيه.

**درويش وايي:** چي کاشکي صاحب د روح المعاني پر دغه ځای خبره ختمه کړې وای لکن ده دومره اوږدې خبرې سوالونه او جوابونه او تفاسير غريبه روارې دي چې عقل ورته حيران پاتېږي. ولله درصاحب روح البيان حيث اختصر الكلام في تفسير هذه الآية غاية الاختصار واقتصر على احتمال واحد مما ذكروه وهو ماذكره ابن عباس رضي الله عنهما وغيره كمامر اولاً.

وَتَمَّتْ كَلِمَةُ رَبِّكَ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنَ الْجِنَّةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ

او تام او پر ځای ده خبره د خدای ﷻ اى حكمه الازلي يا خبره د خدای وملکو ته. هر آئينه به ډکوم زه جهنم دوږخ د پيريانانو او انسانانو څخه ټولـه اى العصات والكافرون منهما.

**فائده:** پوه سه! چي ذوى العقول په مراتبو کي د دين دارۍ پر څلور مرتبې دي (۱) سعيد بالنفس والروح في لباس السعادة كالانبيا عليهم السلام والاوليا الكرام ذوى العز والاحترام (۲) شقي بالنفس والروح في لباس الشقاوة كابليس والمصرون على الكفر كفرعون ونمرود وابى جهل وغيرهم (۳) شقي بالنفس والروح في لباس اهل السعادة كبلعم بن باعور وبرصيصا والمرائين من الناس (۴) سعيد بالنفس والروح في لباس الشقاوة اى الزلة والفقر كبلال الحبشي وصهيب الرومي وسلمان الفارسي رضي الله عنهم في ابتدا حالاتهم.

وَكُلًّا نَّقُصُّ عَلَيْكَ مِنْ أَنبَاءِ الرُّسُلِ مَا نُثَبِّتُ بِهِ فُؤَادَكَ

"كلا" اى كل بناء وخبر فالتنوين عوض من المضاف اليه. موږ قصه کوو لـه اخبار څخه د رسولانو. يعني وانبا امهم.

**پوه سه:** چي "ماثبت به" بيان دى يا بدل دى د "كلا" يعني ددې قصو د انبيا او ددوى د امتو فائده په قرآن کي بيانول داده چي موږ قوي کړو په هغو سره ستا زړه يعني پر ادا د رسالت او پر تبليغ د احكام الهيه به ستا زړه قوي او محکم سي او يقين به دې نور زيات سي، او پر ازار د کفارو به دې صبر محکم سي.

وَجَآءَكَ فِيْ هٰذِهِ الْحَقُّ وَمَوْعِظَةٌ وَّذِكْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۲۰﴾

او راغلی وتاته په دغو قصو کې د انبیاؤ او د امتو ددوی حق یعني بیان حق مطابق لماهو الواقع او نصیحت، او پند د ټولو مؤمنانو لپاره.

**پوه سه:** چي "ماثبت به فوادک" فائده خاصه د علیه الصلوة والسلام وه او د "وجآ الخ" بیان دی د فائدې عامي د قصصو مذکوره وو.

وَقُلْ لِّلَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ اعْمَلُوْا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ ۭ اِنَّا عٰمِلُوْنَ ﴿۱۲۱﴾ۙ

او ته ووایه وهغو کسانو ته چي ایمان نه راوړي چي تاسي عمل کوئ پر خپل حال چي تاسي پر یاست من الکفر. موږ عمل کوو یعني پر خپل دین چي ایمان او اسلام دی.

**پوه سه:** چي امر تهدید دی او امر وعید دی.

وَانْتَظِرُوْا ۚ اِنَّا مُنْتَظِرُوْنَ ﴿۱۲۲﴾

او تاسي انتظار کوئ زموږ وحوادثو او بلایاوو ته موږ ستاسي د بلا وو په انتظار یو لکه چي پر نورو کفارو چي ستاسي مثل وه نازلي سوي دي في الازمنة الماضیة.

وَلِلّٰهِ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

**پوه سه:** چي "غیب السماوات" مبتدأ ده "لله" یې خبر دی والتقدیم للحصر یعني خاص خدای پاک لره دی علم غیب السماوات والارض په حذف د مضاف وهو لفظ العلم. والمراد ماغاب عن العباد لا من الله اذ لایخفی علیه خافیة اصلاً والمقصود انه تعالی لایخفی علیه اعمالکم.

وَاِلَيْهِ يُرْجَعُ الْاَمْرُ كُلُّهٗ فَاعْبُدْهُ وَتَوَكَّلْ عَلَيْهِ ۭ

او خاص وخدای ﷻ ته راجع کړل کیږي امر د بندګانو ټوله. یعني ستا امر ای علیه الصلوة والسلام او امر د کافرانو، نو ستا انتقام به خدای پاک له کافرانو څخه واخلي، ته د خدای ﷻ عبادت کوه او تکیه پر کوه یعني الاعتماد. کریمه: "ومن یتوکل علی الله فهو حسبه".

**فائده:** عبادت یې پر توکل دمخه کړی تنبیه یې پر دې وکړه چي توکل سره

د عبادت ته فائده کوي وبس..... مصرع: کسب کن پس تکیه بر جبار کن.

**وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ**

نه دی خدای ستا یا محمد غافل او ناخبره ستاسي له عمل څخه. که کلمه د ما مصدریه وي. او یا له هغو کارو څخه چي تاسي یې کوئ بحذف العائد که ما موصوله سي.

**بوه سه:** چي مخاطب په "تعلمون" سره علیه الصلوة والسلام او کافران دواړه دي تغلیباً.

**مسئله:** علم غیب مختص په خدای ﷻ پوري دی بالذات او اخبار د بعض مغیباتو چي له انبیاً علیهم السلام څخه صادر سي هغه په واسطه د وحي دي، او د بعض مغیباتو اخبار چي له اولیاً الله الکرام څخه صادر سي هغه په واسطه د الهام دی. ومن هذا القبیل اخباره ﷺ من حال العشرة المبشرة من دخولهم الجنة. وکذا اخباره ﷺ له علاماتو څخه د قرب قیامت وما یظهر في اخیر الزمان من البدع والهوی وغلبة اهلهما وامامة الصلوة واتباع الشهوات.

**درویش وایي:** چي په اوسني زمانه کي یعني (۱۴۲۹ هـ) وقبله دغه بدعات ښکاره سوي دي او په ډېرو بلادو کي یې غلبه کړې ده او د لمانځه ضائع کول او د شهواتو متابعت پر خپل عروج باندي دی. مثلاً یوه فرقه وایي موږ وهابیه یو. بله فرقه وایي موږ سلفیه یو او بعض وایي موږ پنج پیران یو، او بعض وایي موږ اتباع د ظواهر د حدیثو یو الی غیر ذالک.

د بعض اولیاً الله رحمهم الله حکایت واورئ چي د تاریخ اسلامي په پاڼو کي مثبت دی، سید الطائفه جنید بغدادي قدس سره وایي چي ماته زما ماما سري سقطي رحمه الله وویل چي ته ورسته تر نن ورځ خلګو ته وعظ او تبلیغ کوه. جنید وایي چي ما له دې کار څخه ځان قاصر باله فرئیت لیلة الجمعة رسول الله ﷺ في المنام فقال لي تکلم علی الناس، نو راویښ سوم او د خپل ماما سري سقطي کور ته ورغلم "فقال لم تصدقنا حتی قیل لک" نو زه صبا د وعظ او تبلیغ لپاره پر منبر کښېنستم نو په دوران کي د وعظ یو نصراني ځوان

راغلی لکن په لباس کي د مسلمانانو ، نو زما څخه يې پوښتنه وکړه ایها الشیخ څه ده معنی ددې قول د علیه الصلوة والسلام "اتقوا فراسة المؤمن فانه ینظر بنور الله" ما سر وځړاوه او بیا مي سر راپورته کړی او ما هغه ځوان ته وویل چي اسلام راوړه ستا د اسلام راوړلو وخت ورسېدی فاسلم الغلام، علما او فقها رحمهم الله وايي چي ورته علم پر احوالو د خلګو نه سي پیدا کېدای بېله اخبار الهامي د خدای جل جلاله والا فکل ولي متحير في امره وامر غيره كما قال المولى الجامي قدس سره:

ای دل تو که آن فضولی وبو العجبی .... ازمن چه نشان عافیت می طلبی
سر گشته بود خواه ولی خواه نبی .... درواد ی ما ادری ما يفعل بی
اشارة الى الحديث الصحيح النبوي........ بيت:
بر فلک برتر بود اسرار او ........ شيئاً لله شيئاً لله كار او

د سورة هود تفسير پوره سو په توفيق د خدای عزوجل پر لس بجې د دوشنبې په ورځ سنه (۱۴۲۹ هـ) ولله الحمد والمنة والصلوة والسلام على رسوله خير البرية وعلى آله وصحبه البررة الكملة.



تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا
سکین او pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ
۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

سورة يوسف عليه السلام هي مكية كلها على المعتمد كما في روح المعاني وآيتها مائة و احدى عشرة (۱۱۱) بالاجماع، او هغه کسانو چي بعض آيت د سورت يوسف مدني بللي دي، فقد قال صاحب روح المعاني هو واه جداً لا يلتفت اليه.

سورة يوسف مكية وهي مائة وإحدى عشرة آية واثنا عشر ركوعا

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

الٓرٰ تِلْكَ اٰيٰتُ الْكِتٰبِ الْمُبِيْنِ ﴿۱﴾

**درویش وايي:** چي د "الٓرٰ" لکه شان د نورو مقطعاتو قرآنيه وو دی او اختلاف د مفسرينو هم هغه دی چي په مقطعاتو قرآنيه وو کي ؤ او په دې تفسير کي په اول کي د سورة بقره هم راوړل سو.

**بوه سه:** چي ابي بن كعب رضي الله عنه له رسول الله ﷺ څخه داسي روايت کړی دی چي ده مبارک وویل "علموا ارقائكم سورة يوسف (ارقا جمع د رقيق ده چي مريي او مينځي دوارو ته وايي) فانه ايما مسلم املاها وعلمها اهله وماملکت يمينه هون عليه سکرات الموت واعطاه القوة كذا في تفسير التبيان، او له ابن عطا څخه روايت دی لا يسمع سورة يوسف مغموم الا استراح كما في تفسير الكواشي.

**شان نزول السورة:** راوي وايي چي د مدينې د يهودانو ملايانو ورئيسانو ته د مکې د قريشو نوشته کړه چي تاسي له محمد (ﷺ) څخه پوښتنه وکړئ چي له څه سببه آل يعقوب له شام څخه مصر ته ولاړل، وعن قصة يوسف د مکې رئيسانو هم داغسي وکړه فنزل السورة بتمامها في مكة، او بعض مفسرين رحمهم الله چي سبب د نزول ددې سورت هغه دی چي سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه وايي چي قرآن په مکه کي پر عليه الصلوة والسلام نازل سوی دی ده مبارک به اصحابو رضي الله عنهم ته د هغه تلاوت کاوه فقالوا يا رسول الله لو قصصت علينا يعني لو انزل عليك سورة فيها قصة غريبة فنزلت سورة يوسف.

**فائده:** ددې سورت په نزول کي وه عليه الصلوة والسلام ته تسلي هم ده چي قوم دی مبارک زهيراوه بما فعل اخوة يوسف عليه السلام به.

**بوه سه**: چي "تلك" اشاره ده وه آياتو ته د قرآن او اضافت و كتاب ته په چي مراد څندي قرآن كريم دى په معنى د من تبعيضي ده او د مبين معنى ظاهر في الاعجاز ده" او په نيز د زجاج رحمه الله معنى يې دا ده چي ښكاره كونكى د حق دى د باطل څخه او ښكاره كونكى د حلال د حرام څخه.

**درويش وايي**: چي مفسرانو نوري معناوي د مبين هم بيان كړي لكن معاني يې متناسب او متلازمي دي.

**إِنَّآ أَنزَلْنَٰهُ قُرْءَٰنًا عَرَبِيًّا لَّعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿٢﴾**

په تحقيق موږ نازل كړى قرآن مصدر دى په معنى د مقروء دى لكن علم بالغلبة دى د مجموع قرآن فيحتمل ان يراد به مجموع القرآن او سورة يعني سورة يوسف عربيا صفت دى د قرآن.

**بوه سه**: چي "لعل" په معنى د لام كي دى يعني تعقلونه فالعائد محذوف د دې تعقل وجه دا ده چي قرآن مبارك چي ستاسي د عربو په ژبه دى نو تاسي يې په فصاحت او بلاغت فائقه ښه پوهيږئ تر عجمو او تاسي دى معجزه وبولئ او د شعر يا كلام البشر نوم د حسد او عناد له كبله پر كښيږدي.

**درويش وايي**: چي مظهري په منهية د خپل تفسير كي ليكلي دي د خالد بن عرفطة په روايت چي زه ناست وم په نيزه د امير المؤمنين عمر رضي الله عنه چي يو سړى د قبيله څخه د عبد القيس راويستل سو، نو عمر رضي الله عنه ورته وويل "انت فلان العبدي" هغه ورته وويل هو. نو عمر رضي الله عنه د خورما په لرگي دى درې واره وواهه چي دالته پروت وو، نو هغه سړي ورته وويل ماڅه كړي يا امير المؤمنين يعني تازه ووهلم" عمر رضي الله عنه ورته وويل اجلس فجلس الرجل" نو عمر رضي الله عنه بسم الله الرحمن الرحيم ووايه او سورة يوسف يې تر لعلكم تعقلون پوري ووايه او دا آيت درې واره عمر رضي الله عنه ووايه مگر پر هر وار به يې هغه په لرگي وواهه" هغه سړي ورته وويل مالي يا امير المؤمنين" نو عمر رضي الله عنه ورته وويل چي ته هغه سړى يې چي كتاب د دانيال دي نوشته كړى دى هغه ورته وويل هو لكن ته ما ته امر وكړه زه به ستا متابعت وكړم عمر رضي الله عنه ورته وويل چي ورسه په تودو ابو او وريي بې پر بمنځه "ثم

لا تقرئه ولا تقرئه احدا" يعني مې ته وايه او مې چاته وايه" هغه ورته وويل بنه دی وروسته عمر ﷺ سبب د دې غضب د ده وهغه سرې ته بيان کړی" چې ما يو څو آيته د تورات د اهل کتاب څخه نوشته کړې وه پر يوه څرمنه، نو مې ﷺ ته راوړه، نو ﷺ راته وويل ما في يدک يا عمر ما ورته وويل چې يو څو آيته د تورات لتزداد علما الى علمنا فغضب رسول الله ﷺ حتى احمرت وجنتاه چې بارخوگان يې د ډېر غضبه سره سوه" بيا يې بلال ته امر وکړی الصلوة جامعة" نو انصار ﷺ وويل غضب نبيكم السلاح السلاح چې نبي ستاسي ته درد ورغلی سلاح درواخلی سلاح درواخلی" باره انصار ﷺ پر منبر نبوي ﷺ سره د سلاح شا وخوا را وګرځېدل" فقال رسول الله ﷺ اني قد اوتيت جوامع الكلم وخواتمه واختصر بي اختصارا ولقد اتيتكم بها بيضا نقية (په تحقيق ماته رامړه سوی يعني د خدای ﷻ کلمات جامعه يعني چې معنا يې جزيل ده او لفظ يې قليل دی او خواتم د کلم او ما ته اختصار کړی دی خدای ﷻ په اختصار سره).

او ما راتګ کړی په هغو کلمو تاسي ته سپين او صاف يعني تغير او تبديل نسته پکښې) فلا تتهوكوا ولا يغرنكم المتهوكون" عمر ﷺ وايي زه ورولاړ سوم فقلت رضيت بالله ربا وبالاسلام دينا وبک رسولا ثم نزل رسول الله ﷺ انتهى مع بعض الزيادة للتوضيح والاختصار لبعض المقاصد والله اعلم.

نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ أَحْسَنَ الْقَصَصِ

موږ بيان کوو تاته يا محمد ﷺ هغه ښه د قصو.

**درويش وايي**: چې احسن يا مفعول به دی د نقص چې قصص مصدر په معنی د مفعول سي ای احسن ما نقص عليک وهو قصة يوسف ﷺ او يا مفعول مطلق دی چې قصص په معنی د اقتصاص سي. نو پر دې تقدير معنی يې دا ده نبين لک اخبار الامم الماضية مطلقا والقرون السابقه احسن البيان سوا كان اقتصاص يوسف ﷺ او غيره.

**سوال**: قصه د يوسف ﷺ احسن ده تر قصې د سيد الكونين والمرسلين ﷺ مع انه ليس كذالک؟

**خواب**: دا دی چي قصه د يوسف ﷺ په خپل باب احسن القصص ده لا من جميع ما يقص في القرآن وباب قصة يوسف ﷺ سيجئ في هذه السورة او بعض علماً وايي چي مراد د اسم تفضيل ښخه گاهي مطلق زيادة من وجه وي محي السنة بغوي رحمه الله وايي سمى الله قصة يوسف احسن القصص لما فيها من العبر والحكم والنكت والفوائد التي تصلح للدين والدنيا وسير الملوک والمماليک ومكر النساً والصبر على اذى الاعداً والتجاوز عنهم بعد الاقتدار وغير ذالک كما سياتي كل ذالک في آيات هذه السورة" او بعض مفسرين رحمهم الله وايي چي يوسف ﷺ د ابناً د بني اسرائيلو وو او نسب د ده احسن د انسابو وو كما ورد في الحديث النبوي الصحيح ان الكريم ابن الكريم ابن الكريم ابن الكريم" يوسف بن يعقوب بن اسحاق بن ابراهيم.

**پوه سه**: چي كرم اسم جامع دی د ټولو ما يحمد به من الصفات.

**پوه سه**: چي په يوسف ﷺ کي څو خواص جمع دي (١) كونه ابن ثلاثة انبياً متراسلين اى متصلين (٢) شرف د نبوة وو (٣) حسن السورة وو (۴) علم تعبير الرؤيا (۵) رياسة الدنيا (٦) حفاظة الرعية في القحط (٧) ابتلائه بالبلايا المتنوعة من الاخوة وامرئة العزيز كما سياتي كل ذالک في هذه السورة.

﴿بِمَآ أَوۡحَيۡنَآ إِلَيۡكَ هَٰذَا ٱلۡقُرۡءَانَ وَإِن كُنتَ مِن قَبۡلِهِۦ لَمِنَ ٱلۡغَٰفِلِينَ﴾

په سبب د دې د وحي زموږ وتاته دا قرآن يعني هذه السورة والقرآن يطلق على الكل والبعض اجماعا.

**پوه سه**: چي ما مصدريه دی ای بايحائنا..

**فائده**: ان مخفف د مثقل دی يعني انه كنت. الضمير للشان او شان دا دی چي ته وې د مخه تر بيان زموږ هر آئنه د غافلانو ښخه د قصة يوسف او بعض مفسران وايي چي غافله وې د ټولو قصو او احكامو او شرائعو ښخه.

**درويش وايي**: چي دا احتمال د مقام سره بعيد دی كه څه هم صحيح دی.

**پوه سه**: چي مراد د غفلت ښخه عدم العلم دی لكن تعبير په غفلت سره دپاره د مراعات د علو شان د خپل حبيب دی ﷺ.

## إِذْ قَالَ يُوسُفُ لِأَبِيهِ

ای اذکر یا محمد ﷺ چې وويل يوسف عليه السلام وخپل پلار ته يعني يعقوب بن اسحٰق بن ابراهيم.

**تنبیه**: یوسف لفظ عبراني دی نو ځکه غیر منصرف دی للتعريف والعجمة عبراني په بل عبارة عبري لغت وو د ابراهیم عليه السلام لکه سرياني چې هغه ژبه ده چې آدم عليه السلام به عمومي تكلم په کاوه وان كان يعلم اللغات كلها" په انوار المشارق کې وايي چې اسف په لغت کې غم ته وايي او اسيف مريي ته وايي او دا دواړي معناوي په يوسف کې سره يو ځای سوې" وهذه من الاتفاقيات العجيبة النادرة وسيئاتي اجتماع هذين المعنيين في يوسف عليه السلام في هذه السورة.

**يوه سه**: چې بعض علماً چې په عبري الفاظو کي عربي اشتقاق وايي، نو دوی وايي چې يعقوب او د ده ورور عيص غبرگوليان وه او په قرار د وتود رحم څخه د مور نوبت د یعقوب د مخ وو لکن عیص عصیان وکړی او د مخه تر یعقوب د مور د رحم څخه را ووتی او يعقوب په عقب کي د هغه يعني وروسته فلهذا سميا بهذين الاسمين" تاريخ وايي چې عيص ډېر په وينتيانو پټ شخصيت وو او يعقوب پر بدن وينتيان لږ درلوده چې دې ته اجرد په عربي وايي او عیص پر پلار ډېر گران وو او يعقوب پر مور" او عیص به همېشه ښکار کاوه او يعقوب به پسونه ساتل چې راعي او شپانه يې بولي، نو هغه وخت چې اسحاق ډېر کلان ساله سو او په سترگو ړوند سو وعيص ته يې وويل چې ماته د ښکار غوښي راوړه چې زما شوق ورته کېږي، او بيا ماته نژدې کښينه چې زه هغه دعاً درته وکړم چې هر نبي ته خدای ﷻ يوه دعا مستجابه ورکړېده او نبي اکرم ﷺ هغه مستجابه دعاً خندولي ده شفاعةً لامته، نو د يعقوب مور ورده ته وويل چې ورسه يو پسه ذبح کړه ښې پوخ کړه، نو هغه چې پوخ کړی مور يې اسحاق عليه السلام ته راوړی او ورته وي ويل چې دغه دی شوا درله راووړه.

**درویش وايي**: چې مور د يعقوب په دې خبره کي دواغ جنه نه وه ولي چې دې نوم د عیص نه دی ورياد کړی بلکه دا رنگه يې ورته وويل چې ستا زوی. نو

يعقوب خو هم د اسحاق زوى وو) نو مور د يعقوب واسحاق ته وويل چي ستا مستجابه دعا ورته وكړه د اسحاق ﷺ دا خيال سو چي راوړونكى عيص دى. نو اسحاق ﷺ داسي دعا ورته وكړه چي هغه چا چي دا غوښي ماته راوړي (يعني عيص نوم يې نه واختى) د هغه په اولاد كي انبيا او ملوك پيدا كړي" يعقوب ولاړى وروسته چي عيص د ښكار غوښي غوړمه و پلار اسحاق ته راوړې او پلار ته يې وويل چي دغه دي د ښكار غوښي مي درلره راوړې اسحاق ﷺ وپوهېدى چي دمخه غوښي يعقوب راوړي وې، نو عيص ته يې وويل چي لويه مستجابه دعا يعقوب يو وړه، نو عيص ته يې وويل لكن يوه دعا زما پاته ده هغه به وتاته وكړم چي ستا اولاد دي خداى ﷻ دونه ډېر كړي لكه خاوري. نو وه عيص ته خداى ﷻ ډېر لوى نسل وركړى دى" راويان وايي چي اسحاق په كنعان كي اوسېدى او د ده زوى اسماعيل په مكه كي متوطن وو. نو اسحاق ﷺ چي عمر يې (۱۸۰) كاله ته ورسېدى او علامات د وفات يې ولېدل نو پټ وصيت يې وكړى چي يعقوب د ده دماما د وطن په اطرافو كي د شام واستوئ" ولي پر دې بېرېدى چي عيص يې قتل نه كړي حسدا ولي چي عيص په معامله د غوښو كي چي اسحاق ته يعقوب وروړي وې قسم يې اخستى وو. چي زه به يعقوب وژنم. نو يعقوب ولاړى د ماما وطن ته چي نوم يې يحى بن ناهز ؤ او هوري اقامت پذير سو او د ماما يې دوې لوڼې وې. يوه لايا نوميده چي هغه يې مشره وه او بله راحيل نوميده چي هغه كشره وه. نو يعقوب ﷺ وخپل ماما ته وويل چي يوه لور دي ماته په نكاح راكړه ماما يې ورته وويل چي نعم اووه كاله به زما خدمت كوې، يعقوب ﷺ ورته وويل چي ښه دى اووه كاله دي خدمت كوم راحيل به په نكاح راكوې ماما يې ورته وويل نعم يعقوب ﷺ چي اووه كاله خدمت وكړى نو هغه مشره لايا يې په نكاح وركړه. يعقوب ﷺ ورته وويل چي زما سره دي چم وكړى ما خو كشره راحيل غوښتله ماما يې ورته وويل چي زمونږ دا قانون دى چي كشره لور تر مشري دمخه په نكاح نه وركوو. نو كه كشره غواړې اووه كاله نور خدمت وكړه كشره به هم په نكاح دركړم. نو يعقوب ﷺ

اووه کاله نور خدمت وکړی نو کشره لور راحیل یې هم په نکاح ورکړه.

**مسئله:** جمع د نکاح د اختین په نکاح کي دمخه تر بعثت د موسی ﷺ روا وه.

**فائده:** ماما یې هري لور ته یوه مینځه د خدمت لپاره ورکړه چي یوه زلفه نومېدله او بله بلهة نومېدله هغو دوو مایېنو د یعقوب ﷺ لایا او راحیل دا دوې مینځیاني یعقوب ﷺ ته ور وبخښلې. تاریخ وایي چي د لایا شپږ زامن وه (۱)روبیل (۲) شمعون (۳) یهودا (۴) لاوي (۵) یسجر (٦) زیالون. او یوه یې لور وه دنیه. او زلفه مینځي دوه زامن راوړه (۱) دان (۲) یفتالي. او بلهه هم دوه زامن راوړه (۱) جاد (۲) آشر. او راحیل څو کاله وچه وه، اخیر چي حامله سوه یوسف ﷺ پیدا سو دا وخت د یعقوب ﷺ یو نیوي (۹۱) کاله عمر ؤ. او یعقوب ﷺ اراده وکړه چي آبایي وطن کنعان ته ولاړ سي سره د ټوله فامیله. او خدای ﷻ د عیص له زړه څخه ټوله عداوت د یعقوب ایستلی و. نو چي سره ملاقاتي سوه یو د بل په غاړه کي یې لاسونه واچول او د فراق اوښکي یې توی کړې، او په کلو کي د هجرت راحیل بیا امیدواره سوه بن یامین یې وزېږاوه، او دا په نفاس کي مړه سوه، یوسف ﷺ د دوو کالو ؤ. او یوسف ﷺ تر ټولو زامنو پر پلار گران ؤ. او یوسف ﷺ په شپه کي د جمعې چي د شب قدر شپه هم وه او دی د دوولسو کالو په عمر کي ؤ دا خوب یې ولیدی.

## يَٰٓأَبَتِ إِنِّي رَأَيۡتُ

اې پلاره ما ولیدل یعني په خوب کي فهو ماخوذ من الرؤیا لا من الرؤیة البصریة بدلیل ماقال له یعقوب لاتقصص رؤیاک آه، په تفسیر کواشي کي وایي الرؤیا في المنام والرؤیة في العین.

راوي وایي چي یوسف وپلار ته نژدې بیده ؤ ناببره له خوب څخه په حال کي د دهشت راوغورځېدی، یعقوب ﷺ ورته وویل چي ولي داسي سرگردانه یې او دهشت زده راویښ سوې، یوسف ﷺ ورته وویل یا ابت الخ.

**پوه سه:** چي اصل د "یا ابت" یا ابي ؤ نو عوض د یا اضافت څخه تا راوړه په سبب د تناسب بین الیا وتا التانیث في ان کل واحدة منهما زیادة مضمومة الی اخیر الاسم.

**فائده:** چونکه نداً وپلار ته کثیر الاستعمال ده نو ځکه یې په لفظ دال کې توسع وکړه چنانچه یا ابی، یا ابتِ بکسر التاً یا ابتَ بفتح التاً لکه ابو عامر المقري او ابو جعفر په ټوله قرآن بفتح التاً وایي یا اباه.

أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا وَّالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ رَأَيْتُهُمْ لِي سٰجِدِيْنَ ④

یوولس ستوري، لمر او سپوږمۍ.

یوسف به پدر بزرگوار خود گفت که من بر سر کوه بودم که حوالی آن کوه انهار جاري واشجار سبز بود که واقعه رونما گردید که زیازده ستاره وآفتاب و ماه.

**پوه سه:** چي شمس او قمر یې له ستورو ځخه بېل راوړه وان کان هما ایضاً کوکبان لزیادة فضلها ونفعها علی سائر الطوالع "رأیتهم لي سُجدین" دا جمله مستأنفه ده گویا پلار ورته وویل چي څرنگه دي ولیدل، یوسف وویل "رئیتهم" ما ولیدل چي ماته ټولو سجده وکړل یعني سجدة الانحناً لا سجدة العبادة. والاول هي المعتاد في زمانهم والثانية ممنوعة في جمیع الشرائع لغیر الله تعالی.

**فائده:** سجدین" یې په صیغه د جمع مذکر او په ضمیر د هم راوړه او سره ددې چي دا مخصوص په عقلاؤ سره دی له دې سببه چي دا ستوري، لمر او سپوږمۍ موصوف په صفت د عقلاؤ چي سجده وکړځېدل. تأویل ددې خوب دادی چي یوولس ستوري عبارت دي د یوولسو ورڼو دمېرې زامن او لمر عبارت دی له پلار ځخه او قمر عبارت دی له خاله ځخه د یوسف ﷺ چي دده تربیه له کوچنیوالي ځخه دې پر ذمه اخستې وه لان ام یوسف ماتت في نفاس بنیامین کمامر من قبل، او ابن جریج د قمر تعبیر په پلار سره کړی او د شمس دا یې په خاله سره کړی دی ولي چي لمر موئنث دی لکن دا خبره لیس بشئ لان التانیث د شمس لفظي مخصوص بالعرب دی. ولهذا یقال لها موئنث سماعي فلا وجه لتعبیر الاب بالقمر والشمس بالخالة مع ان الشمس اضوء من القمر ونور القمر مستفاد من نور الشمس کما تقرر في کتب الریاضي. والشمس اعظم جرماً من القمر بمرات کما ثبت في الریاضي ایضاً.

**درویش وایي:** چي مظهري او روح البیان په گډه له جابر بن عبد الله ﷺ

څخه روايت کړی دی چي يو يهودي چي نوم يې د بيهقي په روايت بستان ؤ عليه الصلوٰة والسلام ته راغلی چي ددغو ستورو چي يوسف ته يې سجده وکړه نومان يې څه شی دي؟ عليه الصلوٰة والسلام يو ګړی ساکت ؤ جبرئيل عليه السلام راغلی نومان يې ورښوول. بيا عليه الصلوٰة والسلام يهودي ته وويل که مې نومان دروښوول نو ايمان راوړې. يهودي وويل نعم عليه الصلوٰة والسلام ده اسې ورته ذکر کړه (۱) جرسان (۲) الطارق (۳) والذيال (۴) قابس (۵) عمودان (۶) الفليق (۷) الصبح (۸) الضروج (۹) الضرع (۱۰) وثاب (۱۱) ذو الکتفين. يهودي وويل ای والله نومان خو يې داغه دي لکن ايمان يې رانه وړی.

**قَالَ يٰبُنَيَّ لَا تَقْصُصْ رُءْيَاكَ عَلٰٓى اِخْوَتِكَ فَيَكِيْدُوْا لَكَ كَيْدًا**

وويل اې زويه ته بيان مه کوه ددې خوب پر ورونو خپل، نو دوی به تاته يو عظيم چم وکړي يعني په پټه به ستا د قتل کوشش وکړي حسداً.

**يوه سه**: چي "بني" تصغير د ابن دی وجه د تصغير يې يا اصغر سن د يوسف دی. قال البغوي رحمه الله چي يوسف عليه السلام په دغه وخت کي د مذکور رؤيا د دوولسو کالو ؤ، او يا تصغير لپاره د شفقت دی.

**يوه سه**: چي حفص رحمه الله له قرأ سبعه وو دلته "بني" او په سورت صافات کي په زور د يا وايي او نور قرأ يې په کسره د يا وايي.

**يوه سه**: چي مراد له ورونو څخه هغه د مېرې زامن دي چي لس نفره وه، او بعض راويانو چي يوولس راوړي دي هغو دنيه هم حساب کړې ده لکن دا غلطه ده ولي دنيه خو ښځه وه او د دغو لسو ورڼو خور وه. کما في حواشي السعدي المفتي. او بنيامين هم نه دی پکښې حساب ولي چي هغه د راحيل زوی ؤ او د يوسف عليه السلام سکه ورور ؤ، نو د هغه د کيد بېره نه وه. نو صافي چي د کيد بېره پر وه لس نفره دي.

**پوښتنه**: دا خبره يعقوب عليه السلام ويوسف عليه السلام ته ولي وکړه؟

**ځواب**: يعقوب عليه السلام د يوسف عليه السلام له خوبه معلومه سوه چي خدای پاک به يوسف وه منصب ته ورسوي من النبوة والحکمة وشرف الدارين. نو له دې کبله

ویېرېدې پر حسد د ورڼو او اهلاک دده، نو د پټ ساتلو د خوب مطلب دا ؤ چي نبايد ورونه دده په جريمه کي د قتل د يوسف واقع نه سي او د يوسف په باره کي يې دا مطلب ؤ چي په سختيو کي د حسد د ورڼو واقع نه سي.

**سوال**: د یعقوب ﷺ خو دا یقین ؤ چي مدلول د یوسف ﷺ د خوب به خواه مخواه عالم وجود ته راځي، او خدای پاک مدلول ته د یوسف ﷺ د خوب تحقيق ورکوي او ورونه دده دا نه سي کولای چي دا رؤیا دي له منځه یوسي. او یوسف دي هلاک کړي، نو ولي يې یوسف ﷺ ته دا وويل چي "لاتقصص رؤياك آه"؟

**ځواب**: د یعقوب ﷺ دا طمع وه چي خوب چي پټ وساتل سي يعني ورونه يې په خبر نه سي نو دا رتبه عليا او منصب سامي به یوسف ته بېله مشاقه او سخت حالاتو ورسېږي.

**پوښتنه**: دا قول د یعقوب ﷺ "فيكيدوا لك كيداً" غيبت د ورڼو د یوسف نه دی؟

**ځواب**: لا ولي په دې وينا کي د یعقوب ﷺ ساتنه وه د لسو زامنو له ګناه څخه او د یوسف د ضرر محتمل څخه له جانبه د ورڼو.

**سوال**: تا دمخه د ضرر محتمل کسان صافي لس وګڼل او په آيت کي خو داسي راغلي دي "اني رئيت احد عشر كوكباً الآية"؟

**ځواب**: ما خو وويل چي د بنيامين له خوا بېره د ضرر نه وه ولي هغه سکه ورور ؤ، لکن په سجده کي د خوب بنيامين هم شامل ؤ. حاصل دا چي ساجدين يوولس کسان دي كما سيأتي في القرآن الكريم وقت تحقق السجدة او حاسدين لس وه فلا منافات.

**فائده**: پوه سه! چي رؤيا مصدر ده رئی په خوب کي يعني ما يقع في حالة النوم. او رؤية مصدر دی د رئی البصرية يعني د سترګو د ليدلو، والفرق بين المصدرين په تأنيث د رؤيا، النوم بالياً وتانيث مصدر الثاني بالتا مثال ددي قربت دی چي تقرب معنوي د خدای ﷻ وايي بالطاعة والاذكار مثلاً والقربى چي التقرب النسبي ته وايي.

**يوه سه**: چې رؤيا درې قسمه ده، (١) حديث النفس دی چې نائم په ویښه یو کار کوي په خوب کي هم په هغه کار اخته وي دا خوب تعبير نه لري نه سړی باید په خوشاله سي او نه په خوابدی. او دوه قسمه نور چې مسلم يې له ابي قتاده ﷺ څخه روايت کړی دی قال قال رسول الله ﷺ الرؤيا الصالحة من الله والرؤيا من الشيطان فمن رئ رؤيا فکره منها شيئ نو درې واره دې توکي پر چپه طرف او دده څخه دې پناه وغواړي له شر څخه د هغه خوب فانها لاتضره، او هيڅ چا ته دې هغه خوب نه وای، وان رئ رؤيا الحسنة نو دې په خوشاله سي (ولي دا د خدای ﷻ څخه دی کما جا في حديث آخر صحيح، او نه خوب دې نه وای مګر دوست ته، وقد ورد في الحديث الصحيح الرؤيا الصالحة جزء من ست واربعين جزء من النبوة.

**درويش وايي**: چې ددې عدد شپږ څلوېښت دی، سر دادی چې عليه الصلوة والسلام شپږ مياشتي تر نبوت دمخه صادقه خوبونه ليدل چې هغه به په ويښه لکه د سپېدو چاودل متحقق ګرځېدله کما في البخاري برواية عائشة ﷺ او زمانه د نبوت د عليه الصلوة والسلام درويشت کاله وه بالاجماع، نو شپږ مياشتي د درويشت کالو شپږ څلوېښتمه حصه کما لا يخفى.

**درويش وايي**: چې په تحقيق کي د ماهيت د خوب او تعبير د خوبو يو اسانه کار نه دی که څوک غواړي چې زه دې د دې خبرو په تفصيل پوه سم، نو تعبير المنام د عبد الغني النابلسي ﷺ او کتاب د رئيس المعتبرين علامه ابن سيرين ﷺ او کتاب د ابن شاهين ﷺ چې دا درې سره په يوه جلد کبير کي چهاپ سوي مطالعه کړي "ما لا بد منه" بعض ملايان د مبتدعانو چې وايي چې خوبونه ټول خيالات فاسده دي" د قرآن کريم او د احاديثو مبارکه وو څخه مخالف دي فلا يعبيا به.

إِنَّ الشَّيْطَٰنَ لِلْإِنسَٰنِ عَدُوٌّ مُّبِينٌ ⑤

په تحقيق سره شيطان لپاره د نوع د انسان دښمن دی ښکاره يعني خپل دښمني يې ښکاره کړې ده اذا خرج آدم وحوا بوسوسته وقوله هل ادلكم على شجرة

الخلد الآية او د آدم او حوا څخه يې کالي د نور وکښه "آيت کريمه" فطفقا يخصفان من ورقة الجنة الآية" او ابليس قسم کړی دی "کريمه" لاحتنکن ذريته الآية.

**بوه سه**: چي دا جمله مستانفه ده چي څه رنګه به ورونړه د يوسف ﷺ داسي کار وکړي چي د يوسف ﷺ په هلاک او اضرار کي به سعي وکړي حسدا سره د دې چي ورونړه د يوسف ﷺ خو د خاندان څخه د نبوة وه" فاجيب بان الشيطان يحمله على الحسد مع يوسف ﷺ والاضرار له بکل مايمکن لهم.

**مسئله**: اولاد د يعقوب ﷺ خو انبيا وه والانبيا معصومون عن الکبائر قبل النبوة وبعدها عن الصغائر والکبائر فکيف يتصور منهم الحسد الذي هو کبيرة وغير ذالک.

**درويش وايي**: چي ما يوه رساله لطيفه چي پر هغي د علماؤ د قندهار او د مشائخو د هرات امضاګاني هم سته "په باب کي د عصمت د انبياؤ تصنيف کړي ده او معتبرو فتاوی وو څخه د فقهي او د احاديث صحيحه وو څخه هم نقل په کښي کړی دی او ډيره زمانه دمخه چهاپ سوې ده چي په نامه د (کشف الغطا عن عصمت الانبيا) ده، او شايد چي اوس به هم په بعض کتابخانو کي د کوټي موجوده وي.

والجواب: سيد محمود آلوسي په روح المعاني ص ۱۸۲ _ ۱۸۳ کي وايي والظاهر ان الفهم (يعني اخوة يوسف ﷺ کانوا بحيث يکون للشيطان عليهم سبيل) يعني لکه قابيل چي آدم ﷺ زوی وو او خپل ورور هابيل يې د شهوت پرستي پر بنياد قتل کړی) روح المعاني ويلي دي ويؤيد هذا انهم لم يکونوا انبيا (حتى لايکون للشيطان عليهم سبيل ويکونوا محجوبين بحجاب العصمة) ثم قال والمسئلة (يعني مسئلة د نبوة د انبيا يعقوب) خلافية فالذي عليه الاکثرون سلفا وخلفا انهم لم يکونوا انبيا اصلا (يعني لا في الحال ولا في الازمنة اللاحقه) فاما السلف رحمهم الله فلم ينقل من احد من الصحابة رضي الله عنهم منهم انه قال بنبوتهم" ولا يحفظ من التابعين ايضا او په اتباع التابعين د ابن زيد څخه دا نقل سوي دي چي د اولاده د يعقوب بنيان بولل روح المعاني وايي وتابعه شرذمة" او متابعت کړی د ابن لږو کسانو" واما الخلف رحمهم الله هغه څو فرقي دي بعض په قول د ابن زيد قائله

دی لکه بغوي رحمه الله لوی همکار دی" او هم مذهب دي" دا قدر يې ويلي دي لکن په نقل د قيل ان انبائه كان كلهم انبيأ وروسته په قيل دا راوړی وقيل المراد بهم انبيأ بني اسرائيل الذين كانوا من ذرية يعقوب عليه السلام.

**درويش وايي**: چي کـه مظهري ته يـو منقول شي د صحابه رضي الله عنهم وو او يا د تابعينو ورته معلوم وای حتماً به يې را نقل کړی وای.

**پوه سه**: چي امام قرطبي رحمه الله په خپل تفسير کي ډېره مبالغة کړې ده په رد کي د قول د ابن زيد" او ابن کثير يې په خپل تفسير کي هم ډېر سخت رد کړی دی او بعض مفسرين صرف دا دوه قوله يعني نبوة اولاد يعقوب او عدم نبوتهم رانقل کړی دی بلا ترجيح کسبط ابن الجوزي او بعض مفسرينو دا مسئله نه ده راوړې بالکلية لکن د اشاراتو څخه داسي فهمېږي چي اولاد د يعقوب نبيان نه وه ولي چي اسباط د لفظ چي په هغه آيت کي راغلی دی "قل آمنا بالله وما انزل علينا وما انزل على ابراهيم واسمعيل واسحق ويعقوب والاسباط الآية" په اولاد د يعقوب عليه السلام نه دی کړی بلکې داسي يې ويلي دي بعض نبي من بني اسرائيل يعني چي وروسته په بني اسرائيلو کي نبيان پيدا سوي دي، دا ؤ تفسير واحدي او د ابو الليث السمرقندي خبره په خپل تفسير کي، او بعض مفسرين هيڅ بحث د نبوت او د نه نبوت ددوی کړی دی لکن تفسير د "اسباط" يې په اولاد د يعقوب کړی دی، نو خلګو له دې تفسير څخه دا وفهمول چي دا قول په نبوت ددوی کما يفهم من الآية المتلوة آنفاً، لکن روح المعاني وايي چي لفظ د اسباط صريح نه دی په اولاد کي بلکې مراد ځني ذريه د يعقوب عليه السلام ده الذين بعث الله فيهم انبيأ بني اسرائيل، ونقل صاحب روح المعاني حاصل قول ابن تميه في رسالة خاصة له في هذه المسئلة وهذا قوله "الذي يدلي عليه القرآن واللغة والاعتبار ان اخوة يوسف ليسوا بانبيأ وليس في القرآن ولا عن النبي صلى الله عليه وسلم ولا عن احد في اصحابه رضي الله عنهم خبر بان الله تعالى بنائهم وانما احتج من قال ذالک ای نبوتهم بقوله تعالى في آيتي البقرة والنسأ والاسباط كماهر وفسر ذالک القائل الاسباط باولاد يعقوب والصواب انه ليس المراد بهم اولاد لصلبه بل ذريته كما يقال لهم بنو

اسرائيل وكما يقال لسائر الناس بنو آدم. ولي ټول خلګ خو زامن د ادم ﷺ نه دي بلکې ذريه يې ده. ثم قال فتخصيص الاسباط في الآية بنبيه عليه السلام لصلبه غلط لايدل عليه اللفظ ولا المعنى ومن ادعاه فقد غلط واخطأ خطأ بيناً الى اخير قول ابن تيميه الذي نقله صاحب روح المعاني.

**درويش وايي:** چې په قول د روح المعاني له زامنو څخه د يعقوب قرار ذيل کبيره ګنهونه صادر سوي وه (۱) حسد د يوسف ﷺ سره په سبب د محبت د پلار دده سره تر نورو زامنو ډېر (۲) عقوق د يعقوب ﷺ چې په حيله يې يوسف څني جلا کړی حتی چې په اوږدو کې د فراق د يوسف يعقوب عليه السلام په دوارو سترګو ړوند سو کما سيئاتي (۳) دوی چې يوسف ﷺ وصحرا ته ويستی قسم وهل پر مخ غورځول الى غيرها ده ته ورسول (۴) بعض ورونو وويل چې يوسف په قتل کړو لکن په دوی کې هغه مهربانه ورور وويل چې تاسي يوسف مه وژنئ بلکې په غيابة الجب کې چې په هغه دښت کې يو ژور څاه ؤ واچوئ. نو په ملا کې يې رسی وروا چول او قميص يې څني وکښی تر يو ځايه چې يې ورشوه کړی رسی يې پرې کړه يوسف ﷺ چې د څاه بيخ ته ور رسېدی جبرئيل ﷺ ټينګ کړی په څاه کې تر اوبو يوه لوړه ډبره وه پر هغه يې کښېنوی او هغه قميص چې د ورېښمو ؤ يعقوب ﷺ د تعويذ په شان د يوسف ﷺ په غاړه ورځړولی ؤ چې هغه قميص د ابراهيم ﷺ ؤ چې نمرود دی اور ته ورغورځاوه قميص يې څني کښلی ؤ. نو جبرئيل دغه قميص له جنته ورته راوړی ؤ په ابراهيم ﷺ يې اغوستی ؤ چې هغه قميص لاس پر لاس يعقوب ته په ميراث پاته سوی ؤ او يعقوب ﷺ د يوسف ﷺ په غاړه په مثال د تعويذ ځړولی و.

(۵) مابنام چې کور ته راغله او هغه قميص يې د پسه په وينو لړلی ؤ او د دروا غو ژړا يې کوله پلار ته يې درواغ وويل چې موږ سات تېراوه يوسف موږ کالو ته کښېنولی ؤ فاكله الذئب كما سيئاتي في هذه السورة (۶) دوهمه ورځ دوی هغه څاه ته ورغله چې د يوسف ﷺ د ژوند او مرګ معلومات څان ته حاصل کړي، نو يې ور ناري کړې يوسف؟ د يوسف ﷺ دا خيال سو چې ماله

ځاه ځخه کاږي نو بيې دوی ته جواب ورکړی چي ها! دوی يوه لويه ډبره ځاه ته ور
وغورځول چي يوسف په قتل کړي. نو خدای ﷻ ځني وساتی. او دوی چي
وروسته هر څه ناري يوسف ﷺ ته وکړی ده جواب نه ورکاوه له بېرې، نو ددوی
دا خيال سو چي يوسف يا قتل سو يا تېپي سو ځني ولاړه. دريم ورځ بيا ځاه ته
راغله که ګوري چي يوه قافله چي مصر ته روانه وه د ځاه پر شاوخوا يې اړولي وه
نو هغه د اوبو د راکښلو لپاره ځاه ته ورغلي وه سولاغه چي يې ځاه ته ورشوه
کړ، يوسف ﷺ په سولاغه کي کښېنستی او په مرانديې پوري يې لاسونه ټينګ
کړه سولاغه چي د ځاه خولې ته راغله يوسف ماه تابان ځلېدی. سولاغه
کښونکي ناري کړې هذا غلام دوی چي ورغله يوسف يې ژوندی وليدی، نو يې
په عبري ژبه ورته وويل چي فهم کوه چي حال ونه وايه. نو قافلې والاوو ته يې
وويل چي دا زموږ مريې دی چي څو واره زموږ څخه تښتېدلی دی. موږ يې
خرڅوو. نو هغو ځني رانيوی، نو ورونو يوسف ﷺ پر کافرانو خرڅ کړی. دا
شپږ ګناهوي هره يوه کبيره ګناه وه. نو خبره اوس داده چي انبياء عليهم السلام په نيز د
اکثرين فقهاء، محدثينو او مفسرينو له کبيره ګنهو څخه قبل النبوة وبعدها
معصوم دي. البته په صغائرو کي قبل النبوة اختلاف سته، نو که اولاد د يعقوب
حالاً يا مآلاً انبياء واى. نو دا کبائر ګنهونه څرنګه ددوی څخه صادر سوه. نو عدم
النبوت ددوی په برهاني توګه ثابت سو. هذا ما عقد عليه صاحب روح المعاني
والامام القرطبي. او بل دليل د عدم نبوت ددوی دادی چي خدای ﷻ چي انبياء د
ذرية ابرهيم ذکر کړي په قرآن کريم کي داسي يې ويلي دي ومن ذريته داؤد
وسليمان الى اخير الآيات فذکر يوسف ومن معه ولم يذکر اخوة يوسف ﷺ نو
که دوی نبيان واى نو دوی به يې هم ذکر کړي واى لکه يوسف ﷺ چي بې ذکر
کړی. او بل دليل د عدم نبوت ددوی دادی چي خدای پاک د انبياء عليهم السلام په
قرآن کريم کي داسي محامد او ثنا ذکر کړې ده چي مناسب د حال سره د انبياء وي
که څه هم قبل النبوة وي کما لا يخفى على ماطالع القرآن الكريم. او په حديث
صحيح کي راغلي دي اکرم الناس يوسف بن يعقوب بن اسحاق بن ابراهيم. نو

که چېري ورونه د يوسف ﷺ انبيا واى لشاركوه في هذا الكرم، او سره ددې چې خداى پاک چې په دې سورت کې قصه د ورونو د يوسف ذکر کړې ده وما فعلوا باخيهم وذکر وقت اجتماعهم بيوسف في مصر وذکر اعترافهم بالخطيئة وطلبهم الاستغفار من ابيهم کما سيئاتي مفصلاً في هذه السورة ولم يذکر من فضلهم ماينا سب النبوة وان کان قبل النبوة فعلم انهم ليسوا بانبياً . او بل دليل د عدم نبوت ددوى دادى چې خداى پاک نه دي ذکر کړي د هيڅ چا د انبيا عليهم السلام حال نه قبل النبوة او نه بعد النبوة چې هغه دي دومره عظيمه گنهونه کړي وي لکه اولاد د يعقوب ﷺ چې وکړه کمامر تفصيلها من عقوق الوالد ، وقطيعة الرحم وارقاق المسلم يعني يوسف ﷺ وبيعه على کفار مصر والکذب البين للوالد اکله الذئب ولتجار مصر من ان هذا غلامنا.

**تفريع**: نو هغه عذر د بعضې علماؤ لکه بغوي او مظهري چې وايي چې دا کارونه او جرائم چې دوى کړي وه قبل النبوة وه فلا يمنع ذالک النبوة بعدها کذا قال روح المعاني في صفحه ۱۸۴.

**درويش وايي**: چې صاحب د روح البيان هغه محقق مفسر دی چې دا مسئله يې ډېره په تحقيق سره څرګندې ده، درويش لـه دې تحقيق څخه چې عدم نبوت ددوى ثابت سو او پر دې خبره اجماع د ټولو مجتهدينو ده چې نوراني پرده د عصمت عن الذنوب يوازې او يوازې پر انبيا عليهم السلام اواره ده، نور مؤمنان که څه هم اوليا او صلحا وي له دې عصمت څخه برخه نه لري يعني د شيطان د غوا لار ورته خلاصه دهو . يعبد صدور الذنب عن الولي لکن الفرق بين الولي والعامي في صدور الذنب ان الولي اذا صدر عنه الذنب يبادر الى العذر والتوبة، وقد ورد في الحديث الصحيح ان التائب من الذنب کمن لا ذنب له، واما العاصي فيقول سوف اتوب سوف اتوب وقد يموت في ذالک بلا توبة اعاذنا الله من مثل هذه المقالة والموت بلا توبة بفضله وکرمه.

**پوښتنه**: ډېر علما په شک کې دي خوب د يوسف ﷺ اچولي دي "اني رئيت احد عشر کوکبا" دوى رايي که ورونه د يوسف ﷺ نبيان نه واى نو په سورت

کي د ستورو څرنګه په عالم مثال کي ښکاره کېدل؟

**ځواب:** انهم كانوا مومنين صالحين لكن الشيطان اوقعهم في ورطة الحسد ففعلوا مافعلوا، والمومن الصالح قبل الصدور الذنب عنه لايبعد ظهوره في صورة الكوكب في عالم المثال وكان رؤيا يوسف ﷺ قبل صدور الذنب عنهم، كما يدل عليه القصة. او دا احتمال هم سته چي ظهور ددوی په صورت د ستورو په عالم مثال کي دي کرامة النسب د يعقوب ﷺ وي.

**پوښتنه:** د اولياً کرامو رحمهم الله څخه کبيره ګناه ګاه صادرېږي؟

**ځواب:** نعم! د رسول الله ﷺ اصحاب رضي الله عنهم چي په اتفاق اولياً د امت مرحومه وه على تفاوت مراتبهم كيف صدر عن ماعز الاسلمي رضي الله عنه باعترافه بالزنى والتوبة النصوح عنه وتسليم نفسه الى الرجم كما في البخاري وغيره من الكتب الصحاح. او داغه رنګه په غزاً کي د تبوک چي درې کسه د اصحاب کرامو رضي الله عنهم له دي غزاً څخه بلا عذر پاته سوه او په نتيجه کي عليه الصلوٰة والسلام ټوله صحابه ددوی له خبرو او سلام څخه پېنځوس ورځي بند کړي وه اخير الامر خدای پاک ددوی توبه قبوله کړه او دا آيت نازل کړل سو "وعلى الثلثة الذين خلفوا الآية" فافهم.

**درويش وايي:** چي خبري ډېري طولاني سوې لپاره د تحقيق د مسئلي د اولاد د يعقوب ﷺ چي ډېر مختلف فيها مسئله وه، اوس بيرته د قرآن کريم د تفسير پر لور.

## وَكَذٰلِكَ يَجْتَبِيْكَ رَبُّكَ وَيُعَلِّمُكَ مِنْ تَأْوِيْلِ الْاَحَادِيْثِ

يعني لکه چي ته مختاره کړې په دغه ښايسته خوب سره چي دلالت صريح ستا پر فضل او کمال باندي تابه مختاره کړي رب ستا للنبوة والملك والامور العظام، والاجتبا من جبت الشئ اذا اخلصته لنفسك يعني يظهر الله مصداق تلك الرؤيا في عالم الشهادة كما سيأتي في القرآن الكريم. او تاته به وښيي يعني خدای پاک تأويل يعني تعبير د خبرو يعني خوبو لان الرؤيا ان كانت من جانب الملك كانت صادقة وان كانت من قبل الشيطان فهي كاذبة.

**پوښتنه:** تعبیر ته د خوب یې ولې تعبیر وایه؟

**ځواب:** لان التعبیر ما یؤل الیه امر الرؤیا لان التعبیر هو المراد من الرؤیا.

**درویش وایي:** چې صاحب د روح البیان وایي چې ویعلمک آه کلام مبتدأ دی یعني داخل په حکم کې د تشبیه نه دی نو مبتدأ ورسره مقدر ده یعني وهو یعلمک من آه لانه یشبه الاجتبا بالاجتبا والتعلیم غیر الاجتبا. او مظهري وایي چې ظاهره داده چې یعلمک آه او ویتم نعمته آه عطف دی پر "یجتبیک آه" باندې لان تعلیم التأویلات واتمام النعمة من انواع الاجتبا فهو من عطف الخاص علی العام لپاره د اهتمام په امر د خاص.

**درویش وایي:** چې صاحب د روح المعاني په دې عطف کې اوږدې خبرې کړې دي او دواړه قولونه یې رانقل کړي دي ولا فائدة في نقله سوی القا الشکوک والشبهات في قلوب المتعلمین.

## وَيُتِمُّ نِعْمَتَهُۥ عَلَيْكَ وَعَلَىٰٓ ءَالِ يَعْقُوبَ

"ویتم نعمة علیک" یعني بالنبوة والملک "وعلی آل یعقوب" المراد بهم انبیا بني اسرائیل من ذریة یعقوب ﷺ لا اولاده وقد سبق تحقیق ذالک بما لا مزید علیه قریباً.

## كَمَآ أَتَمَّهَا عَلَىٰٓ أَبَوَيْكَ مِن قَبْلُ إِبْرَٰهِيمَ وَإِسْحَٰقَ

"کما اتمها" ای النعمة "علی ابویک" یعني جد د یوسف چې اسحاق دی او پلار د جد دده چې ابراهیم علی نبینا وعلیهم السلام دی "من قبل" دمخه تر اتمام پر تا اې یوسف "ابراهیم واسحق" عطف بیان دی د ابویک وقدم ابراهیم علی اسحاق تعظیماً لشانه.

## إِنَّ رَبَّكَ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ۝٦

په تحقیق ستا خدای ښه خبر دی یعني بمن یستحق الاجتبا واتمام النعمة علی اهلها او په هر کار کې حکمت لري بې فائدې کار نه کوي.

لَقَدْ كَانَ فِي يُوسُفَ وَإِخْوَتِهِ آيَاتٌ لِلسَّائِلِينَ ۝

**پوه سه:** چي لام موطئـه د قسم محذوف دی ای والله پـه تحقيق وه پـه قصـه
كي د يوسف او ورڼو دده يعني هغه ورونه دده چي په مور نه وه د يوسف ﷺ سره
شريكان چي د هغو تعداد لس و چي شپږ له هغو څخه له بطنه د ليا بنت ليان وه
چي د يعقوب ﷺ د ماما لور وه كما ذكرنا من قبل، او د ليا له نس څخه يوه لور
وه چي دنيه نومېدله. او څلور زامن د دوو مينځيانو وه چي يوه زلفه نومېدله
ددې زامن دان او تفتان وه او بله مينځه يلهه نومېدله چي ددې زامن جاد او اشر
نومېدل كما ذكرنا. كذا قال البغوي. بغوي رحمه الله وايي چي ليا چي وفات سوه
يعقوب ﷺ د هغې خور راحيل په نكاح كړه چي له هغې څخه يوسف او بنيامين
پيدا سوه، نو اولاد د يعقوب ﷺ ټوله دوولس نفره سوه. او قاضي بيضاوي
خلافاً للبغوي وايي چي يعقوب ﷺ دواړې خوندې په يوه وار سره جمع كړې
وې. او بيضاوي وايي چي جمع الاختين في النكاح روا وه دده په دين كي والله
اعلم بالصواب واليـه المرجع والمآب "آيت للسآئلين" يعني آيات عظيمـه.
فالتنوين للتعظيم والجمعيـة للتذكير يعني د پر لوی علامات د قـدرت او
متعددي علامې د قدرت الهي دي چي مشرانو اولادو د يعقوب ﷺ اذلال بلكې
وه قتل ته دده قصد وكړی وفعلوا مافعلوا كما سيئاتي في هذه السورة، په
مقتضی د آيت كريمه "وتعز من تشا وتذل من تشا بيدك الخير" خدای پاك
يوسف ﷺ ته نبوت وركړی سره د سلطنته چي صدر اعظم د مصر وگرځېدی او
ورڼه دده يې منقادين مطيعين خاضعين ورته راوستل وهذا من اجل الدلائل
على قدرته الباهرة د هغه كسانو لپاره چي سوال د قصه يوسف يې كاوه، په
تفسير حسيني كي وايي: آورده اند كه چون يوسف خواب مذكور به پدر
بزرگوار خود گفت ويعقوب ﷺ بكتمان آن خواب يوسف را وصيت نمود
وباجتبا واتمام نعمت يوسف را مژده داد، بعض از زنان برادران او آن گفت
وشنيد يعقوب ويوسف عليهما السلام شنيدند ووقت شام كه برادران بخانه آمدند
صورت حال را باز نمودند، ايشانرا عرق حسد بحركت آوردند بتدبير درمقابل
تقدير الهي مشغول شدند، و يهودا، روبيل و شمعون گفتند كه يوسف تنها

بسجده مايان اكتفا ننمود بلكه بل پدر ومادر را هم بسجده آوردند وبتدبير مشغول شدند كما قال الله تعالى.

**إِذْ قَالُوا لَيُوسُفُ وَأَخُوهُ أَحَبُّ إِلَىٰ أَبِينَا مِنَّا وَنَحْنُ عُصْبَةٌ**

دوی وويل والله، نو لام موطئه د قسم چي يوسف او ده سكه ورور بنيامين، گران دي دواړه زموږ پر پلار تر موږ.

**سوال**: يوسف ﷺ او ده ورور خو دوه نفره دي، نو ولي يې احب مفرد راوړی؟

**خواب**: په نحو کي وايي چي اسم تفضيل چي دلته احب دی) چي مستعمل په من سره وي (لكه دلته په منا كي) مفرد، تثنيه او جمع مذكر او مونث پكښي برابر دي "ونحن عصبة" او حال دادی چي موږ يو جماعت لس كسه، قال الفرأ العصبة هي العشرة فما زاد، ددې مقصود دا ؤ چي موږ حقدار يو په محبت سره تر يوسف او ورور ده ولي چي موږ په قوم كي اهل الحل والعقد يو او دوی كشران هلكان دي.

**إِنَّ أَبَانَا لَفِي ضَلَالٍ مُبِينٍ**

په تحقيق زموږ پلار په ضلال مبين كي دی.

**درويش وايي**: چي مراد ددوی ضلال د پلار له دين څخه نه دی ولي كه مراد ددوی ضلال مذكور وي نو خو دوی په دې نسبت سره كافران كېدله، بلكې مراد ددوی خطأ مبين ده د يعقوب ﷺ ده په دنياوي چارو كي، ولي چي موږ د پسو رمه وربيايو او د دښمن ومخ ته ولاړ يو فنحن اولی بالمحبة من الطفلين يوسف واخيه بنيامين.

**اقْتُلُوا يُوسُفَ**

نو مړ كړئ يوسف.

**درويش وايي**: چي صاحب د روح البيان وايي چي حسد خو ام الكبائر دی او انبيأ خو معصوم له كبائرو څخه وي، وروسته يې څواب وركړی دی لكن دا خبره د روح البيان بنا پر دې ده چي اولاد د يعقوب ﷺ وروسته نبيان گرځېدلي دي او موږ ددې مسئلې پوره، تفصيل او په زړه پوري تحقيق وكړی چي دغه اولاد د

يعقوب ﷺ نه په وخت کي د حسد انبيا وه او نه وروسته فتذکر هذاک الله.
وهب بن منبه وايي چي د قتل مشوره شمعون رحمه الله ورکړه. او کعب رضي الله عنه وايي چي دان ورکړه او مقاتل رحمه الله وايي چي روبيل ورکړه.
**پوښتنه:** د اقتلوا يوسف مشوره خو پر هر صورت يو ورور ورکړې وه. نو د اقتلوا نسبت ټولو ته څرنګه وکړل سو؟
**ځواب:** قاتل که څه هم يو ؤ لکن هغه نور په راضي وه الا من قال لاتقتلوا يوسف، نو اسناد ټولو ته په اعتبار ددوی صحيح دی مجازاً نحو بنو فلان قتلوا وان کان القاتل واحداً منهم لرضا الکل بقتله.

## اَوِاطۡرَحُوۡهُ اَرۡضًا يَّخۡلُ لَكُمۡ وَجۡهُ اَبِيۡكُمۡ

او يا يې وغورځوئ په يوه نابلده ځمکه کي چي له آبادی څخه لېري وي نو ارضا چي يې نکره راوړی او مبهم يې راوړی معنا يې هم د هغه لېري والي له آبادی څخه. نو ځکه يې ارضاً منصوب کړی لکه ظروف مبهمه يعني قدام وخلف ويمين وشمال الی غير ذالک "يخل لکم" يعني که يې قتل کړئ او که طرح خالي به سي يعني صاف به سي، المراد بالوجه التوجه يعني توجه د پلار يعقوب ﷺ به وتاسي ته راوګرځي او بل چا ته به التفات نه کوي او شغل د زړه به يې له محبت څخه د يوسف خلاص وګرځي ولا ينازعکم في محبة احد "يخل لکم" جواب د امر دی.

## وَتَكُوۡنُوۡا مِنۡۢ بَعۡدِهٖ قَوۡمًا صٰلِحِيۡنَ ۝

عطف دی پر "يخل" او تاسي به وګرځئ وروسته تر قتل د يوسف يا تر طرح د هغه له قوم صالحينو څخه معنی تائبين الی الله تعالی من جنايتکم. او خدای پاک به عفوه راته وکړي، او يا معنا داده چي د پلار سره به صلح کاذبانه وکړي کما قالوا بعد القا يوسف في الجب اکله الذئب.

## قَالَ قَآئِلٌ مِّنۡهُمۡ لَا تَقۡتُلُوۡا يُوۡسُفَ وَاَلۡقُوۡهُ فِيۡ غَيٰبَتِ الۡجُبِّ

وويل يو قائل له دوی څخه چي تاسي مه وژنئ يوسف يعني قتل خو ګناه کبيره ده. قائل ددي قول بعض وايي يهودا ؤ. او بعض اهل تاريخ لکه قتاده رحمه الله وايي چي روبيل ؤ، او بغوي رحمه الله اول روايت صحيح بللی دی والعلم

عند الله "وايي چاوه وبېخ ته د ژور څاه (كوهي)"

**پوه سه:** چي غيابة هر هغه شي ته وايي چي ستا له ستر گو څخه شی پټ کړي، نو بېخ ته د څاه په دې غيابة وايي چي دی پټوي له ستر گو څخه د ناظرينو شي چي هوره وي، په قاموس کي وايي چي جب نفس څاه ته وايي او هغه څاه ته هم وايي چي ډېري اوبه پکښې وي او بېخ يې لېري وي يعني ژور وي.

يَلْتَقِطْهُ بَعْضُ السَّيَّارَةِ إِنْ كُنْتُمْ فٰعِلِيْنَ ﴿۱۰﴾

دی به واخلي بعض مسافران چي پر دې څاه تېرېږي والالتفات في اللغة اخذ الشيئ مما لا يحس به. که تاسي ياست چي زما په مشوره کار کوئ، نو داغسي وکړئ او يا معنی داده چي که تاسي هغه کار کوئ چي يوسف او پلار سره جلا کوئ، نو دغسي وکړئ د يهودا غرض دا وو چي بېله مرگه به د ده څخه خلاص سو او په عين حال يهودا هغه مشفق د ورنړو وو پر يوسف چي د قتل يې په دې ډول دی وساتی.

**فائده:** هغه وخت چي د گردو ورنړو اتفاق پر رايه د يهودا وسو، يعني چي په غيابت الجب کي به يې واچوو، نو ټوله راغله وپلار يعقوب ته کښېنستل او داسي ورته وويل.

قَالُوْا يٰۤاَبَانَا مَا لَكَ لَا تَاْمَنَّا عَلٰى يُوْسُفَ وَاِنَّا لَهٗ لَنٰصِحُوْنَ ﴿۱۱﴾

ای زموږ پلاره څه سبب دی چي ته موږ امينان نه بولې يعني زموږ څخه ولي بېرېږې، پر يوسف باندي او په تحقيق موږ د ده خير خواه يو" او د ده مصلحت غواړو او خوشحالي غرض يې داوو چي پلاره د گمان څخه د حسد پر دوی او بدگماني واړه وي.

اَرْسِلْهُ مَعَنَا غَدًا يَّرْتَعْ وَيَلْعَبْ وَاِنَّا لَهٗ لَحٰفِظُوْنَ ﴿۱۲﴾

واستوه يوسف زموږ سره صباح يعني الى الصحرا يعني چي وخت د پسرلي دی صحرا او دښتونه گل او گلزار دي، نو د يوسف څخه به د کور د غت لېري سي او په صحرا کي به ډېر خوشاله سي، څر به وکړي يعني د صحرا بعض شيان به وخوري لکه تاتکي "غوی ناري" پکي پا پکي" او پوڅکی " او دی په صحرا کي



Scanned by CamScanner

سات تیر کړي په غشي وشتلو سره او د صحرا د هوسيو او سويانو يا مرغانو ښکار به وکړي، او موږ د ده ساتونکي يو د هر ضرر او مکروه څخه... بيت:

حريفان در بهار عيش خندان ...... من اندر کنج غم چون درد مندان

راوي وايي ورڼو ديوسف دی د صحرا وسيل ته راغب او رازي وګرځاوه

موسم ګل دو سه روز است غنيمت دانيد

که ديګر نوبت تاراج خزان خواهد بود

**درويش وايي**: چي په دې آيت دليل دی د دې چي صحرا ته وتل د سيل او ساتيري دپاره روا دی چي د کور دغت په دفعه کړي لکن په شرط د دې چي محرمات د شرع شريفي په ميله کي نه وي لکه د زمان حاضر دځوانانو په ميله کي رباب "ډول" سرنا" او شوقيان" ميلي ته بيول او نور منهيات موجود دي.

قَالَ إِنِّي لَيَحْزُنُنِي أَنْ تَذْهَبُوا بِهِ وَأَخَافُ أَنْ يَأْكُلَهُ الذِّئْبُ

يعقوب ﷺ وزامنو ته وويل په باره کي د بيولو صحرا ته چي په تحقيق ما په غم کي اچوي دا خبره چي تاسي بيا ياست يوسف يعني اوله خبره خو داده چي د يوسف فراق د ځان څخه نسم برداشتولای او دوهمه خبره دا ده، او زه بيريږم پر دې چي يوسف به وخوري ليوه، ولي چي په کنعان کي ليوان ډير وه او بغوي رحمه الله وايي چي يعقوب په خوب کي ليدلي وه چي يو ليوه پر يوسف حمله وکړي، نو د هغه خوب په سبب دی د ليوه څخه پر يوسف ﷺ بيريدی.

**پوه سه**: چي حزن دلته په دې معنا دی "الم القلب بفراق المحبوب وعدم الصبر عنه.

**درويش وايي**: چي د مظهري رحمه الله اکثر تفسير د بغوي رحمه الله څخه منقول دی لکن دلته يې داسي ويلي دي "وهذا عندي ليس بشيئ" لان رؤيا الانبيا وحي قطعي الوجود ولو قد رئ ذالک لتحقق البتة ولا ينفعه الحذر ولم يتحقق ذالک يعني يوسف خو ليوه نه وخوړی بلکه ورڼو وڅا ته واچاوه" والجواب عنه چي غايت محبة د يوسف ﷺ د يعقوب ﷺ زړه د دې څخه غافله کړی چي رؤيا الانبياً وحي وجا ان حبک الشيئ يعمي ويعم" فلا غرو في توهم يعقوب ﷺ ذالک.

**فائده**: د نحو او معاني وو په کتابو کي وايي چي الف ولام څلور قسمه دی (۱) الف ولام استغراقي نحو "ان الانسان لفي خسر الا الذين امنوا الآية" ولي

که الف ولام د الانسان د استغراق نسي، نو استثنا متصل د الا الذين" نه ده ځندي صحيح كما لا يخفى على عارف العلوم العربية (۲) او بل الف ولام د پاره د جنس نحو الحمد لله يعني جنس الحمد على مذهب من قال ان اللام في للجنس" او نحو الانسان هو الحيوان الناطق لان التعريف للجنس وبالجنس لا للفرد وبالافراد (۳) او بل الف ولام دی د عهد خارجي نحو جائني رجل فقال ذالک الرجل (۴) او بل الف ولام د عهدي ذهني دی هغه په هغه ځای کي دی چي هوري استغراق او جنس نه صحيح کېږي او معهود خارجي په مابين کي هم نه وي نحو قول القائل لغيره ادخل السوق فاشترى اللحم" مثلا فاللام في السوق واللحم کي نه استغراق پکښي صحيح کېږي يعني چي هر بازار ته ولاړ سه او ټولي غوښي راوړه كما لا يخفى او نه جنس په کښي ولي چي په ماهيت کي د بازار ماهية د غوښو نه خرڅېږي فالمعنى ه ادخل سوقا من الاسواق واشترى لحماً من اللحوم" او لام عهد خارجي خو نسته ولي د متكلم او مخاطب تر مابين سوق معين او لحم معين نسته وهذا هو معنى العهد الذهني" فاللام في الذئب للعهد الذهني اى ياكله الذئب من الذياب لان ارادة كل الذياب او جنس الذئب غير ممكن او معهود خارجي په منځ کي د يعقوب او زامنو هم نسته.

**درویش وايي:** چي دا وه معنی د عهد ذهني، او بې علمه طالبان یا امامان وايي چي عهد ذهني دادی چي د متكلم په ذهن معهود او معلوم شی وي او مخاطب نه وي په خبر نو د آيت ترجمه دغه بېعلمه کسان داسي کوي چي يو شين لېوه ؤ آدم خور په صحرا کي د کنعان، نو د يعقوب ﷺ هغه لېوه مراد ؤ او زامن يې نه په پوهېدل وهذا كذب بواح. قالوا البلا من المنطق.

**پوه سه:** چي د يعقوب ﷺ زامن په دې حيران وه چي موږ چي يوسف قتل کړو يا يې په جب کي واچوو، نو پلار ته به څه بهانه کوو، نو چي يعقوب ﷺ ورته وويل اني اخاف ان ياكله الذئب، نو دوی چي يوسف ﷺ وجب ته واچاوه پلار ته يې وويل چي يوسف اكله الذئب.

وَأَنتُمْ عَنْهُ غَٰفِلُونَ ۝

او تاسي به له يوسف څخه غافله یاست، يعقوب ﷺ مطلب دا ؤ چي زه پر دي

نه بهر بهرم چي تاسي وه يوسف ته يو چم وكړئ بلكې زه لـه دې څخه بهر بهرم چي يوسف ته به ضرر ور ورسيږي په سبب د غفلت ستاسي لـه ده څخه، يعني تاسي به رتع او لعب کوئ اخته به ياست او يوسف به مو يو ځاى کښېنولى وي لېوه به يې وخوري. او ورنو چي يوسف ﷺ جب ته واچاوه عيناً دغه خبره يې پلار ته وكړه چي مابنام راغلـه كما سيئاتي، وتركنا يوسف عند متاعنا فأكله الذئب الآية" وهذا ايضاً من بلايا المنطق فتأمل في هذا المبحث، قال المولى الجامي قدس سره:

ازآن ترسم کز و غافل نشنيد .......... زغفلت صورت حالش نبينيد
درين ديرينه دشت محنت انگر .......... کهن گرگی برو دندان کند تيز

قَالُوا لَئِنْ أَكَلَهُ الذِّئْبُ وَنَحْنُ عُصْبَةٌ إِنَّا إِذًا لَّخٰسِرُونَ ﴿١٤﴾

زامنو يې ورتـه وويـل کـه يوسف لېـوه وخوړی او حال دادی چي مـوږ يـو جماعت قويه يو چي هر يو پر مقابله د لېوه قادر يو او څرنګه کېدای سي چي موږ ټولـه د يوسف لـه حالـه غافلـه سو، حاصل دا چي يعقوب ﷺ چي ډېر الحاح او حرص پر طلب د يوسف ددوی سره وه مېلې ته د صحرا او په عين حال کي مېـل د يوسف ومېلې ته د صحرا هم محسوس کړی رضي طوعاً وكرهاً بالقضا الالهي.

**فائده**: په روايت صحيحه ثابته ده چي څه وخت چي نمرود ابراهيم ﷺ اور تـه اچاوه قميص يې ختې وکښی او لڅ يې وه اور تـه واچـاوه، نو جبرئيـل ﷺ نـازل ورېښمين قميص لـه جنته راوړی او پـه ابراهيم ﷺ يې واغوستی او هغـه قميص ابراهيم ﷺ واسحاق ﷺ تـه ورکړی ؤ او اسحاق وه يعقوب تـه او يعقوب هغـه قميص د تعويذ پر ډول پوښ کړی ؤ او د يوسف ﷺ پـه غاړه کښې يې اچولی ؤ. حسين كاشفي پـه تفسير حسيني كي وايي" يعقوب ﷺ بمشايعه فرزندان تا شجرة الوداع كه بر دروازه كنعان بوده بيرون آمد ويوسف را دركنار گرفته گريه كنان وداع نمود، يوسف ﷺ گفت اى پدر سبب گريه تو چيست، يعقوب گفت اى يوسف ازين رفتن تو رائحه اندوه بزرگ بمشام دل من ميرسد نميدانم كه سر انجام كار بكجا خواهد رسيد، آرى يعقوب گفت اى پسر اى نور ديده پدر مرا فراموش نكنيد من ترا فراموش نميكنم، فرزندان يعقوب تا وقتيكه يعقوب بر در كنعان استاده درمحافظ يوسف مبالغه بسيار بعمل مى آوردند، برادران يكى پس

دیگری یوسف را بر شانه می نشانید ویعقوب نشداره میکرد وهمواره درفراق یوسف میگریست.

راوي وايي چي د يعقوب ﷺ زامن چي دده له ستر گو څخه لېري سوه يوسف ﷺ يې پر مخکه وغورځاوه وقالوا يا صاحب الرؤيا الكاذبة التي رئيت الكواكب لك ساجدين من يخلصوك من ايدينا اليوم.

حسین کاشفي در تفسیر حسيني چنین میفرماید درخاک خواری تشنه وگشنه بر روی می کشیدند تانزدیک بهلاک بود انتهی، او یوسف ﷺ به ویل یا ابتاه څرنګه ژر دوی ستا نصیحت زما په باره کي هېر کړی. حاصل د قصي دادی چي بعض ورونه د یوسف د قتل د فلان خوښ وه لکن یهودا یې له قتل څخه د موضوع خلاف وُ اخیر الامر اتفاق پر رایه د یهودا وسوه قال الله تعالی:

**فَلَمَّا ذَهَبُوا بِهِ وَأَجْمَعُوا أَن يَجْعَلُوهُ فِي غَيَابَتِ الْجُبِّ**

نو څه وخت چي بوتلی ورونه یوسف او اتفاق او عزم ددوی وکړی چي اچوو به یوسف په پای کي د ژور څاه چي هورې موجود وُ.

**بوه سه**: چي جواب د "لما" محذوف دی ای فعلوا ما ارادوبه، تاریخ وایي چي یوسف ﷺ په دغه وخت کي د دوولسو کالو وُ، او بعض وایي چي د اتلسو کالو وُ او دی یې راوستی وه هغه څاه ته چي خوله یې تنګه وه او بیخ یې فراخه. مقاتل رحمه الله وایي چي څاه د یعقوب ﷺ له کوره درې فرسخه لېرې وُ. راوي وایي چي د څاه غاړې له چي یې راوستی دوی به څاه ته ورېري واهه ده به لاسونه د څاه په غاړه پوري ټینګ کړه، اخیر یې لاسونه وروتړل او قمیص یې ځني وکښی، دوی خو ددې لپاره ځني وکښی چي ماښام دغه قمیص په وینو لړلی پلار ته وروړي چي یوسف اکله الذئب، یوسف ﷺ ورته وویل یا اخونا ردوا علي قمیص اتواري به في الجب (ای زما ورونو زما قیص بیرته ماته راکړئ چي زه به ځان او بدن په پټوم په جب کي) دوی په بې رحمانه لهجه ورته وویل ادع الشمس والقمر والکواکب التي رئتهم لک ساجدین. یوسف ﷺ له ډېر وهم او بېرې ورته وویل چي ما هیڅ خوب نه دی لیدلی خیر په ملا کي یې تناؤ ور واچاوه چي نیمایي ته د څاه ورسېدی تناؤ یې قطع کړی تاچي غالب ګمان ددوی داؤ چي مړ به سي، یوسف ﷺ په اوبو کي ولوېدی د څاه په

بیخ کي یوه غټه ډبره وه چي تر اوبو راوتلې وه یوسف علیه السلام پر هغه ډبره ودرېدی، راوي وایي یوسف چي څاه ته ولوېدی د ورونو خیال خو دا و چي یوسف په اوبو کي د څاه ډوب سوی او مړ سوی به وی، نو یې ورناري کړې یا یوسف. د یوسف علیه السلام دا خیال سو چي مګر او شاید چي په زړو کي به یې رحمت پیدا سوی وي او بیرته به مي له څاه څخه وکاږي، نو ځکه یوسف علیه السلام ناره وکړه چي ها. نو ورونو یې لوډبره راواخستل چي پر دا سر یې وولي لکن یهودا منع کړه. راوي وایي چي ورونه ځني ولاړه او یوسف علیه السلام یک تنها په ژور څاه تاریک کي پاته سو او په زار زار به یې ژړل. نو جبرئیل علیه السلام وحي ورته راوړې کما قال الله تبارک وتعالی:

**وَأَوْحَيْنَآ إِلَيْهِ**

موږ وحي وکړې وه یوسف علیه السلام ته.

**درویش وایي:** چي په روح المعاني کي وایي چي دا وحي لپاره د خوشالی د یوسف علیه السلام وې او زېری ؤ ددې چي ته به په وروسته کي نبي یې او ازالة د وحشت د ده وه او تسلي د ده وه.

مجاهد رحمه الله وایې چي دا ابهام وو او بعض وایې چي په خوب کي زېری وو او قتاده وایې چي جبرئیل دا خبره ورته والله اعلم بمراده" انتهی غرض د روح المعاني دا دی چي وحي د نبوت نه وې" او مظهري رحمه الله وایې چي ظاهره دا ده چي وحي د نبوت نه وې او د تبلیغ بلکه صرف د اطمنان قلب د یوسف دپاره وې" بلکه دا داسي وحي دي لکه په هغه آیت کي چي راغلي دي" واوحی الی ام موسی ان ارضعیه" وروسته خدای پاک په باره کي د موسی ویلي دي" فلما بلغ اشده (ای زمان قوته عقلا) اتیناه حکما وعلما" ای نبوة وعلما.

**درویش وایي:** چي مختاره هم دغه مذهب دی والعلم عند الله لکن صاحب د روح البیان وایي " وکان وحي نبوة ورسالة کما علیه المحققون (درویش وایي: چي والله اعلم څوک مراد دی د صاحب د روح البیان د محققینو څخه) وروسته دی وایي چي دا خبره صحیح سوې ده چي خدای پاک وحي د نبوت کړي دي ویحی علیه السلام ته. او علیه السلام ته د مخه تر بلوغ وروسته. ده دلیل پر خپله خبره داسي راوړی دی او قیاس د نبوت یې پر ولایت کړی دی حیث قال لان الله تعالی

باب فتح الولايت الخاصة لبعض الآحاد في صغرهم كما الشيخ سهل قدس سره فلان يكون باب النبوة مفتوحا بالاولى لكمال استعداد الانبياء عليهم السلام فامر النبوة والولاية لايتوقف على البلوغ ولا على سن الاربعين وروسته يې ويلي دي که څه هم نبي ګرځول د خداى په اکثرو انبياؤ کي بعد بلوغ اربعين سنة على ما جرى يې عادة الله عز وجل انتهى.

**درويش وايي**: چي قياس د نبوة پر ولايت نه دى صحيح لانهما امور موهبية من الله عز وجل لا مجال للعقل والقياس فيهما وايضا قياس د نبوة د يوسف ﷺ قبل البلوغ پر نبوة د يحيي او عيسى عليهما السلام نه دى صحيح لان لفظ او حينا اليه" په قصه کي د يوسف ﷺ يحتمل ان يكون لاطمنان قلبه لا للاستبنا لکه صاحب د روح المعاني او مظهري چي وويل كما مر عنقريب.

**درويش وايي**: چي والعجب ان صاحب روح البيان په اول کي د تفسير د دي آيت داسي ويلي دي" تبشيرا بما يؤل اليه امره آه ولا يرتاب عاقل بان عبارت ما يؤل اليه امره انما يستعمل في الامر الموجود في المستقبل لا في الامر الموجود حالا فتدبر غاية التدبر والله اعلم بحال يوسف في الاستنبا اكان في الحال او في الاستقبال.

**فائده**: حسن رحمه الله وايي چي يوسف ﷺ په وخت د القا في الجب د (۱۲) كالو وو او بعض علما وايي د (۱۷) كالو وو" او بعض وايي د (۱۸) كالو وو او د پلار يعقوب ﷺ سره چي ملاقي سو (۸۰) كاله وروسته.

**فائده**: حسين كاشفي رحمه الله په خپل تفسير کي وايي که خطاب ملک اعلى بطائر اشيان سدرة المنتهى رسيد" ادرک عبدي جبرئيل" جبرئيل ﷺ پيش ازانکه يوسف به تگ چاه رسد بوى رسيد ودر پنجه مقدسه خود گرفت وبر صخره چاه بنشانيد واز طعام وشراب بهشت باو داد" وپيراهن خليل ﷺ كه بر بازوي يوسف تعويز وار بود او را به پوشانيد انتهى بعبارته" والله اعلم بحقيقة حال يوسف ﷺ في البير.

لَتُنَبِّئَنَّهُمْ بِأَمْرِهِمْ هَٰذَا وَهُمْ لَا يَشْعُرُونَ ﴿١٥﴾

لام موطئه د قسم محذوف دى والمعنى و الله ته به خبر کړې ورونړه په دغه کار سره چي ستا سره يې وکړى او دوى به نه پوهېږي چي ته زموږ ورو يوسف

يې حتی ته به ورته ووايه چې زه يوسف يم ووجه ذالک چې د يوسف شان او حال
ډېر لوړ وو چې عزيز مصر وو او د دوی تو هم نه کېدی چې زمونږ ورو يوسف به
ژوندی وي او که ژوندی هم وي د فقر او مسکنت په ژوند کي به وي، او بل زمانه
ډېره تېره سوې ده د القا الجب تر مابين په (۱۲) کلني کي د يوسف (۱۷) کلني
کي بيا تر دې ملاقات پورې د يوسف سره په مصر کي تخمينا (۸۰) کاله ته
قريب "کريمه" فدخلوا عليه فعرفهم وهم له منکرون" يعني چې ورونړه د يوسف
داخل سوه پر يوسف وپېژندل دوی ولي د ورونړو حليه تقريبا پر پخواني حال پاته
او جامې پر هغه حال د مسکنت پاته وې او ورنړه د يوسف څخه منکر يعني نې
پېژندی" بغوي وايې چې درې ورځي وروسته دا آيت ويوسف ته راوړی او هغه
خبره چې بغوي کړې ده چې يهودا به د دوی ورته راوړه ډېره بعيده ده ولي چې
يهودا که څه هم په شان کي د يوسف سخت درېږه نه وو لکه نور ورونړه لکن د ونه
محبت خو يې هم نه ورسره درلودی چې د دوی ورته راوړي ولي چې په فراق د
پلار څخه خو يهودا هم راضي ؤ" صرف له قتل څخه د يوسف ﷺ يې ورونه
منعه کړه او په القا في الجب سره مشوره ورکړه بلکه کما مر طعام او شراب د
يوسف ﷺ له جنته جبرئيل ﷺ ورته راوړه، او جبرئيل دده د تسکين لپاره ورته
راتلی او زيری د خروج من الجب به يې ورته کاوه ويخبره انه ينبئهم بما فعلوا
وهم لا يشعرون، ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې ورونو چې يوسف ﷺ وجب ته
واچاوه نو سېرلي يې ذبح کړې او د يوسف ﷺ هغه قميص چې دوی څني کښلی
ؤ کمام د هغه سېرلي په وينو يې ولړی. قال الله تعالى:

وَجَآءُوٓ أَبَاهُمْ عِشَآءً يَبْكُونَ ۝

او دوی راغله ماخستن وپلار ته په داسي حال کي چې دوی ژړل يعني د
دروا غو ژړا يې کوله هم له دې سببه دوی ماخستن راغله چې پلار يې سترګي ونه
ويني چې د اوښکو قطره هم نسته پکښي بلکې صرف اواز د ژړا دی.

**بوه سه:** چې يعقوب ﷺ چې د دوی د ژړا اوازونه واورېدل نو لـه کوره ورته
راووتی او داسي يې ورته وويل "مالکم يا بني هل اصابکم في غنمکم شئ" ولې
ژاړئ اې زامنو آيا تاسي ته په پسو کي کوم تاوان دررسېدلی يعني لېوه درڅخه

وركي دي؟ دوی ورته وویل یا انو یعقوب ﷺ ورته وویل چي یوسف څه سو؟
دوی ورته وویل د ژړا په لهجه کي:

قَالُوا يَا أَبَانَا إِنَّا ذَهَبْنَا نَسْتَبِقُ وَتَرَكْنَا يُوسُفَ عِنْدَ مَتَاعِنَا فَأَكَلَهُ الذِّئْبُ ۖ وَمَا أَنْتَ بِمُؤْمِنٍ لَنَا وَلَوْ كُنَّا صَادِقِينَ ﴿١٧﴾

دوی ورته وویل اې پلاره زموږ په تحقیق موږ په صحرا کي په سیالی منډي سره وهلې چي کوم یو به په ځغاسته کي غالب سي، او موږ پرېښی ؤ یوسف په نېز د کالو زموږ یعني پټوان او صدری وغیره چي غالباً د منډو په وخت کي یې خلګ کاږي، نو لېوه راغلی یوسف یې وخوړی یعني چي موږ د بر ځني لېري ؤ او ته په دې خبره کي زموږ تصدیق نه کوې ولي ته پر موږ بدګمان یې او شدت محبت د یوسف سره کوې که څه هم موږ رشتیا ویونکي یو "لسوء ظنک بنا" یعني موږ خو صادق عندالله یو لکن ته مو تصدیق نه کوې په سبب د بد ګماني ستا پر موږ په امر کي د یوسف، راوي وایي چي دوی چي د یوسف ﷺ پر قمیص د سېرلي وینې پاشلې قمیص یې څیري نه کړی صرف یې په وینو ککړ کړی.

وَجَاءُوا عَلَىٰ قَمِيصِهِ بِدَمٍ كَذِبٍ ۚ

او دوی راتګ وکړی پر قمیصه د یوسف ﷺ سر بیره په وینو سره کذب، ای ذی کذب او یا مکذوب فیه تاچي حمل د کذب پر دم صحیح سي، او دا هم احتمال لري چي حمل د کذب چي مصدر دی پر "دم" چي ذات دی مبالغه وي لکه زید عدل، په حدیث صحیح کي چي روایت یې حسن رحمه الله کړی دی راغلي دي چي یعقوب ﷺ چي خبر د هلاک د محبوب زوی یوسف واورېدی بلا اختیاره یې لو په چغه وکړه او دوی ته یې وویل چي قمیص یې راوړئ، دوی چي قمیص ورته راوړی یعقوب ﷺ پر لـه وار اوه ویني خو پر قمیص وې لکن د قمیص یو ځای هم نه ؤ څیري، نو یې ورته وویل اې زامنو دا عجیب هوښیار لېوه ؤ چي زما زوی یې وخوړی او قمیص یې سالم ورپرېښو، نو یعقوب ﷺ په دې پوه سو چي دوی قمیص ځني کښلی دی او قتل کړی یې دی. فلذا قال:

قَالَ بَلْ سَوَّلَتْ لَكُمْ أَنْفُسُكُمْ أَمْرًا فَصَبْرٌ جَمِيلٌ

بلکې تاسي ته اسانه کړي دي یا تاسي ته ښائسته کړي دي ستاسي نفسونو چي د یوسف سره مو بغض درلودی یو امر عظیم. نو تنوین لپاره د تعظیم دی وهذا الامر العظیم هو قتل یوسف طفل بې گناه.

**پوه سه:** چي یعقوب عليه السلام په دوو شیانو سره پر دوی امر ددې وکړی بل سولت لکم آه، یو ددوی سخت حسد د یوسف عليه السلام سره چي ددوی له موره نه ؤ او بل په دې چي پر قمیص یې اثر د خرق یا د غابنو د لېوه ونه لیدی.

**پوه سه:** "فصبر جمیل" په حذف د مبتدأ ای فامری صبر جمیل یا صبر جمیل اختاره "صبر جمیل" هغه ته وایي چي شکایت وخلکو ته نه کوي او نه جذع د خلکو په حضور کي کوي. علمأ وايي شکایت وخدای پاک ته روا دی یعني په یو مصیبت کي ژړا زاری وخدای پاک ته په دفع کي د هغه مصیبت کوي او اظهار د شکایت په نېز د خلکو ناروا دی لانه شکایت من الله واظهار عدم رضائه بقضأ الله عزوجل . . . . بیت:

بر فلک برتر بود اسرار او ..........شیئا لله شیئا لله کار او

وَاللَّهُ الْمُسْتَعَانُ عَلَىٰ مَا تَصِفُونَ

او له خدای جل جلاله څخه کومک غواړم پر برداشت او صبر پر هغه چي تاسي یې بیان کوئ یعني من هلاک یوسف فکلمة ما موصولة والعائد محذوف ای ما تصفونه. بغوي رحمه الله وایي چي په قصه کي د یوسف راغلي دي چي زامنو د یعقوب عليه السلام یو لېوه په ښکار ژوندی نیولی ؤ او تناؤ یې په غاړه یعقوب عليه السلام ته راوستی او یعقوب عليه السلام ته یې وویل چي دغه لېوه یوسف وخوړی. نو یعقوب عليه السلام لېوه ته وویل چي اې لېوه تا زما زوی وخوړی او زما د زړه میوه تا قطع کړه لېوه په قدرت د رب العزت خبري وکړې وقال والله مارئیت وجه ابنک قط یعقوب عليه السلام ورته وویل چي تا په صحرا کي د کنعان څه کوله چي راتلې؟ لېوه ورته وویل چي زه پر بنا د صلة الرحم یعني زما بعض اقربا په صحرا کي د کنعان وه ماویل چي د هغو سره به ملاقات وکړم، نو دغو کسانو زه ښکار کړم.

**درويش وايي**: چي ددې معجزه انګېزه وينا څخه وه يعقوب عليه السلام ته اظهر من الشمس كذب د زامنو معلوم سو.

**تنبيه**: سوال: بعض مفسران وايي چي يعقوب د يوسف عليهما السلام په فراق ولي دومره په درياب كي د غم خداى پاک ډوب كړى؟ ددې سوال: په خواب كي مفسران وايي چي يعقوب د يوسف عليهما السلام د رضاع لپاره يوه مينځه چي د هغې زوى شيرخوار ؤ رانيول. وروسته يې د مينځي هغه شيرخوار زوى څني خرڅ كړى تاچي شيدي ددې يو ازي ويوسف ته پاته سي. نو مينځي وژړل په فراق د خپل زوى او خداى پاک ته يې تضرع وكړه اوداسي يې وويل ان يعقوب فرق بيني وبين ولدي ففرق بينه وبين ولده يوسف. نو خداى پاک يې دعا قبوله كړه نو يعقوب او يوسف عليهما السلام نه سوه سره يو ځاى تر هغو چي هغه مينځه او زوى يې سره يو ځاى كېدل. انتهى.

**درويش وايي**: چي دا صرف يوه افواه ده چي هيڅ يو مؤمن دومره جريمه پر غاړه نه اخلي او نه هيڅ ولي فضلاً عن النبي ثم فضلا عن يعقوب بن اسحاق بن ابراهيم عليهم السلام. او بعض وايي چي يعقوب عليه السلام يو وخت د بزې مرغومى د مور په مخ كي ذبح كړى مور يې د خپل اولاد ويني وليدلې فلم يرض ذالك الله عزوجل من يعقوب فاراه دماً بدم وفرقة بفرقة وذالك لعظم شان النبوة. ولهذا قيل حسنات الابرار سيئات المقربين.

**درويش وايي**: چي ورته توجيهاتو ته ضرورت نسته بعد ماثبت في الحديث الصحيح اشد الناس بلاء الانبيا ثم الاوليا ثم الامثلي فالامثل. او علما وايي چي د خداى پاک په جناب كي يو ځا ته چي يوه درجه د قرب منظوره وي او هغې درجې ته هغه سړى په طاعات بدنيه او ماليه وو سره نه سي رسېداى صب عليه البلايا من الامراض وفراق الاحبة ثم وفقه للصبر كما قال يعقوب عليه السلام فصبر جميل لما وصله الله الى تلك الدرجة العليا وهذا هو السر والحكمة في شهادة الحسين على جده و عليه الصلوة والسلام في برية كربلا. وقصة مشهورة.

**درويش وايي**: چي ما يو كتاب په نامه د شهادة الحسنين رضي الله عنهما تصنيف كړى دى چي په دې كتاب كي پوره په زړه پوري قصه د شهادت د حسن او حسين رضي الله عنهما بيان كړې ده، والله الموفق.

## وَجَآءَتْ سَيَّارَةٌ

او راغله يوه قافله چي دوی سير کاوه له مدين څخه ومصر ته او لار خندي ورکه سوه، نو نژدې وځاته چي يوسف ﷺ پکښېي وو وارولو او دا ځاه په يوه بيابان کي وو چي د اباتی. څخه ډير لير وو صرف د شپنيانو او مسافرينو دپاره ؤ او د دې ځاه اوبه توروي وې او هغه توروې اوبه چي يوسف ﷺ ورځوال يو نهايت خوږې وګرځېدلې "قاله المفسرون رحمهم الله واصحاب التواريخ القديمه" حسين کاشفي وايي روز چهارم مژده نجات به يوسف رسيد.

## فَأَرْسَلُوا وَارِدَهُمْ فَأَدْلَىٰ دَلْوَهُ

نو قافلې والا وو واستاوه وځاته اوبه راوړونکی د قافلې دپاره چي نوم يي مالک بن ذعر خزاعي ؤ، نو ځاته يي وروځړول سولاغه د ابو د راکښلو دپاره نو يوسف ته وحي راغلې چي د سولاغې تناو تينګ کړه، درمعالم التنزيل آمده که ديوارهای جب بر فراق يوسف گريه کردند وذالک لان للجمادات حيات حقانيه لا يعرفها الا العلماء بالله.

په صحيح حديث کي د بخاري راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام د مخه تر جوړېدو د منبر نبوي پر يو وچ لرګي د خورما په وخت کي د خطبې او وعظ تکيه کوله چي منبر جوړ سو او عليه الصلوة والسلام په ورځ د جمعې پر منبر تشريف فرما سو هغه وچ لرګی په ژړا سو چي ټولو خلګو اورېده حتی چي عليه الصلوة والسلام بېرته د منبر څخه ورته راغلی او پر هغه لرګي يي لاس کښېښو څو چي هغه لرګی کرار کرار ساکت سو......... بيت:

استن حنا نه از هجر رسول .........ناله ميزند همچو ارباب عقول
گفت پيغمبر چه خواهي ای ستون ......... گفت جانم از فراقت گشتت خون

**درويش وايي:** چي د دې ډېر مثالونه نور هم سته يطول بذکرها التفسير، نو يوسف چي په تناو پوري لاسونه تينګ کړه سولاغه چي د ځا خولي ته راغله ناګاه يو هلک چي حسن فوق العادة يې درلودی وې ليدی چنانچه په صحيح حديث کي راغلي دی عليه الصلوة والسلام وايي چي يوسف ته نيمايي حسن د ښائسته نرو او

ښخو ورکول سوی وو راوي الحديث المذكور ابن ابي شيبه واحمد وابو يعلى والحاكم عن انس بغوي وايي چي دا جمال د يوسف ﷺ د ده انا ساره په ميراث رسېدلی وو چي هغې ته سدس الحسن ورکړه سوی وو مالک بن وعر چي يوسف وليدی. نو يې داسي وويل.

## قَالَ يٰبُشْرٰى هٰذَا غُلٰمٌ

**درويش وايي**: چي د عربو دا عادت دی چي په وخت کي د ډير غم واحسرتاه وايي يا واويلاه چي مقصود مبالغه په غم او حسرت کي ده يعني غمه رائحه دغه دي وخت دی. وهكذا او په وخت کي د ډېرې خوشحالی يا بشری ومثله وايي گويا خپل ځان ته د زېري ناري وهي چي خوشحالي رائحه دغه دی وخت دی وهذا ايضا مبالغة والا فمنادى لا يكون الا من ذوي العلم. او بعض مفسرين وايي چي بشری نوم د ملگري د مالک وو. نو هغه ته يې د دې سببه وکړه چي کومک راسره وکړه په اخراج کي د دلوي مع الغلام دا دی يو هلک يعني بلوغ ته نارسېده" علامه عبد الرحمن الجامي قدس سره العالي" په خپل کتاب کي داسي وايي" بر آمد بس جهان امروز ماهي.

## وَأَسَرُّوهُ بِضَاعَةً

يعني مالک او ملگري د ده يوسف پټ کړی د نورو قافلې والا وو څخه چي دوی دعوی د شراکت پکښي ونه کړي. او بعض مفسرين وايي چي حال د يوسف يې پټ کړی يعني چي موږ د ښا څخه راوکښی بلکه داسي اظهارات يې شروع کړه چي موږ ته د ښا مالکانو په لاس راکړی چي په مصر کي زموږ د پاره خرڅ کړئ يعني دا يوسف د هغه مريې وو "بضاعة" منصوب دی د ضمير څخه د اسرو چي يوسف ته راجع وو ای حال كون بضاعة ای راس المال د تجارت دپاره يعني سبب د گټي په تجارت کي چي په مصر کي يې خرڅ کړو.

## وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٩﴾

او خدای ﷻ خبر دی په هغه کار او عمل چي د يوسف وروڼو د پلار او د ده يوسف سره وکړی.

**بوه سه**: چي د يوسف ورونړو به هره ورځ دې ځائے راتله چي د يوسف حال ځان ته معلوم کړي ځلورمه ورځ کي چي راغله يوسف د څا څخه را ايستل سوی وو، نو دوی مالک ته وويل چي دا زموږ مريي زموږ څخه راتښتېدلی وو په دې څا کي ځان پټ کړی وو، نو موږ يې ډېر تنګ کړي يو اوس يې خرڅه وو.

**سوال**: يوسف ولي و قافلې والو ته خپله حال نه وايه چي زه مريی نه يم دا زما ورونړه دي او ټوله قصه يې ولي نه ورته کوله بيا خو قافلي والو نه رانيولی او شايد يعقوب عليه السلام ته يې ور وستلی وای؟

**ځواب**: يوسف ته ورونړو په اشارات خفيه ووسره د قتل تهديد ورکړی وو که دی صورت حال ووايي او يا پخپل عربي ژبه ورته ويلي وه.

وَ شَرَوْهُ بِثَمَنٍۭ بَخْسٍ دَرَاهِمَ مَعْدُوْدَةٍۚ

نو پر دې تقدير د شروه ضمير د جمع و ورونړو ته د يوسف راجع دی والشرا په معنی د بيع ده لکونه من الاضداد والمعنی ورونړو د يوسف دی خرڅ کړی پر مالک واصحابه باندي په ثمن حرام سره لان بيع الحر حرام قاله ضحاک ومقاتل والسدي رحمهم الله "دراهم معدودة" بدل دی د ثمن څخه والمعنی څو درهمه چي په حساب ورکړه سوه.

**فائده**: حرام مال ته ولي بخس وايي لانه منخوس من البركة ای منقوص منها" او عکرمه او شعبي د بخس ترجمه په قليل سره کړې ده.

**فائده**: په هغه زمانه کي رواج دا وو چي يوه وقية زر به دوی په تاله او وزن سره ورکول او کم تر وقيه به يې په حساب ورکولې ابن مسعود او ابن عباس رضي الله عنهم وايي چي (۲۰) درهمه وه چي پر ورور دوه درهمه ور ورسېدله او بعض وايي (۲۲) درهمه او هغه چي بعض مفسرين وايي چي (۴۰) درهمه وه د معدودة وه لفظ خلاف خبر ده ولي (۴۰) درهمه خو مقدار د وقية دی وقد مر ان الوقية وما فوقها کانوا يزنونها فافهم.

**فائده**: د ورنړو غرض په خرڅولو کي د يوسف دا وو چي قافله بې مصر ته بوزي او هوري به يې خرڅ کړي او د يعقوب د سترګو څخه به ډېر ګوښه سي، وقد کان کذالک.

**پوه سه:** چي بيضاوي او مظهري او روح البيان او روح المعاني دا احتمال هم راوړی دی چي شراً دي پخپله معنا وي يعني رانيول لکن ضمير د جمع د شروه دی راجع وي و مالک او اصحابو ته د ده.

**درويش وايي:** چي مشهوره او اسان معنی هغه ده چي مونږ وکړه ولا يخلو ما قال هولاً المفسرين من التکلف کما لا يخفی علی من طالع تلک التفاسير والله اعلم.

وَكَانُوا فِيهِ مِنَ الزَّاهِدِينَ ﴿۲۰﴾

او وه ورونبو د يوسف څخه بې رغبته، ولي چي دوی ته منزله د يوسف په نيز د خدای ﷻ نه وه معلومه او يا معنی دا ده چي دوی وه په ثمن کي د يوسف بې رغبته ولي د دوی مقصد روپۍ نه وې بلکه ليري کول د يوسف وه د پلار څخه کما مر عنقريب وهذا الغرض انسب ببيعه بدراهم معدودة.

**تنبيه:** راويان د قصې وايي چي مالک بن وعر چي يوسف له ورونبو څخه رانيوي نو ورونبو د يوسف وده ته وويل چي ډېر فکر به پر کوې دا مريی په تېښته اموخته دی چي درڅخه وه نه تېښتي، خير کاروان مصر ته ورسېدی، او مالک يوسف ﷺ وه خرڅولو ته پېش کړی، نو قطفير چي پر خزانو د مصر وزير خزانه ؤ چي د عزيز په نامه سره مشهور ؤ رانيوی او پادشاه د مصر او د مصر شاوخوا ريان بن الوليد بن ثروان ؤ د عمالقه له قوم څخه. راوي وايي چي دا ملک مصر تر هغو ژوندی ؤ چي ايمان يې پر يوسف ﷺ راوړی او دده متابعت يې وکړی پر دين دده ثم مات الملک، بعض راويان لکه ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي قطفير يوسف ﷺ دده د مالک وعر څخه په شل ديناره او يو جوت چوتو او يو دوه جوړه سپينو کالو رانيوی، او وهب بن منبه رحمه الله وايي چي مالک بن وعر يوسف ﷺ په بازار کي ليلام ته پېش کړی چي په عربي بيع د من يزيد بولي او په پښتو يې بالا دوي بولي، نو تجارانو د مصر يو پر بل بالا دوي شروع کړه حتی چي قيمت د يوسف ﷺ دده په تاله چي وزن دده څلوېښت رطله ؤ، يوه توله سره زر يوه توله مشک يوه توله وربښمو ته ورسېدی، نو تجارانو بالا دوي بنده کړه او قطفير يوسف ﷺ رانيوی قال الله تعالی.

وَقَالَ الَّذِي اشْتَرٰىهُ مِنْ مِّصْرَ لِامْرَاَتِهٖٓ اَكْرِمِيْ مَثْوٰىهُ

او وويل هغه چا چې يوسف ﷺ يې رانيولى د مصر باشنده چې قطفير يې نوم ؤ او په عزيز مصر سره يې شهرت درلودى راغلى وخپلې ماينې ته چې راعيل يا زليخا يې نوم ؤ والثاني هو المشهور عند العوام والخواص. او په روح المعاني كې وايي چې نوم يې راعيل ؤ وهو المروي عن مجاهد رحمه الله، او سدي رحمه الله وايي چې نوم يې زليخا بنت تمليخا ؤ وقيل اسمها راعيل لقبها زليخا. وقيل بالعكس انتهى.

**درويش وايي**: چې په قول د روح المعاني اختلاف د رواياتو ختم سو.

**فائده**: "المثوى" موضع الاقامة والمراد منزلته كما قال ابن جريج وقتاده، وقيل اكرميه في المجلس والمطعم والمقام وهذا التفسير اشمل من الاول واولى منه كما لايخفى.

عَسٰٓى اَنْ يَّنْفَعَنَآ اَوْ نَتَّخِذَهٗ وَلَدًا ؕ

شايد مونږ ته به نفع راورسوي يعنې په دېره ربح به را خرڅ سي، كه مونږ خرڅاوه، او تفسير حسيني وايي: شايد آنكه سود رساند مارا دركار ضيع وعقار وسر انجام مصالح روزگار ما انتهى والى هذا التفسير اشار المظهري وصاحب روح المعاني ايضاً روح البيان رحمه الله. او يا زوى وګرځوو چې په عربي يې متبنى بولي. ولي چې قطفير وچ ؤ يعني عقيم ؤ.

**فائده**: درويش وايي چې "تفرس" په فراست سره د يو شي ادارك ته وايي فراست د عقل په نور او رڼا سره د يو شي علم ته وايي كما ورد في الحديث النبوي ﷺ "اتقوا فراسة المؤمن فانه ينظر بنور الله" قال ابن مسعود رضي الله عنه فيما اخرجه سعيد بن مسيب والحاكم وصححه وجماعة. افرس الناس في الدنيا ثلثة (۱) عزيز چونكه ده په يوسف ﷺ كې علامات د رشد او امانت داري وليدل په نور د عقل نو يې ځكه ماينې ته وويل "اكرمي مثواه عسى ان ينفعنا الآية" (۲) د شعيب ﷺ لور وهغه وخت چې موسى ﷺ نبي نه ؤ او په خطاء يې قبطي د قوم فرعون مړ كړى او د فرعون له بېرې وتښتېدى او قريې ته د شعيب ﷺ تللى ؤ او هورې يې د شعيب ﷺ د لوڼو پسونه ور اوبه كړل كما مر قصة في

تفسير سورة البقرة. نو شعیب وه موسی علیه السلام ته خپل لور ورواستول او دی
یې کور ته وغوښتی. نو د شعیب علیه السلام لور خپل پلار ته وویل "یا ابت استاجره
ان خير من استأجرت القوي الامين الى اخير الايات. (۳) ابوبکر رضي الله عنه چې په
عمر رضي الله عنه کې یې پالنه د دین او پر مخ بیول د اسلام په ده کې ولیدل. نو د
ناجوړی په وخت کې یې امیر المؤمنین عمر رضي الله عنه خلیفة الاسلام وګرځاوه.

**درویش وایي:** چې دا تفرس به جاري وي او په کفر او اسلام پورې اړه نه
لري لان العزيز كان كافراً. فافهم واحفظ فانها فائدة سنية من سوانح الوقت.

## وَكَذَٰلِكَ مَكَّنَّا لِيُوسُفَ فِي الْأَرْضِ

دغه رنګه لکه موږ چې نجات ورکړی له قتل د ورونو، او له جب ځخه مو
راویستی او عزیز المصر مو پر ده مهربان کړی کمامر من قوله لامرئته اکرمي
مثواه، موږ تمکین، قدر او عزت وده ته ورکړی په ځمکه کې د مصر حتی څه
موده وروسته پر خزائنو د مصر وزیر خزانه مقرر سو کما سیاتي.

## وَلِنُعَلِّمَهُ مِن تَأْوِيلِ الْأَحَادِيثِ ۚ وَاللَّهُ غَالِبٌ عَلَىٰ أَمْرِهِ

**پوه سه:** چې کلمه د عطف محذوف المعطوف علیه ده تقدیره لیحکم
بالعدل ولنعلمه آه وقيل كلمة العطف زائدة، والمعنى چې موږ وروښیو یوسف
ته تأویل او تعبیر د بعض خوبونو لکه تعبیر د خوب د ملک مصر او تعبیر د دوو
بندیانو دده سره په بندي خانه کې وه کما سیاتي في القرآن الکریم.

**پوه سه:** چې ضمیر د "امره" وه خدای پاک ته راجع دی، والمعنی خدای پاک
غالب دی پر خپل کار (نو مراد له امر څخه هغه دی چې جمع یې امور راځي) یعني له
کاره د خدای جل جلاله څوک منازع او مدافع نسي کېدای یفعل مایشاً ویحکم مایرید.
او عین ممکنه ده چې له امر څخه دي مراد هغه معنی وي چې جمع یې اوامر راځي
یعني مقابل د نهي قال الله تعالی "انما امره اذا اراد شيئاً ان يقول له كن فيكون"

## وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿٢١﴾

لکن د ېر خلګ په حکمتو او په فوائدو د خدای جل جلاله د کارو نه پوهېږي.
بود هر کسی را دگر گونه رایی ........ نباشد مگر آنچه خواهد خدای

**درویش وايي:** چي علم په حکمتو سره د صنائعو د خدای پاک لوپه وظیفه ده او بلنده برخه ده، په صحیح حدیث کې راغلي دي چي یو سړي له علیه الصلوة والسلام څخه پوښتنه وکړه ای الاعمال افضل؟ قال علیه الصلوة والسلام العلم بالله. بیا هغه پوښتنه څني وکړه ای الاعمال یزید رتبة قال العلم بالله. هغه سړي وویل چي زه پوښتنه د عمل در څخه کوم ته جواب په علم راکوې فقال ان قلیل العمل ینفع مع العلم یعني بالله وان کثیر العمل لاینفع مع الجهل یعني بالله.

**حکایت:** زما د کوچنیوالي په زمانه کي چي وه حکومت پنجوائي ته نژدې کلي دی یو سړی ؤ چي نوم یې سرور ؤ د یو پیر مرید سوی ؤ او ده نفلي روژو او لمونځو ته ځان وقف کړی ؤ سره د اعتکافو. چهل روزه یې هم په کال کي دوه درې واره او اذکار یې هم په ډکه پېمانه کول حتی چي علما د دغې قریې به ده ملاقات ته ورتلل، خیر تر یوه کاله پورې تقریباً دده دغه مشاغل وه، وروسته تر کال سرور بېره وخړیل نفلي روژې، اذکار اعتکافونه حتی چي فرضي لمونځونه یې هم پرېښول دا ټوله شیان یې ختم کړل. ملایانو چي به ده ته نصیحت کاوه ده به ورته ویل چي ما یوه شپه چي زه به په اعتکاف کي وم، ئو په خلوت خانه کي به رڼا پیدا سوه او خدای پاک رانږ راباندي وکړی چي ته زما په دربار کي مقبول سوې نور نو عبادت ته هیڅ ضرورت نسته. ملایانو چي به هر څو نصیحت ورته وکړی چي دا شیطاني څراغ او د شیطان خبري وې، خو د سرور هیڅ قناعت نه کېدی وکان علی ذالک حتی مات وکان جاهلاً محضاً.

## وَلَمَّا بَلَغَ اَشُدَّهٗ

هغه وخت چي ورسېدی یوسف علیه السلام ومنتهی ته د ځوانی. مجاهد رحمه الله وایي چي درې د ېرش کلن سو. سدي رحمه الله وایي چي د ېرش کلن سو چي سن الوقوف یې بولي، یعني چي د انسان ټولي قوې د بدن پر دغه عمر در ېږي، او ضحاک رحمه الله وایي چي د شلو کلو سو. او کلبي رحمه الله وایي چي اشد له اتلسو کلو شروع کېږي تر د ېرش کالو پوري، او صاحب قاموس هم داغه قول راوړی دی.

**فائده:** اشد له اوزانو څخه د جمع دی لکه انک لکن مفرد نه لري. او بعض وایي مفرد دی ولا نظیر لها في المفردات.

**يوه سه:** چې حكماً او اطبا عمر د انسان يعني على الاكثر څلور درجې بولي (۱) سن دی دنشوونما ونهايته الى ۳۰ سنة (۲) سن الشباب والوقوف چې نهايت يې څلوېښت كاله دی(۳) سن الكهولة وهو سن الانحطات اليسير الخفي وتمامه ٦٠ كاله دی (۴) سن الشيخوخة وهو من الانحطاط العضيم الظاهر وتمامه عند الاطبا ۱۲۰ دی.

**درويش وايي:** چې دا ټوله په اعتبار د اكثر او اغلب دي فلا يرد مايتوهم ويختلف هذه الاسنان باعتبار بنية الانسان قوة وضعفاً كما يدل عليه التجارب

اٰتَيۡنٰهُ حُكۡمًا وَّعِلۡمًا ؕ وَكَذٰلِكَ نَجۡزِى الۡمُحۡسِنِيۡنَ ﴿۲۲﴾

موږ ورکړی ده ته حکم يعني نبوت وقيل الاصابة في القول "وعلماً" يعني خبرتيا په دين کې، او بعض مفسرين وايي چې علم په تأويل او تعبير د خوبو الى غير ذالک، او ورته ثواب او عوض موږ ورکوو وه احسان کونکو ته، ابن عباس رضي الله عنهما وايي وه مهتدينو ته، او ضحاک رحمه الله وايي چې هغه کسان چې پر حوادثو د زمانې او پر تکاليفو يې صبر کړی وي لکه يوسف عليه السلام ههنا. قاضي بيضاوي رحمه الله وايي چې په دې آيت کې تنبيه پر دې ده چې خدای عزوجل چې يوسف عليه السلام ته مذکوره شيان ورکړه دا ثواب دده د حسناتو دی في عمله او دده پر پرهيز دی له منهياتو څخه خصوصاً في عنفوان الشباب کما يدل عليه ما سيأتي من القرآن.

**تنبيه:** درويش عاصي بانواع المعاصي محمد عبيد الله کندهاري ايوبي غفر الله الباري ذنبه الخفي والجلي وايي چې المولى عبد الرحمن جامي قدس سره السامي قصه د يوسف عليه السلام بتمامها او قصه د عشق د امرة العزيز زليخا دده سره بالتفصيل بيان کړې ده په کتاب مستقل کې په نامه د "يوسف زليخا" چې ټوله کتاب په بلاغت کې په فارسي ژبه او په اشعارو يې راوړی دی چې هر چاته معلوم دی، او روح البيان هم دا قصه په متابعت د جامي څېړلې ده او ځای پر ځای يې د جامي د کتاب ابيات هم راوړي دي، لکن عامو مفسرينو دا قصه په تفصيل مذکور د جامي او روح البيان نه ده راوړې، نو الله اعلم بصحة القصة المذکورة على ما بينه الجامي وروح البيان ولهذا اعرضنا عن التفصيل المذکور على منوالهما واکتفينا بماذکره اکثر المفسرين رحمهم الله فاقول قال الله عزوجل:

## وَرَاوَدَتْهُ الَّتِي هُوَ فِي بَيْتِهَا

او حیله وکړه هغه یوسف ته هغې چې یوسف د هغې په کور کې ؤ یعني امرئة العزیز زلیخا یعني لپاره د زنا.

**پوه سه**: چې د "راود" چې له بابه د مفاعله دی او دلته په معنی د مجرد دی اصل یعني مجرد یې راد یرد ومعناه جا وذهب لطلب شئ بالرفق او له دغه سبب څخه طالب ته د اوبو او وښو رائد وایي. او بعض اهل اللغة طلب د شي په مهلت او کرار کرار سره ومنه. کریمه: امهلهم رویداً. والمعنی طلبت زلیخا من یوسف بالحیل المواقعة.

**پوښتنه**: التي هو في بیتها وویل سو. زلیخا چې لفظ یې اخصر یې نه راوړی؟

**ځواب**: لفظ د موصول لپاره غایت طهارت د یوسف د منهي عنه څخه راوړی. ولې چې دی په کور کې د زلیخا ؤ او هغه په غایت حسن او جمال کې وه لوی باعث پر حصول د مقصد د زلیخا ؤ لکن طهارت د ذیل د یوسف مانع د نجاست وګرځېدی.

## عَنْ نَّفْسِهٖ وَغَلَّقَتِ الْاَبْوَابَ وَقَالَتْ هَيْتَ لَكَ

"عن نفسه" احتالت وخادعت للمواقعة والجماع من یوسف. او زلیخا دروازې وتړلې او کلفان یې ورواچول. نو باب د تفعیل لپاره د تکثیر دی. صحیح راویان د قصې وایي چې زلیخا په اجازه د عزیز مصر یعني دده مېړه چې یو تعمیر جوړ کړی چې اووه دروازې یې درلودې په هره دروازه چې به سړی ورننوتی هورې به فرش اوار ؤ پلنګ په پروت ؤ کوبچې بالښتان به موجود وه. اووم اوطاق یې ډېر عالیشان سویه تعمیر کړی و. او نوم یې دار السرور پر ایښی ؤ. نو یوسف ﷺ چې دده زرخرید مریی ؤ دې راوبولی پر اوله دروازه چې یې داخل کړی. دروازه یې د دننه دخوا قلف کړه. اووم اوطاق "دار السرور" ته چې یې ورساوه پلنګ او بالښت پروت ؤ.

**پوه سه**: چې "هَیت" اسم فعل دی مبني پر فتح دی لکه "اینَ" معنا یې تعال راسه وهلم کار ژر شروع کړه.

**فائده**: دا خونه که څه هم زلیخا د دار السرور ددې په عقیده نوم پر ایښی ؤ لکن دا خونه په حقیقت کي دار الاحزان والثبور او د شریعت له نکته نګاه څخه وبقعة من بقاع جهنم. زلیخا وه یوسف ﷺ ته وویل چي دا زیبا او قشنګ قصر ما ستا لپاره جوړ کړی دی چي د خوشالی ژوند پکښي تیر وو، یوسف ﷺ ورته وویل یا زلیخا ته لما څخه فعل حرام غواړې؟ زلیخا ورته وویل زه پر تا عاشقه یم او ستا سره غایت محبت لرم. یوسف ﷺ ورته وویل چي زما د پلار یعقوب د محبت له لاسه زما سره وروڼو په ما کالي د ذلت او خواری واغوستله نه پوهیږم چي ستا د محبت له کبله ماته څومره ذلت او خواري پیښه سي، لکه وریښه چي هم سوه من الحبس مدة مديدة كما سيئاتي. زلیخا ورته وویل چي د وریښمین قالین پر پلنګ اوار دي راسه په مزه مزه خپل کار وکړو. یوسف ﷺ ورته وویل یذهب اذاً نصيبي من الجنة.

## قَالَ مَعَاذَ اللّٰهِ

پناه په خدای ﷻ چي زه به زنا کوم د بادار د مایني سره.

**پوه سه**: چي معاذ الله له جملې څخه د هغو مصادرو دی چي منصوب په فعل مضمر سره دي لايكاد يظهر منها افعالها نحو سبحان الله وغفرانك وعونك والتقدير هٰهنا اعوذ بالله معاذاً مما تدعونني اليه من الخيانة والفعل الحرام. وحاصل کلام یوسف ﷺ في هذه الابيات:

زهی خجلت که درروزی قیامت ...... که آید برز نا کار ا ن غرامت
خرابی آن جفا یشان نو یسند ...... مراسر دفتر ایشان نویسند

## إِنَّهُ رَبِّي أَحْسَنَ مَثْوَايَ ۖ إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الظَّالِمُونَ ﴿٢٣﴾

"انه" الضمير الشان، والمبتدأ محذوف ای قطفير ربي زما مالک دی "ويحتمل" انيكون الضمير راجعاً الى قطفير المعلوم من اول القصة. د پر بنه يي کړی دی زما قیام دده په کور کي وقال لک اكرمي مثواه كما مر، نو زما به څه جزا وي که زه خیانت دده د مایني سره وکړم یعني زنا، په تحقیق شان دادی چي فلاح او خلاصون د عذاب د خدای پاک به نه ووینی ظالمان چي په عوض کي د

احسان د بدل دي بد وکړي، کريمه: "هل جزاء الاحسان الا الاحسان" او بعض مفسران وايي چي مراد له ظالمانو څخه زانيان دي، چي پر خپل ځان هم ظلم کوي او پر مزني باهل يې هم کوي وهو العزيز.

**فائده:** ابن اسحاق او سدي وايي چي امرئة العزيز چي مراودة او احتيال د يوسف ﷺ کاوه او دې جلباوه وخپل ځان ته اول خو دې پر حسن خدا داده باندي نور لعل او جواهر ځړولي وه او د هر معطر خوشبوي عطر يې هم لګولي وه او يوسف ﷺ ته يې داسي ويله ما احسن شعرک څه عجيب ښه وېښتان دي دي، يوسف ﷺ ورته وويل هو! زه چي مړ سم اول به قبر کي دغه وېښتان راتويېږي زليخا ورته وويل ما احسن عينک څه ښه زيبا او ښائسته سترګي دي دي! يوسف ورته وويل هما اول مايسيل على وجهي يعني دې دوو سترګو اوبه به اول زما پر مخ رابهېږي يعني في القبر، زليخا ورته وويل ما احسن وجهک، څرنګه ښائسته مخ دي دی! يوسف ﷺ ورته وويل هو التراب ياکله دا مخ خاوري ګرځي يعني في القبر، زليخا ورته وويل ورېښمينه نالي پر پلنګ هواره ده درولاړ سه زما حاجت را د سره کړه يعني الجماع.

**فائده:** يوسف ﷺ په عنفوان د جوانی او له دې ښائسته زليخا دعوت ده ته مکرر ورکول کېدی، قال الله تعالى.

**وَلَقَدۡ هَمَّتۡ بِهِۦ**

زليخا ټينګ قصد د جماع له يوسف ﷺ څخه کاوه.

**وَهَمَّ بِهَا**

او يوسف په مقتضى د طبع بشري قصد وکړی ودې ته مع کف نفسه عنها باختيار الطاقة الشرعية کما يدل عليه قوله تعالى معاذ الله آه وليس المراد القصد الاختياري واما القصد الطبعي وميلان النفس فهو خارج عن دائره التکليف کما لايخفى. بل کف النفس بان الاختيار مع الميل الطبعي يستحق المدح والاجر الجزيل. ولي بشر چي تر ملکو افضل دی په سبب د کف النفس مع الميل الطبعي وليس في الملائکة ذالک. شيخ ابو منصور الماتريدي رحمه الله وايي چي هم د يوسف ﷺ يوه وسوسه وه طبعاً ولا صنع للعبد فيما يخطر بباله ولا مواخذة عليه

اجماعاً. که چېرې وای هم د یوسف علیه السلام لکه زمونږ هم وه معصیت ته نو خدای پاک به یې مدحه نه کولای "بانه من عبادنا المخلصین" صوفیه کرام وایي چي هم دوه قسمه دی یو هم ثابت بولي چي عزم د زړه ورسره ملګری وي او په ګناه راضي وي لکه هم د امرأة العزیز فالعبد مأخوذ "به" او بل هم عارض دی چي حدیث النفس یې من غیر اختیار ولا عزم مثل هم یوسف. والعبد غیر مأخوذ به مالم یتکلم که قولي شیٔ وي او یعمل که عملي شیٔ وي. ویدل علیه ما ورد في الحدیث النبوي ﷺ کما رواه البغوي من حدیث ابی هریرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ قال الله تعالی اذا تحدث عبدي بالحسنة بان یعمل حسنة فانا اکتبها له حسنة مالم یعملها (یعني یوه حسنه چي عمل یې هم نه وي کړی) فاذا عملها فانا اکتبها بعشر امثالها (که یې عمل وکړی نو زه یې لس مثله ثواب د هغې حسنې ورته نوشته کوم) واذا تحدث بان یعمل سیئة فانا اغفرها مالم یعمل بها. فاذا عملها فانا اکتبها له بمثلها. ومعنی الحدیث ظاهر بأدنی تأمل.

لَوْلَآ اَنْ رَّاٰ بُرْهَانَ رَبِّهٖ

که نه وای لیدلی یوسف دلیل د خدای جل جلاله دده. وجواب لو محذوف یعني لجامعها. لکن چونکه برهان د خدای پاک یې ولیدی هغه هم بلا اختیار ځني دفعه سو.

**یوه سه:** چي علماً او مفسرین په دې اختلاف دي چي هغه نو څه شی وو؟ جعفر بن محمد صادق رضي الله عنه وایي چي هغه نبوت وو چي په زړه کي دده خدای پاک اېښی وو هغه مانع سو له فعل څخه د زنا او د قصد د زنا. مظهري رحمه الله که څه هم وایي چي دا تفسیر اصوب د اقوال دی په نېز زما لکن دا تفسیر خلاف دی د لفظ رئ او خلاف دی د اکثرو مفسرینو له بیان څخه. او قتاده رحمه الله وایي چي اکثره مفسرین پر دې رایه دي چي یوسف علیه السلام ته په دغه حال کي خدای پاک دده د پلار یعقوب علیه السلام صورت په ولیدی او ورته وه یې ویل اتعمل یا یوسف عمل السفها وانت مکتوب في الانبیاً. او حسن بصري، سعید بن جبیر، مجاهد او ضحاک رحمهم الله وایي چي د خونې بام پورته سو یوسف یعقوب علیه السلام ولیدی چي ګوته یې په غاښو نیولي وه. او محمد بن کعب القرضي رحمه الله وایي چي یوسف علیه السلام چي سترګي د خونې وبام ته پورته کړې پر بام نوشته وه "لاتقربوا الزنی انه کان فاحشة وساً سبیلاً" یعني په عبري ژبه چي معنا یې د آیت مذکوره وه. او علي بن الحسین رضي الله عنه وایي چي د

زلیخا لږ امید پیدا سو ددې په خونه کې یو بت وچې دې به یې عبادت کاوه پر هغه بت یې کالي واچول، یوسف ﷺ ورته وویل لم فعلت هذا، زلیخا ورته وویل چې دا زما خدای دی او زه شرمېږم چې دده په مخ کې زنی کوم. یوسف ﷺ ورته وویل چې ته د بې روح جماد شي څخه شرمېږې چې نه یې نفع په وسه پوره ده او نه ضرر نانا احق ان استحی من ربي العليم الخبير فهرب عنها.

**درویش وایي**: چې نور اقوال د برهان ربه په تفسیر کې ذکر سوي دي، وبيان الكل موجب للتطويل.

**مسئله**: څوک چې نسبت وانبیاؤ ته د فواحشو کوي لکه حشویه چې یې کوي كالعزم على الزنى في ما نحن فيه من يوسف كفر لانه شتم لهم كذا في القنية.

**پوښتنه**: ولي دومره اختلاف په هم کې د یوسف ﷺ راغلی حتی چې په بعضو روایاتو کې راغلي دي چې هم (قصد) د یوسف ﷺ دا وچې چې پرتوګانې خلاص کړي. او په روایاتو کې راغلي دي چې زلیخا ستني ستغ پرېوتله یوسف د پښو په منځ کې ورته کښېناستی پر توګ یې کښی چې برهان ربه یې ولیدی نو ولاړ سو؟

**ځواب**: دا ټوله واهيات دي ولي چې څو اعلی درجه د عزم ده ونسبة تلك الروايات الى ابن عباس ﷺ مردود ولله درصاحب روح المعاني حيث قال چې ترجمه د هم د یوسف پر حديث النفس من غير اختيار ولا عزم لکه د یو سړي چې د ډېږې په سخته ګرمي کې روژه وي، نو بلا اختياره يې اوبو ته شوق کېږي؛ وقال ان هذا التفسير هو الذي يجب ان نذهب اليه ونتخذه مذهباً وان نقل المفسرون ما نقلوا لان متابعة النص القاطع وبراءة المعصوم عن تلك الرزيلة (اى العزم على الفاحشة) واحالة التقصير على الرواة اولى بالمصير اليه. وقال علا ان اساطين النقل المتقنين لم يرووا في ذالک شيئاً مرفوعاً في كتبهم وجل تلك الروايات بل كلها مأخوذ من اهل الكتاب انتهى.

كَذَٰلِكَ لِنَصْرِفَ عَنْهُ السُّوٓءَ وَالْفَحْشَآءَ ۚ إِنَّهُۥ مِنْ عِبَادِنَا الْمُخْلَصِينَ ﴿٢٤﴾

"كذالك" اى الامر مثل ذالک او فعلنا مثل ذالک. داغه رنګه چې موږ واړوو له یوسف څخه سوء یعني صغیره ګناه، او کبیره ګناه لکه زنی. په تحقیق یوسف زموږ له مخلصو بندګانو څخه دی په طاعت او عبادت کې.

**درویش وايي**: چي دا ترجمه پر هغه تقدير ده چي مخلصين په کسره د لام وويل سي كما قرأه كذالك ماسوى د نافع او كوفيانو. او پر قرائت د امام نافع او کوفيانو چي د لام په زور يې وايي، نو يې معنا داده چي يوسف د هغو کسانو څخه دی چي خدای ﷻ غوره کړی لپاره د نبوت.

**فائده**: امام نافع او كوفيان هر ځای چي مخلصين معرف باللام راسي په قرآن مجيد کي په فتح د لام يې وايي وعلى هذا اجرى طبع المصحف الجليل في جميع المطالع الا ماشذ وندر.

## وَاسْتَبَقَا الْبَابَ

يعني يوسف او زليخا دواړو وړاندي والی يو تر بله سره کاوه او دروازې يوسف لپاره د وتلو او زلیخا لپاره د منع دده له خروج څخه.

**پوښتنه**: چي استباق چونکه لازمي دی، نو تعديه يې ومفعول ته چي لفظ د باب دی يا په حذف د الی دی يعني الى الباب چي دې ته نحات حذف او ايصال وايي. يعني حذف د حرف جر او رسول د فعل ومفعول ته. او يا استبقا په معنی د ابتدأ دی چي متعدي بنفسه دی.

**پوښتنه**: لفظ د باب يې مفرد راوړی او سره ددې چي په دمخه آيت کي وغلقت الابواب راغلی وو؟

**ځواب**: دلته خو مقصود هغه دروازه ده چي له دې قصر څخه تر وځي چي بېروني دروازه يې بولي او په غلق کي خو ټولي دروازې مقصود وې.

**سوال**: دروازې خو ټولي زلیخا قلف کړي وې او کلیانې ددې سره وې، نو څرنګه يوسف ﷺ تر دې دروازو وتلای سوای؟

**ځواب**: ټوله مفسرين رحمهم الله په يوه خوله وايي چي قلفان په قدرت د خدای ﷻ په خپله خلاصېدل او لاندي غورځېدل او دروازه به خلاصه ولاړه وه.

## وَقَدَّتْ قَمِيصَهُ مِنْ دُبُرٍ وَأَلْفَيَا سَيِّدَهَا لَدَا الْبَابِ

او ورڅيري کړی زلیخا قمیص د یوسف د شا له خوا چي خوني ته يې بېرته راکشاوه او يوسف زور واهه چي ووځي، او دوی چي تر بېروني دروازې دواړه وررووتل سيد د زلیخا يې په دروازه کي پيدا کړی يعني قطفير زوج زلیخا.

**بوه سه**: چي "قد" څیریوالي ته په طول کي وايي او "قط" څیریوالي ته په عرض کي وايي.

**سوال**: قطفیر خو د زلیخا میړه ؤ نو زوجها يې ولې نه وو ایه؟

**ځواب**: د هغو په عرف کي ښځو میړه ته سید وایه.

**سوال**: سیدهما په ضمیر د تثنیه يې ولې نه وو ایه؟

**ځواب**: یوسف ﷺ خو حر ؤ مربي والی يې ناحقه ؤ او نر ؤ، نو د سید اطلاق پر قطفیر د یوسف ﷺ په باره کي په هیڅ معنا نه ؤ روا. بعض راویان وايي چي قطفیر دباندي تر دروازې د قصر السرور د زلیخا د اکاد زوی سره ناست ؤ او بعض اهل تاریخ وايي چي قطفیر له دباندي څخه کورته راغلی، راویان وايي چي زلیخا چي میړه ولیدی وارخطا سوه نو لکه د ښځو چي عموماً حیلې ډېري زده دي.

## قَالَتْ مَا جَزَآءُ مَنْ أَرَادَ بِأَهْلِكَ سُوٓءًا

نو دې وویل وه میړه ته لپاره د پاکی د خپل ځان له تهمت څخه او د ملامتیا پر یوسف اچول او میړه باعثه کول پر تعذیب د یوسف ﷺ، علماً وايي چي کلمه "ما" یا نافیه ده او یا لپاره د استفهام انکاري او مراد له سوء څخه زنی ده. او له کلمه څخه د من یوسف ﷺ مراد دی، نه ده جزاً د هغه چا چي ستا واهل یعني ماینې ته يې د زنی اراده کړې وه.

**درویش وايي**: چي زلیخا وقطفیر ته وویل چي زه په دار السرور کي په خوارږه خوب بیده وم چي دا غلام عبري زما د پرتوګانې په خلاصولو بخت ؤ زه پر راویښه سوم ده راڅخه میدان کړه د فرار وخوا ته.

## إِلَّآ أَن يُسْجَنَ أَوْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۝

مګر دا چي دی یا بندي کړل سي او یا دي عذاب الیم ورکړل سي مثلا په درو دي ووهل سي لکه زاني غیر محصن.

روایان د قصې وايي چي یوسف چي د سجن او عذاب الیم لفظ واوریدی وبېریدی او په عین حال کي قطفیر وده ته وویل یا غلام هذا جزائي منک حیث احسنت الیک او تا زما سره خیانت قال المولی الجامي قدس سره في بیان معنی قول قطفیر لیوسف.

نمي شايد درين دير پر آفات ......... جزا احسان اهل احسان را مكافات
زكوى حق گذاري رخت بستي ......... نمک خوردي نمكدان را شكستي
نو يوسف د برائة خپل رښتيا ويلو ته مجبوره سو نو را پورد اصل موضوع
يې تولو وعزيز مصر ته بيان كړى وقال.

**قَالَ هِيَ رَاوَدَتۡنِي عَن نَّفۡسِيۚ وَشَهِدَ شَاهِدٞ مِّنۡ أَهۡلِهَآ**

او وې ويل چي زليخا زما څخه زما د نفس يعني د ما څخه طلب د جماع او زنى وكړى "بيت" زليخا هر چه ميگويد دروغ است" دروغ او چراغ بي فروغست عزيز ورته وويل چي زه ستا خبره نه منم بې دليله. او شاهدي ادا كړه يو شاهد د قريبانو څخه د زليخا يعني پر پاكي. د يوسف د طلب څخه د زنى د زليخا څخه او ملامتيا د طلب د زنى يې د زليخا پر غاړه واچول. بعض راويان وايي چي د زليخا د اكا زوى او بعض وايي د ماما زوى ؤ او دا شاهد طفل د زانگو ؤ چي خداى پاک پر خبرو راوستى چي په وروسته كي به بيان دده معقول شاهدي په تفصيل سره راسي.

**نهانه فائده**: بغوي رحمه الله له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت كړى دى چي څلور كوچنيانو په وخت كي د غايت كوچنيوالي خبري كړي دي او هغه څلور يې بيان كړي دي. جلال الدين سيوطي رحمه الله وايي چي ما تلاش كړى د هغو كوچنيانو چي په حال كي د زانگو يې خبري كړي دي. نو يوولس ته مي رسولي دي چي د هغو بيان يې په عربي بيتو كړى دى. او روح البيان شپږ راوړي دي چي په هغو كي څلور هغه دي چي له ابن عباس رضي الله عنهما څخه مروي دي. نو مان يې د روح البيان په اطفالو كي او هغه يوولس چي علامه سيوطي رحمه الله يې نومان راوړي وه هم په هغه شپارس كي چي راوړي دي ذكر سوي دي.

**درويش وايي**: چي روح البيان دا اول دا نومان ښودلي دي (١) شاهد برائة يوسف عليه السلام كما في نحن فيه (٢) نبينا صلى الله عليه وسلم چي دده مبارک په اول كي د ولادت اوله خبره دا وه "الله اكبر كبيرا والحمد لله كثيرا وسبحان الله بكرة واصيلا" (٣) عيسى عليه السلام اني عبدالله آتاني الكتاب الى آخره كما في سورة مريم (٤) مريم والدة عيسى عليه السلام (٥) يحيى عليه السلام (٦) ابراهيم خليل الرحمن فانه لما سقط على الارض من رحم امه پر پښو جګ ودريدى وقال لا اله الا الله وحده لاشريک له له

الملک وله الحمد. الحمد لله الذي هدانا لهذا (۷) نوح ﷺ خبري وکړې وروسته تر ولادت. ولي چي دی له موره په يو غار کي پيدا سو خوفاً من الاعدا. نو مور چي په ده کالي واغوستل او په يوه تبوکره کي يې وېېچی او غنی تله مور يې داسي وويل واولداه. نو زوی يې ورته وويل لاتخافي احداً علي يا اماه فان الذي خلقني هو يحفظني. وقصة طويلة (۸) موسی ﷺ چي مور وزېږاوه دی کښېنستی او مور ته يې وويل يا اماه لاتخافي من فرعون فان الله معنا (۹) تکلم يوسف ﷺ حين کونه في بطن امه اذا قرب ولادته انا المفقود عن وجه ابي زماناً طويلاً. مور يې وه يعقوب ﷺ ته وويل. ده ورته وويل اکتمي امرک (۱۰) په يوه روايت کي راغلي دي چي يوه ښځه اميدواره وه چي وخت د وضع الحمل يې ... دې سو دې ونږل. له نس څخه ددې زوی يرحمک الله ورته وواېه چي ټولو حاضرينو واورېدی (۱۱) مولود صغير د يوې ښځي چي خلگو يوه ښځه راکشول چي تا زنی کړې ده مولود شاهدي د برائة پر اداً کړه (۱۲) طفل د يوې ښځي چي اصحاب الاخدود چي قصه يې په قرآن کي په سورة بروج کي ذکر ده پر خپلي مور ناره وکړه وسيأتي بيانه في تفسير تلک السورة ان شاء الله (۱۳) زوی د ماشطة بنت فرعون يعني د خادمه د لور د فرعون زوی سبط ابن الجوزي دا قصه په بسط او تفصيل سره راوړې ده (۱۴) مبارک اليمامة له بعضو صحابه وو څخه روايت دی چي يوه سړای ته ورغلم په مکه کي ورئيت فيها رسول الله ﷺ وسمعت عجباً يو سړي خپل زوی په ورځ کي ولادت په يوه ټکوره کي پېچلی وه عليه الصلوة والسلام ته راوړی لپاره د تحنيک چي په هغه کي دا رواج وو چي د چابه زوی وزېږېدی نو هيڅ شی يې نه ورکاوه اول به يې عليه الصلوة والسلام ته راوړی او عليه الصلوة والسلام به خورما په خوله کي وژوول هغه خوږې مبارکي ناړې به يې د طفل په خوله کي ورکړې تاچي اول د کوچني ونس ته د عليه الصلوة والسلام مبارکي ناړې داخلي سي او دې کار ته يې تحنيک وايه. نو دې سړي چي خپل زوی راوړی، نو عليه الصلوة والسلام وه کوچني ته داسي وويل من انا يا غلام. کوچني په واضح ژبه ورته وويل انت رسول الله ﷺ. عليه الصلوة والسلام ورته وويل صدقت بارک الله فيک. فقط دا يوه خبره چي طفل وکړه بالا ساکت سو. صحابه ﷺ وايي مور به دا کوچنی مبارک اليمامة باله وهذه الواقعة في حجة الوداع.

**درويش وايي:** چي وهذه معجزة جليلة لرسول الله ﷺ (۱۵) په انسان العيون کي چي د يو کتاب نوم دی داسي راغلي دي چي شيخ محي الدين ابن عربي قدس سره وخپلي لور ته وويل چي نوم يې زينب وه او د رضاع په وخت کي نژدې وه يوه کال ته وه، يا زينب ستا څه حکم دی په هغه سړي کي چي په ماينه دخول وکړي او انزال نه سي؟ زينب ورته وويل عليه الغسل فتعجب الحاضرون من ذالک لما ان حکمها بالغسل موافق لما جاً في الحديث الصحيح الذي رواه البخاري وغيره قال عليه الصلوة والسلام اذا جاوز الختان الختان وجب الغسل انز او لم ينزل او کما قال ﷺ، ابن العربي رحمه الله وايي يو کال مي ددې لور څخه ځان پټ ساتلی و، مور د زينب چي د ابن العربي رحمه الله ماينه وه اجازه د حج يې له ما څخه وغوښتل، ما هم اجازه ورکړه، نو چي زه ملاقات ته د ماينې ورغلم مور يې پر اوښ سپره وه او زينب ته يې تې ورکاوه، دمخه تر دې چي مور يې ماوويني زينب زه وليدم هذا ابي وضحکت يعني نيکه مي دی ورمت نفسها الي.

**درويش وايي:** چي وهذه القصة کرامة جليلة لاوليا الله ومعجزة لرسول الله ﷺ لانهم قالوا ان کرامة الولي معجزة للنبي ﷺ (۱۶) د بخاري د روايت سره سم په بني اسرائيلو کي د جريج په نامه يو راهب و چي يوه صومعه يعني عبادت خانه يې د يوه غره په لمن کي جوړه کړې وه چي خلگ به يې ملاقات او زيارت ته ورتله او خلگو ښه عقيده ورته درلوده، نو يوه بغيه يعني بد کاره ښځه وه (يا کونډه يا پېغله) هغې وويل چي زه به دا جريج په يوه فتنه اخته کوم، نو دا ورغله جريج ته چي زما سره زنی وکړه، جريج چي د خدای پاک نېک بنده و هيڅ التفات يې ورته ونه کړی، نو يو شپانه چي پسونه يې پېول او د پسو رمه به يې د جريج د صومعې سره مابنام پنډول، دا ښځه ورغله هغه شپانه يې پر ځان وخېژاوه يعني زنی يې ورسره وکړه رفته رفته هغه ښځه حامله سوه او زوی يې راوړی، خلگو ورته وويل چي تا خو مېړه نه درلودی دا زوی دي له چا څخه پيدا کړی دی؟ دې ورته وويل چي د جريج څخه چي په بني اسرائيلو کي دی، معاملې شهرت پيدا کړی، نو د بني اسرائيلو يوه لويه ډله ورغله جريج يې مظبوطه ضرب او کوب کړی او صومعه يې ورونړوله، نو جريج ورغلی اودس يې تازه کړی دوه رکعته

نقل یې وکړی او خدای پاک ته یې زارۍ وکړې چې له دې فتنې څخه مې خلاصوه، وروسته ورغلی د هغه طفل نوزاد څخه یې پوښتنه وکړه او لاس یې پر سر ورکښېښو، او ورته وه یې ویل په حق د هغه چا چې ته یې پیدا کړې یې اخبرني من ابوک. فتکلم باذن الله تعالى ان ابي فلان الراعي. بني اسرائیل د جریج په پښو او لاسو کې ورپرېوتل او ورته وه یې ویل چې ستا صومعه به موږ په زرو د رجوړوو، جریج ورته وویل لا پر هغه پخوانۍ حال یې جوړه کړئ.

إِن كَانَ قَمِيصُهُۥ قُدَّ مِن قُبُلٍ فَصَدَقَتْ وَهُوَ مِنَ ٱلْكَـٰذِبِينَ ۝

که قمیص د یوسف څیر وُ د مخ له خوا، نو زلېخا رښتیا وایي او یوسف د دروغو ویونکو څخه دی، ولې چې قمیص یې دمخه خوا څیرې وي، نو خو معلومه سوه چې دې یوسف له ځان څخه دفع کاوه هغه نه دفع کېدی ځکه قمیص د مخ له خوا څیري سو.

وَإِن كَانَ قَمِيصُهُۥ قُدَّ مِن دُبُرٍ فَكَذَبَتْ وَهُوَ مِنَ ٱلصَّـٰدِقِينَ ۝

او که یې قمیص د شا له خوا څیري سوی وُ، نو زلېخا دروغ وایي او یوسف له رښتیا ویونکو له ډلې څخه دی، ولې چې معلومه سوه چې یوسف ځني تښتېدی زلېخا په پسې وه اخیر یې د شا تر لمن ټینګ کړی یوسف چې زور کړه د شا د خوا لمن یې څیري سوه.

**پوښتنه**: څه ربط او تعلق سته ددې دوو شرطیه قضیو د هغه قول سره وشهد شاهد؟

**ځواب**: دا دوې محکمې دي له قول څخه د شاهد په تقدیر د قول والتقدیر وشهد شاهد آه وقال ان کان قمیصه قد من قبل الی اخیر الشرطتین.

**سوال**: دا قول طفل ته یې شهادت څرنګه ووایه او سره ددې چې شهادت په شرع کې اخبار دی په ثبوت د حق د غیر د شاهد پر بل چا باندې بلفظ اشهد؟

**ځواب**: دا دوې شرطیه قائم مقام د شهادت دي چې یا صدق د زلېخا وملامت د یوسف په ثابتېږي یا صدق د یوسف ملامتي د زلېخا په واضح کېږي کما في الشهادت الشرعیة ولهذا اطلق لفظ الشهادة.

فَلَمَّا رَاٰ قَمِيْصَهٗ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ قَالَ اِنَّهٗ مِنْ كَيْدِكُنَّ ؕ اِنَّ كَيْدَكُنَّ عَظِيْمٌ ﴿۲۸﴾

نو هغه وخت چي وليدي عزيز مصر قطفير د زليخا مېره قميص د يوسف د شا له خوا څيري ؤ او دا يې يقين سو په قرار د شاهدي دطفل چي كار زليخا كړى دى، نو يې وويل چي دغه كار چي ستا او د يوسف په كښي اختلاف دى دا ستاسي د جنس ښځو له مكر او حيلو څخه دى او ستاسي د نوع مكر ډېر لوى دى، نو زليخا په دې وينا د عزيز ډېره شرمنده سوه.

**سوال:** كيد يې يوازي وزليخا ته ولي مضاف نه كړى يعني انه من كيدك بل كه خطاب يې عام كړى من كيدكن يې ووايه؟

**ځواب:** په تعميم كي د خطاب تنبيه پر دې ده چي دا كيد ستاسي د نوع تقاضا ده "فله عرق فيكن" په تحقيق ستاسي د ښځو كيد لوى دى. ولي چي كيد د ښځي د زړه سره د مېړه ډېر لصوق لري او اشد تاثيراً دى من مكر الرجال.

**فائده:** بعض علماً وايي چي زه له كيد او مكر څخه د شيطان دومره نه بېرېږم لكه د كيد او مكر څخه د مايني. ولي چي خداى پاك وايي "ان كيد الشيطان كان ضعيفاً" او د ښځو په باره كي يې وويل "ان كيدكن عظيم" ولذا ورد ان النسآ حبائل الشيطان.

**درويش وايي:** چي په تجربه ثابته ده چي ښځه كولاى سي چي پلار او زوى سره جلا كړي او په اجنگ يې اخته كړي، او ورور و ورور سره اخته كړي اول مكر د ښځي ژړا او اوښكي تويول چي ددې اختياري كار دى. خصوصاً پر هغه چا د مايني درواغ او مكر ډېر اثر كوي چي مېړه ددې سره ملاعبت او مچي څني اخلي چي مقدمه د جماع دي.

**درويش وايي:** چي د عزيز ومخته چي طفل شاهدي ادا كړه. نو دده يقين سو پر برائت د يوسف ﷺ، او پر ملامتيا د زليخا. نو يې دا خبره وكړه "انه من كيدكن آه" كما قال العارف الجامي قدس سره:

عزيز از طفل چون گوش اين سخن كرد ....... روان تفتيش حال پيرهن كرد
چو ديد از پس دريده پيرهن را ....... ملامت كرد آن مكاره زن را
ز كيد زن دل مردان دو نيمست ....... زنانرا كيدهاى بس عظيمست

عزیزان را کند کید زنان خوار....... بکیدزن بود مردانی گرفتار
زمکرم زن کسی عاجز مبادا........زن مکاره هرگز خود مبادا

**درویش وايي:** چي ظاهر د ښځو ضعيف دي سړی وايي چي دا به رښتيا وايي او باطن د دوی خبيث او کوږ دی. فانهن خلقن من ضلع آدم ﷺ وضلع لايكون الا اعوج. وعقولهن قاصرة. ځکه د دوو ښځو شاهدي د يوه نر سره برابره ده او ديانت يې هم کم دی ځکه په مياشت کي پينځه يا شپږ ورځي بېلمه لمانځه او روژې تېروي کما قال رسول الله ﷺ. او د ښځو سره شيطان سته چي مخامخ ونر ته مکر او حيلې کوي او شيطان په غلا او په پټه وسوسې ونر ته ور اچوي. وفي الحديث الصحيح قال رسول الله ﷺ ما رئيت من ناقصات عقل ودين اذهب للعب الرجل الحازم (اي العاقل القوي الراى) من احدى كن.

يُوسُفُ أَعْرِضْ عَنْ هٰذَا ۜ

اې يوسف له دې قصې څخه اعراض وکړه يعني شائع کوه يې مه چي ماته لوی پېغور جوړ ېږي..... بيت:

قدم از جای غمازی بدرنه ............. که باشد پرده پوش از ده دربه.

او بيا عزيز وزليخا ته خطاب وکړی.

وَاسْتَغْفِرِي لِذَنْبِكِ ۖ إِنَّكِ كُنتِ مِنَ الْخَاطِئِينَ ۝

او ته يا زليخا طلب د بخښي وکړه د خپلي ګناه چي اراده او عزم د زنی دي د يوسف ﷺ سره په تحقيق ته په من القوم المذنبين کي يې. نو خطأ په معنى د ذنب ده.

**سوال:** عزيز خو مخاطب د زليخا ؤ. نو يې من الخاطئات ولي نه ووايه؟

**ځواب:** د عزيز دا قصد نه ؤ چي يوازي د ښځو حال بيان کړي بلکي بيان د نوع دی که رجل وي او که انثى. نو په صيغه راوړلو د جمع مذکر يې تغليب د نر پر ښځه وکړی. تاريخ پوهان وايي چي عزيز ډېر حليم سړی ؤ. او بې غيرته هم ؤ ځکه يې زليخا ته ضرب او کوب ورنه کړی بلکي په دغه قدر يې کفايت وکړی "انک کنت من الخاطئين"........ ابيات جامي رحمه الله:

عزيز اين گفت وبيرون شد زخانه........ بخوش خويی سمرشد درزمانه
تحمل دل کشت اما نه چندان ........ نگر خويی خوشست مانه چندين

راوي وايي چي عزيز قسم واخستی چي د زلېخا سره به څلوېښت ورځي ملاقات ونه کړم او يوسف ﷺ يې له کوره وه ايستی په نورو کارو او خدمت يې الخته کړی او زلېخا يوازې پاته سوه. چي د يوسف ﷺ د نوراني مخ له ليدلو څخه هم محرومه سوه.

## وَقَالَ نِسْوَةٌ فِي الْمَدِينَةِ

او وويل ښځو په ښار کي د مصر.

**پوهسه:** چي محمود آلوسي رحمه الله په روح المعاني کي وايي چي مشهوره داده واليه ذهب ابوالحيان چي نسوة جمع تکسير ده للقلة کصبية وغلمة. او مفرد له خپله لفظه نه لري بل من معناه وهو امرئة. او ابن سراج وايي چي اسم جمع د مرئة ده وعلى کل فتانيثه غير حقيقي، ولا التفات الى کون ذالک المفرد مؤنثا حقيقياً. نو ځکه يې فعل مؤنث نه راوړی يعني قالت، ودې څواب ته مظهري او روح البيان هم اجمالي اشاره کړې ده.

**درويش وايي:** چي دا ښځي پينځه وې (۱) زوجة الحاجب (۲) زوجة الساقي (۳) زوجة الخباز (۴) زوجة الدواب (۵) و زوجة البواب، دې ښځو دا خبري هلته وکړې چي اوازه د امرئة العزيز او د يوسف او مراودة د امرئة العزيز په مصر کي نشر سوه.

**پوښتنه:** دا اوازه په مصر کي څا ګډه کړه او سره ددې چي عزيز مصر يوسف ﷺ ته وويل اعرض عن هذا؟

**څواب:** دا شهرت په مصر کي د يوسف ﷺ له خوا نه دی راغلی بلکي د زلېخا د خوا څخه دی. ولي چي دې ته به هره ښځه راغله زلېخا به خپل حال او د معشوق يوسف حال ورته وايه.

مصرع:............ که عشق ومشک را نتوان نهفتن.

## امْرَأَتُ الْعَزِيزِ تُرَاوِدُ فَتَاهَا عَنْ نَّفْسِهِ قَدْ شَغَفَهَا حُبًّا

د عزيز مايني زلېخا مراوده د خپل مريي عبراني څخه يعني يوسف ﷺ له نفسه دده، يعني دده جماع او فاحشه غواړي. په تحقيق يوسف ورځيرلي ده

پرده ددې د زړه فدخل فيه حباً.

**پوه سه**: چې لفظ د "حباً" تميز دی له نسبت څخه د شغفها ای دخل حبه قلبها، سدي رحمه الله وايي چې شغاف يوه نری پرده ده پر زړه باندي.

إِنَّا لَنَرَىٰهَا فِي ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴿٣٠﴾

موږ دا وينو (رؤية علمي دی) په گمراهي کې له هدايت څخه وبعد من الصواب، ولې چې دا د عزيز مصر دا لويه رتبه او دا له مريي څخه جماع غواړي. نو دا ظاهره گمراهي ددې ده چې خپل د عصمت پرده په خپله پر ځان څيري او ځان وتوله اهل مصر ته انگشت نما کوي، لکن عشق د زليخا که څه هم مجازي ؤ لکن دا مجبور الحال وه، خواجه عطار قدس سره وايي:

هرکه او درعشق صادق آمدست ...... برسرش معشوق عاشق آمدست

گر بصدقی عشق پیش آید ترا ...... عاشقت معشوق خويش آيد ترا

**درويش وايي**: چې په اخير کې ددې قصې به مصداق د شيخ عطار د بيتو تاته ښکاره سي ان شا الله تعالى.

فَلَمَّا سَمِعَتْ بِمَكْرِهِنَّ

نو چې واورېدی زليخا مکر ددوی يعني غيبت ددوی.

**سوال**: غيبت ته يې مکر ولې ووايه؟

**ځواب**: له دې سببه چې دا خبره دوی په پټه کول لکه ماکر چې مکر په پټه کوي، او ابن اسحاق رحمه الله وايي چې مکر يې له دې کبله ورته ووايه چې ددوی غرض دا ؤ چې د يوسف عليه السلام وليدلو ته حيله جوړه کړي چې د يوسف د حسن او جمال دوی اورېدلي وه.

أَرْسَلَتْ إِلَيْهِنَّ وَأَعْتَدَتْ لَهُنَّ مُتَّكَـًٔا

دوی يو څوک ورواستاوه د مهمانۍ لپاره او زليخا ډېره په زړه پوري مهماني مهيا کړې وه او څلوېښت ښځي چې له دوی څخه دا غيبت صادر سوی ؤ راوه يې غوښتلې، ابن عباس او ابن جبير رضي الله عنهم او سعيد بن المسيب او قتاده رحمهما الله وايي چې د "متکأ" معنی طعام دی.

**سوال:** متكأ خو د تكيې شي ته وايي، نو طعام ته څرنګه متكأ وويل سو؟
**ځواب:** مېلمانه چې اول راسي بالښتانو ته تکيه کوي د حضور طعام تر وخته پوري، نو طعام ته يې متكأ وويل استعارةً يقال يتكأنا عند فلان اى طعمنا عنده.

**فائده:** چونکه تکيه ژده طعام خوړل د متكبرانو عادت دی نهی رسول الله ﷺ ان ياكل احد بشماله (اى بغير عذر) وياكل متكأ (رواه ابوشيبة في كتابه)

او بعض علماً وايي چې متكأ هرهغه طعام ته وايي چې په چاړه قطع کېږي كان القاطع يتكأ عليه بالسكين لكه سېب او نارنج وغيره، او ابو يزيد انصاري وايي چې هر طعام چې په چاړه پرېکېږي هغه عرب ستک بولي، او ستک او بتک بالباً والميم قطع ته وايي، بغوي رحمه الله وايي چې زليخا خونه ښائسته کړې وه بالمفروشات الفائقة او رنګارنګ مېوې او اطعمه يې ايښي وه او بالښتان يې د تکيې لپاره هم صف صف ايښي وه او دا ښځي يې دعوت کړي وې.

**وَّاٰتَتْ كُلَّ وَاحِدَةٍ مِّنْهُنَّ سِكِّيْنًا وَّقَالَتِ اخْرُجْ عَلَيْهِنَّ**

او زليخا د هري ښځې په لاس چاړه ورکړه چې ددوی په زمانه کې غوښې په قطع د چړې خوړل کېدې كما هو العادة اليوم في المتكبرين والمترفهين، او زليخا و يوسف ته وويل پر راووځه، زليخا يوسف عليه السلام په بل ځای کې کښېنولی ؤ.

عکرمه رحمه الله وايي چې فضل د يوسف عليه السلام په حسن او جمال کې پر نورو ذی حسن والاوو باندې لکه فضيلت د څلورلسم د سپوږمۍ پر نورو ستورو. په حديث شريف کې چې روايت يې ابن جرير او حاکم کړی دی له ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه چې رسول الله ﷺ وويل چې ما وليدی يوسف عليه السلام په ليلة المعراج کې كالقمر ليلة البدر.

زليخا ويوسف عليه السلام ته ډېرې زاری وکړې چې زه ستا د محبت له سببه د مصر د ټولو ښځو په خوله کې افسانه سوم او پر ما يې دا فيصله کړې ده "انا لنراها في ضلال مبين" او دوی ستا حسن ناديده ده زه يې د ملامتيا په غشو ويشتلې يم ته ښه ځان په ښو کالو سره اراسته کړه او دوی چې تا ووينې ما به معذوره وګڼي ستا په عشق، او زما به دوی ته ژبه د ملامتيا د جواب خلاصه

سي، او دوی به زما له ملامتیا څخه توبه وکاږي او پښېمانه به سي، دا به ستا لوی احسان وي زما سره. الغرض زلېخا یوسف ﷺ په وړته زاریو قانع کړی چي ودغو ښځو ته راووځي بې حجابه په ښه لباس کي.

فَلَمَّا رَأَيْنَهُۥٓ أَكْبَرْنَهُۥ

نو چي ولیدی ښځو د یوسف جمال او حسن په حیرت کي ولوېدې او هوش یې له سرو څخه ولاړی، روح البیان، مظهري او روح المعاني له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت کړی دی چي معنی د "اکبرنه" "حضن" یعني حیض راغلی، او ضمیر و یوسف ته راجع دی بحذف المضاف ای من اجل یوسف.

**پوښتنه**: حیض ته کبر ولي وایي؟

**ځواب**: بلوغ د ښځي په حیض معلومېږي او دا حالت د حیض بې وخت، وښځي ته هغه وخت پېښېږي چي په غایت درجې کي د جماع شوق یې په زړه کي پیدا سيْ، عربي محاوره یې داده "اکبرت المرئة اذا حاضت کذا في تفسیر الکواشي".

**درویش وایي**: چي دا تفسیر چونکه نادر وُ، نو ځکه ما وتفاسیرو ته حواله ورکړه تاچي ژبه د حاسد اعظم خپل عاق الاب المرحوم کتاب فروش بنده سي

چشم بد اندېش که بر کنده باد ..... عیب نماید هنرش در نظر

هم یحسدونني وشر الناس کلهم ..... من عاش في الناس یوماً غیر محسود

دا د پوه سړي قاعده ده چي د سپو د غپا په سبب خپل سفر نه قطع کوي.

**درویش وایي**: چي ښځي د مصر چي د زلېخا مېلمنې وې چړې یې په لاس کي وې چي اترج او سېب وغیره یې قطع کاوه.

وَقَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ وَقُلْنَ حَاشَ لِلَّهِ مَا هَٰذَا بَشَرًا

او دوی په چاړه خپل لاسونه پرې کړه یعني دومره یې هوش له سرو څخه په لیدلو د یوسف ﷺ ولاړی چي دوی په ځای کي د قطع د سېب وغیره چړې پر خپلو لاسونو تېرولې او د غایت حیرت څخه په الم د قطع الید نه پوهېدلې یعني لاسونه یې له اختیار څخه وتلي وه او زړونه یې له ادارک څخه د الم الید غافله وه کذا في تفسیر التبیان، نو دوی یعني ښځو وویل تنزیه او پاکي ده خدای پاک لره له عجز څخه او تعجب دی خدای پاک لره پر کمال قدرت دده یعني داسي حسن

فوق العادة يې په يوسف عليه السلام كي اېښې دي. اصل ددې كلمې حاشا لله ؤ د كثرت استعمال له كبله الف ځني حذف سو. دا يعني يوسف خو نه دی بشر، ولي چې په بشر كې دومره خوبصورتي او ښائست چا نه دی ليدلی الی يومنا.

**بيوه سه**: چې عمل د ما نافيه لكه عمل د ليس دی، مذهب د حجازيينو لمشاركتها في النفي. او اهل كوفه يې منصوب په نزع د حرف جر بولي. والتقدير عندهم ما هذا ببشر.

إِنْ هَٰذَآ إِلَّا مَلَكٌ كَرِيمٌ ﴿٣١﴾

نه دی دا شخص يوسف مگر ملكه ده چې گرانه ده پر خدای.

**درويش وايي**: چې د خلكو په عقولو كې دا راسخ ده چې ملائكه احسن صورة دي تر هر چا چې ژوندي مخلوق دی. او دا هم د خلكو په عقولو راسخ ده چې بدرنگه تر شيطان نسته، داغه رنگه تشبيه د حسن الصورة د ملكې سره كوي وايي فلانی ملكه ده، او د يو قبيح صورته تشبيه د شيطان سره كوي وايي چې فلانی لكه شيطان.

**حكايت**: جاحظ چې يو ستر عالم ؤ په نحو او معاني كې او په صورت او مخ ډېر بدرنگه ؤ، جاحظ وايي يو وخت زه په بازار كې روان وم يوې ښځې راته وويل چې ملا صاحب تر دغه دكان د زرگر به زما سره ولاړ نه سې، ما ورته وويل چې درسره ځم، ښځې زه راهي كړم او زرگر ته يې ودرولم، ښځې زرگر ته وويل چې داغسي ماته اشاره وكړه، ښځې وويل ملا صاحب تكليف مي دركړی خدای پاك دي ثواب دركړي، ښځه راځخه راهي سوه زه حيران پاته سوم چې ددې ښځې څه مطلب ؤ، نو ښځه خو ولاړه ما له زرگر ځخه پوښتنه وكړه چې دې ښځې تا ته څه اشارتي خبره وكړه؟ زرگر راته وويل چې دا ښځه څو مده په ما پسې ده چې ماته له زرو ځخه د شيطان صورت راجوړ كړه ما به ورته ويل چې ما خو شيطان نه دی ليدلی، نو څرنگه يې درجوړ كړم، دې نن ته راوستلې او راته وه يې ويل چې لكه دغه ملا صاحب داسي شی راجوړ كړه، د مصري ښځو د خبرو تائيد: "ماهذا بشراً" په نورو روايتو كې راغلي دي چې يوسف عليه السلام چې به د مصر په كوڅو كې روان ؤ، نو د مخ رڼا به يې په كوڅو كې داسي معلومېدله لكه

رښا د لمر له اسمان څخه وقد صح ان امه راحیل وجدته سارة كانتا جمیلتین جداً.

**درویش وايي:** چي څه وخت چي زلیخا دلیل د مجبوریت خپل په حب کي د یوسف ﷺ وملامتونکو مصري ښځو ته په ښه وجه واضح کړی، نو بیې داسي وویل

**قَالَتْ فَذٰلِكُنَّ الَّذِيْ لُمْتُنَّنِيْ فِيْهِ**

دغه دی هغه عبراني مریی چي تاسي زه ملامتولم په عشق کي دده، په تاسي بې په یوه دیدار څه فسادونه وکړه، نو زما به په روز مره دیدار کي څه حال وي.

**پوه سه:** چي یوسف که څه هم حاضر ؤ لکن اشاره یې په لفظ د بعید چي "ذالک" دی ورته وکړه اشارةً الی بعد رتبته کذا قالوا في قوله تعالی ذالک الکتاب لاریب فیه فتأمل.

**وَلَقَدْ رَاوَدْتُّهٗ عَنْ نَّفْسِهٖ فَاسْتَعْصَمَ**

او په تحقیق ما طلب وکړی له نفسه دده کنایة عن الجماع ده لارد عصمت خپله کړه او ماته یې منع وکړه، زلیخا چي دا اقرار ومصري ښځو ته وکړی ددې لپاره چي دوی هم زما سره کومک وکړي او یوسف ته زما سره همکاري وکړي، ولهذا مصري ښځو یوسف ﷺ ته وویل اطع مولاتک ددې په خوله وکړه.

**درویش وايي:** چي زلیخا د حیلو په باب کي نسوه کامیابه په خپل مقصد کي او د عجز او زاریو کار یې هم په درد نه وخوړی اخیراً د زور او پېش رو کار ته یې لاس ورواچاوه او وه یې ویل:

**وَلَئِنْ لَّمْ يَفْعَلْ مَآ اٰمُرُهٗ لَيُسْجَنَنَّ وَلَيَكُوْنًا مِّنَ الصّٰغِرِيْنَ ۝٣٢**

"لام موطئه د قسم محذوف دی" که چېري یوسف ونه کړي هغه کار چي زه دی په امر کوم یعني الجماع، په تحقیق دی به بندي کړل سي او هر آئینه دی به گرځي د ذلیلانو په ډله کي.

**پوه سه:** چي "لیکونن" مؤکد په نون خفیفه دی چي الف سره اوړي په وقف کي لشبهها بالتنوین.

**درویش وايي:** چي جامي رحمه الله په بیان کي د وعید د زلیخا و یوسف ته داسي وايي:

اگر نه نهد بکام من دگر پای ........ ازین پس کنج زندان سازمش پای
بگردد مرغ وحشی بدان رام ........ که گیرد درقفس یک چند آرام

**قَالَ رَبِّ السِّجْنُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِمَّا يَدْعُونَنِيٓ إِلَيْهِ**

یوسف وویل یا رب بندي خانه زما خوښه ده تر هغه کار چي زلیخا او کومکیانې ددې یعني د مصر ښځي وهغه کار ته ما دعوت کوي یعني فاحشة الزنی.

عجب درمانده ام درکار ایشان ........ مرا زندان به از دیدار اینان
به از صد سال درزندان نشینم ....... که یکدم طلعت ایشان به بینم

**پوښتنه:** داعي د زنی خو یوازي زلیخا وه، نو صیغه د جمع یعني "یدعونني" یې ولي راوړه؟

**ځواب:** ما په ترجمه کي ددې آیت ددې پوښتني ځواب ته اشاره وکړه په دې عبارت او کومکیان آه، او بعض مفسرین وایي چي هغو نورو ښځو هم یوسف وخپلو ځانو ته دعوت کړی ولپاره د زنی، او دا هم یو معقول ځواب دی چي یوسف ﷺ مراعات د حسن خدمت د زلیخا وکړی. نو له تصریح څخه یې و تعریض ته مخ واړاوه. علماً وایي که یوسف ﷺ د سجن غوښتنه په دې قول دده رب السجن احب الي" نه وای کړی او سوال د عافیت یې کړی وای په سجن به نه وای مبتلاً سوی.

**درویش وایي:** چي چونکه خدای پاک ته د یوسف ﷺ رتبه د عزیز مصر منظوره وه او هغې رتبې ته بېله بندي خانې نسو ای رسېدلای کما سیئاتي في القرآن العزیز، نو ځکه د یوسف ﷺ پر خوله خدای پاک د "رب السجن احب الي" وروستی لکن قطع نظر له حال څخه د یوسف ﷺ مسلمانانو ته اولی سوال د عافیت دی، له دې کبله یو سړی چي سوال د صبر یې کاوه، ترمذي له معاذ رضي الله عنه څخه روایت کړی دی سمع رسول الله ﷺ رجلاً وهو یقول اللهم اني اسئلک الصبر، قال ﷺ سألت البلاً (لان الصبر انما یکون علی البلاً) فاسئله العافیة، طبراني له عباس بن عبد المطلب رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي ما و علیه الصلوة والسلام ته وویل "علمني شیئاً اسئله ربي عزوجل فقال یا عم سل الله العافیة في الدنیا والآخرة انتهی باختصار الحدیث.

**حكايت**: د یوه شیخ په حال کې د غرق په دریاب کې د محبت الهي داسي نر خوله وو تـل ستا رضـی او محبت غـوارم وهري بلا ته د دنیا تیار یم، خدای پاک عذاب د بولو د بندیدلو پر مسلط کړی، یوه ورځ خو یې په غایت مشقت کې صبر وکړی، اخیر یې د صبر پیمانه لبریزه سوه امکان د صبر یې له لاسه ورکړی، چې په ځان پوه سو، نو یې لمن د جوزو ډکه کړه او د کلي کوچنیانو ته یې وویل چې یو یو جوز درکوم زه به څغلم تاسي ناري راپسي وهئ چې خدایه کاکا دروا غ ویله پښېمانه دی، د کوچنیانو مېله سوه، یو دوه چکره چې یې ورکړه بولې یې ایله سوې.

وَإِلَّا تَصْرِفْ عَنِّي كَيْدَهُنَّ أَصْبُ إِلَيْهِنَّ وَأَكُنْ مِّنَ الْجَٰهِلِينَ

که ته اې خدایه ما خلاص نـه کړې لـه چمـو څخـه ددوی چې دوی زما پـه سترګو کې فاحشه د زنی ښائسته کوي یعني دوام پر عصمت را نـه کړې، زه بـه میل وکړم دوی تـه یعني ددوی دعوت د فاحشـة الزنی بـه قبـول کړم یعني پـه مقتضی د طبع بشري او شهوت انساني. والصبوة في اللغة الميل الى الهوى. نو ددې آیت مقصود دادی چې یوسف ﷺ په ضمن کې اخبار د خدای ﷻ دوام پر عصمت غواړي، او زه به وګرځم د جاهلانو له ډلې په سبب د ارتکاب د فعل د فاحشة الزنی لان العاقل لايقبل القبيح شرعاً.

**فائده**: مسلمان چې هره ګناه کوي په جهالت کې یوه یوه درجه یې پورته کېږي الا ان يتوب.

فَٱسْتَجَابَ لَهُۥ رَبُّهُۥ فَصَرَفَ عَنْهُ كَيْدَهُنَّ ۚ إِنَّهُۥ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلْعَلِيمُ

نو قبول کړی خدای پاک خواست د یوسف چې په ضمن کې ددې خبرو د یوسف راغلي وه الا تصرف آه، نو خدای پاک دفع کړی له ده څخه مکر او کید د زلیخا او ملګرو پر دې ډول چې یوسف ﷺ ته یې ثبات او دوام پر عصمت ورکړی حتی چې ده سجن مختار کړی ولو کان مشقة عظيمة على اللذات الشهوية چې پـه ضمن کې د هغه معصیت الهي د زنی نغښتی و، پـه تحقیق خدای ﷻ اوریدونکی دی د دعا د متضرعینو او خبر دی په احوالو ددوی ومن جملتهم يوسف الصديق.

ثُمَّ بَدَا لَهُمْ مِّنْ بَعْدِ مَا رَاَوُا الْاٰيٰتِ

وروسته ښکاره سوه عزيز مصر او همکارانو مشاورينو ته دده وروسته تر دې چي دوى وليدل دلائل دالة پر صدق د يوسف ﷺ او برائت دده من كلام الطفل وقد قميص من دبر وقطع النسا ايديهن وعدم الامتثال ليوسف لدعوتهن وقبول السجن في مقابل دعوتهن الى الزنى مع زليخا ومعهن.

**پوه سه:** چي په "بدا" کي ضمير مبهم دى چي تفسير يې دادى:

لَيَسْجُنُنَّهٗ حَتّٰى حِيْنٍ ﴿۳۵﴾

چي دى بندي کړو تر يو وخته پوري، غرض ددې دا ؤ چي دى بندي کړو نو تهمت له زلېخا څخه به دفع سي. او خلګو ته به په سبب دده د بند دا ثابته سي چي يوسف ملامت ؤ، د "الى حين" معنى داده چي تر هغه وخته پوري چي اواز دفع کېږي او دا اور مړ کېږي يعني بيرته به يې رها کړو.

**پوه سه:** چي دا کار عزيز وکړى په امر د زلېخا ولي عزيز که څه هم ددې مېړه ؤ لکن په حقيقت کي لکه مريى ؤ، او مهار د کارو د عزيز د زلېخا په لاس کي ؤ.

**پوښتنه:** د زلېخا مقصد په دې کي څه ؤ؟

**ځواب:** ددې غرض دا ؤ چي يوسف ﷺ چي د بندي خانې خواري او ذلت ويني زما به مسخر سي او زما ومقصد ته به غاړه کښېږدي، او يا يې دا غرض ؤ چي دا د قريبانو او نورو ښځو له غيبت ويلو څخه شرمېده.

زلېخا ومېړه ته وويل چي دې عبراني مريي زه رسوا او انګشت نما کړم بخبرهم اني راودته عن نفسه. نو يا به ته ماته اجازه راکوې چي خلګو ته ور ووځم او خپل عذر ورته بيان کړم واما ان تحبسه الى ان تنقطع مقالة الناس، يعني يا به يې بندي کوې تر څو چي خبري د خلګو دفع کېږي او د خلګو به يقين سي چي مجرم يوسف ؤ.

**سوال:** زلېخا څرنګه پر خپل محبوب قلبي حبس خوښ کړى؟

**ځواب:** دا ېرېده چي عزيز دا مريى پر بل چا خرڅ نه کړي يا يې له مصر څخه خارج بل ځاى ته يې وانستوي، فرضيت بالحجاب عنه مكان خوف الذهاب للابد، ددې خيال ؤ چي خبر د يوسف له بندي خانې څخه نسي که راځي سو

هورې بندي خانې ته به پټه ورځې خپل قضأ حاجت به کوې ........ مصرع:

لکن این خیال بود ومحال بود وجنون.

عارف جامي قدس سره السامي وايي:

زليخا را چو آن جادوزبان ........... شد از زندان امید وصل جانان

برای راحت خود زیج او خواست ........... دران ویران امید گنج او خواست

چو نبود عشق عاشق را کمالی ........... نه بند د جز مراد خود خیالی

طفیل خویش خواهد یار خود را ........... بکام خویش خواهد کار خود را

ببوی یک گل از بستان معشوق ........... زند صد خار غم بر جان معشوق

راوي وايي چي د عزيز مصر درې بندي خانې وې (١) سجن العذاب چي هغه په مځکه کي کندلی ځای ؤ او په هغه کي لرمان او ماران وه او داسي تاریک ځای ؤ چي د شپې او ورځي درک نه پکښي معلومېدی (٢) يو سجن هغه ؤ چي په مځکه کي يو ځا ځلوښت گزه ژور ؤ، نو د ملک چي به يو چاته ډېره غصه راغله، نو هغه بندي به يې ودې ځاه ته پر سر ورغورځاوه چي د ځاه پای ته نارسیده به مړ سو (٣) سجن العافية وه چي هغ د مځکي پر سر ؤ، نژدې وقصر عزيز ته، نو د ملک يا عزيز چي به يو نوکر يا حکومتي مأمور ته درد راغلی نو په دغه سجن العافية کي به يې بندي کړی، نو زلېخا چي په امر د عزيز د يوسف بندي گول وغوښتل، نو د بندي خانې آمر يې په خط کي نوشته کړی چي د يوسف نامي بندي لپاره يو تنها وطاق اراسته کړه، او بيا يې يوسف ﷺ ته وويل چي پر ما دي ډېري ځيگر خوني تېري کړي او زما هره حيله دي ناکامه کړه او زه دي په ټوله مصر کي شرمنده او انگشت نما کړم اوس به دي زه واستوم وعذاب ورکونکو ته د بندي خانې چي تاته جزأ د عذاب ستا چي پر ما دي تېري کړي درکړي، او زه به په تا واغوندم په عوض کي د وربښمينو کالو چي ما په تا اغوستي وه د وړيو کالي چي نازک پوست دي دروخوري، او داسي قيد او زولنې به دي په پښو کي دراچوم چي هډوکي د پښو به دي درد کوي او داغه يې هم وکړه.

**سوال:** ځرنگه د زلېخا پر يوسف ﷺ چي ددې محبوب قلبي ؤ دا دومره تکليفونه او ربړول روا وبلل؟

**ځواب:** ددې خيال دا ؤ چي يوسف به زارۍ راته وکړي چي ستا مقصد به

درسره کرم خو ماته دا تکلیف مه راکوه لکن یوسف ﷺ د خدای پاک شاکر ؤ چي له مصیبت څخه د فاحشه خلاص سوم او پر دې ناوړه عذاب صابر ؤ.

**درويش وايي:** چي مولى جامي قدس سره دغه ماجرى په منځ کي د يوسف او زلېخا په ښوو دلپذيره فارسي ابياتو بيان کړې ده لکن څه وکړم چي د اوسنى زماني طالبان او امامان د خپل جهل له سببه د فارسي د نظم او نثر څخه ډېر بد وړي. او درويش ته څو واره طالبانو په دې باب کي شکايتونه کړي دي لکن درويش يې شکايت ته غوږ نه دى نيولى:

بگوی آنچه دانی سخن سودمند ....... وگر هیچ کس را نیاید پسند

**درويش وايي:** چي دوى دي خپل د جهل په لغت فارسي سره چي افصح د السنه وو ده وروسته تر عربي چاره وکړي يعني کم از کم پنج کتاب، حافظ، بوستان او گلستان سعدي او يوسف زلېخا کتابونه دي پر يوه استاذ مقتدر في اللغة الفارسية زده کړي، وروښو دا مذکوره کتابونه تقريباً په يوه کال کي ښه زده کېږي د عمر لپاره به دي په ښه درسي.

راوي د قصې وايي چي يوسف ﷺ چي د بندي خاني دروازې ته ورغلى سر يې کښته کړى کښېنستى بسم الله او حمد د خداى ﷻ يې ووايه بنديان پر راټول سول. ولي چي د يوسف د حسن اوازه او محبت د زلېخا دده سره تولو اورېدلي وه او د تعجب گوتي يې په غاښو کي نيولي وې، راوي وايي چي يوسف ﷺ عمومي بنديانو ته داسي دعا وکړه اعطف عليهم الاخيار ولاتخف عنهم الاخبار. خلق وايي چي بنديان اعلم الناس دي بكلام خبر يحدث في خارج السجن.

وَدَخَلَ مَعَهُ السِّجْنَ فَتَيٰنِ

او داخل سوه سره د يوسف يعني په ورځ د دخول د يوسف ﷺ بندي خانې ته "كما يدل عليه كلمة مع" دوه ځوانان يعني مريان د وليد بن ثروان العمليقي ملک مصر، چي يو يې اشپز نان واى ؤ او بل يې شراب جوړوونکى ساقي ؤ. بغوي وايي چي سبب د بند ددې دوو مريانو چي خلگو د ملک مذکور لپاره يو دسيسه جوړه کړې وه چي دى ووژني او دده په ځاى کي بل شاه مقرر کړي. نو اشپز او ساقي ته يې ډېري روپۍ منلي وې چي تاسي د ملک په خوراک او شرابو کي زهر

گډ کړئ. نو خباز (ډوډۍ پخوونکي) داغسي وکړه او ساقي له زهر گډولو څخه پښيمانه سو، نو مابنام چي يې ملک ته طعام او شراب راوړل. ملک چي طعام ته لاس ور وغځاوه ساقي پرغ پر وکړی لا تاكل ايها الملك فان فيه سم. ساقي وملک ته وويل لا تشرب ايها الملك فان الشراب مسموم ايضاً.

پادشاه ملک و ساقي ته وويل چي ته دا شراب وڅښه، ساقي وڅښل هيڅ په ونسوه، ولي په شرابو کي خو زهر نه وه اشپز ته يې وويل چي دا طعام وخوره، نان واى له خورک څخه ډډه وكړه. نو ملک دغه طعام پر يو حيوان تجربه کړی هغه چي وخوړی مړ سو. نو ملک دواړه بندي خاني ته واستول او هغه ورځ د يوسف ﷺ د دخول ورځ هم وه.

**سوال:** ساقي خو بری الذمة ؤ له جنايته. نو هغه يې ولي بندي خاني ته استاوه؟

**ځواب:** د مزيد تحقيق لپاره چي تاسي ته رڼه چا درکړي وي او هغه کسان څوک وه. راوي وايي چي يوسف ﷺ به بنديانو ته ويل هر يوه چي خوب وليدی ماته دي وايي زه يې تعبير ورته کوم. نو دا دوو بنديانو وويل چي راځئ چي دا غلام عبراني تجربه کړو، نو له يوسف ﷺ څخه يې د خپل خوب تعبير وپوښتی هر يوه بېله دې چي دوی خوب ليدلی ؤ پوښتنه يې وکړه. د ابن عباس ﷺ څخه روايت دی "مارئينا شيئاً وان ماتحا لما ليجربنا يوسف. او بعض مفسرين وايي چي دواړو حقيقةً خوب ليدلی ؤ. يوسف ﷺ چي دوی دوه وليدل ډېره غمناکه ناست وه، نو يې سبب دغم ځني وپوښتی هغو خپل تولــه صورت حال ورته بيان کړی او زياته يې کړه چي د شپې مونږ دواړو خوب ليدلی. د هغه په تعبير کي فکر جن يو. يوسف ﷺ ورته وويل چي تاسي خوب ليدلی ؤ ماته ووایاست زه بې تعبير درته وکړم قال الله ﷻ.

قَالَ اَحَدُهُمَآ اِنِّيٓ اَرٰىنِيٓ اَعۡصِرُ خَمۡرًا ۚ

يو دورته وويل چي ساقي وو چي ما خپل ځان په خوب وليدی چي زه نښتيځم يعني چوڅ تانروم انگور.

**يو سه:** چي خمر يې وانگورو ته په وخت کي دعصر ووايه په اعتبار د مايول اليه يعني مجاز دی او بعض علما وايي چي خمر انگورو ته وايي په لغت د عمان فلا مجاز

حینئذ د عربي عبارت د ساقي ترجمه داده چې ما خوب ولیدی چې زه په باغ کې یم او دانګور درختي ته ودرېدم چې درې وانبکیه انګور پورې ځړېدل او د ملک ګلاس زما په لاس کې وو درې سره مې پکښې ونښتېړل ملک ته مې وروړه او ملک وڅښل.

وَقَالَ الْاٰخَرُ اِنِّيْٓ اَرٰىنِيْٓ اَحْمِلُ فَوْقَ رَاْسِيْ خُبْزًا تَاْكُلُ الطَّيْرُ مِنْهُ ؕ نَبِّئْنَا بِتَاْوِيْلِهٖ ۚ

چې ما خان په خوب ولیدی چې اخستی مې وې پر سر برسېره ډوډی چې مرغان خوراک ځنې کوی دا نفر اشپز وو. موږ خبر کړه په تعبیر د دې خوب یعني ما یؤل الیه امره.

**سوال**: خوبونه خو دوه وه نو مفرد ضمیر په "تأویله" کې څه رنګه ورته راجع سو؟

**ځواب**: محمود الوسي رحمه الله په روح المعاني کې وایې چې افراد د ضمیر بتاویل ما ذکر او یا ما روئي دی.

اِنَّا نَرٰىكَ مِنَ الْمُحْسِنِيْنَ ۝

موږ تا وینو یعني په سترګو او یا پر تا علم لرو چې رویت علمي سي د محسینتو څخه یعني چې ښه تعبیر د خوبو کوې چې د هر بندي خوب چې تا یې تعبیر ورته کړی وي هغه سي ختلی وي او یا احسان په معنی د علم دی کما في قول کرم الله وجهه قیمة کل انسان ما یحسنه ای یعلمه" او یا احسان کوونکی یې د بندیانو سره" یعني فاحسن الینا بتعبیر رؤیانا ان کنت تعرفه.

**پوه سه**: چې روح المعاني" او مظهري او روح البیان او قرطبي په متقارب عباراتو سره د دې آیت ترجمه داسي کړې ده" په روایت د ضحاک رحمه الله بن مزاحم چې له ده څخه چا پوښتنه وکړه د دې آیت د تفسیر په باره کې "ماکان احسان بیوسف" ده ورته وویل چې په بندیخانه کې به څوک مریض سو یوسف بیمار پرسي کول او ما یحتاج الیه المریض به یې ورېرابراوه، او پر یو بندي چې به ځای تنګ سو یوسف به ځای ورته فراخه کاوه او که یو بندي به ډېر مسکین وو پر نورو بندیانو به یې چانده ورکوله. او یو بندي نه بلکه ډېر بندیان په بندي خانه کې وه چې د ډېري زمانې څخه به بندیان وه او امید د خلاصون به یې نه وو او ډېر به غمجن وه یوسف به دوی ته تسلي ورکول او دوی ته به یې ویل چې صبر وکړئ خدای جل جلاله به اجرت درکړي" ان مع العسر یسرا" الآیة.

او سره د بنده يوسف په عبادت د خدای ﷻ ډير كوشان ټوله شپه به يې په قيام الليل تېرول، نو بند يانو چي د يوسف اخلاق حسنه او عبادت فوق العادة ولېدی، نو يې وويل يا فتى ما احسن وجهك وخلقك وحديثك ای ځوانه څرنګه نوراني ښائسته مخ دی ستا او څومره زيبا دي اخلاق ستا او څونه خوږې او په زړه پورې خبرې دي ستا "لقد بورك لنا في جوارك" فمن انت ته څوک يې قوم خو يې زده ؤ چي عبراني دی اصل پوښتنه د نسب يې غرض وه د ورته وويل انا يوسف بن صفي الله يعقوب بن ذبيح الله اسحاق بن ابراهيم خليل الله.

**درويش وايي**: چي دا بيان پر يوسف بنا دی پر مذهب د هغو علماؤ چي ذبيح الله اسحاق بولي لكن مشهوره داده چي ذبيح الله اسمٰعيل وو چي په اجدادو كي د رسول الله ﷺ وو. او تحقيق د دې بحث ډېر اوږد دی يعني چي ذبيح الله څوک دی ومن الجانبين دلائل وجوابات "چي دا ځای نه دی د بيانولو . يوبندي وان او سر پرست د بندي خانې ورته وويل يا فتى والله لو استطعت لخليت سبيلك" ای ځوانه كه زما په وسه پوره وای ما به ستا لار در خالي كړې وای يعني ده به ايله كړی وای غرض يې دا وو چي زه خو د حكومت نوكر يم ستا ايله كول مي په طاقت نه دي پوره " لكن سأحسن جوارك تمكن في ای ناجية السجن شئت" په قصه كي راغلي دي چي هغه دوو بند يانو د ملک چي خباز او شراب جوړونكي وه يوسف ته وويل لقد احببناك حين رئيناك يوسف ورته وويل چي ستاسي دې په خدای قسم وي كه به زما سره محبت كوئ" فو الله ما احبني احده الا دخل علي من حبة بلاً لقد احبني عمتي فدخل علی بلاً ثم احبني ابی يعقوب فمن جهة هذا الحب الغيبت في الجب كما مر تفصيله واحبني امرئة العزيز فوقعت في السجن من حبها.

**درويش وايي**: چي د پلار د ورونړو حسد وو چي څاته واچاوه او د زليخا د محبت بلا دی بندي خانې ته راوستی دا ټولي قصې قريبا او بعيدا تيرې سوې.

يوه قصه د بلاد عمه دلته نه ده تېره سوې هغه قصه داوه چي د يوسف ﷺ مور راحيل په نفاس د بنيامين چي تر يوسف وروسته پيدا سو مړه سوه، نو يعقوب ﷺ بني يامين مرضيه ته په لاس وركړی او يوسف چي هم كشنی وو لكن پر پښو ګرځېدی، نو يوسف يعقوب عليه السلام وه خپلي خورته چي د يوسف عمه سي په

لاس ورکړی د تربیې لپاره ترڅو چې د پلاره سره ګزاره کولای سي پر عمه باندې ډېر ګران وو یوسف ﷺ چې تقریبا د اوو اتو کاله سو پلار یعقوب ﷺ خپلې خور ته وویل چې یوسف، نو اوس ماته راواستوه چونکه پر عمه ډېر ګران وو، نو یو کمربند چې قدیما د دې په لاس کې په پټه یعني د خوب په وخت کې د ده تر ملا غوټه کړی یوسف چې پلار ته راوستی چې د دې ورور یعقوب وو دا کورته ولاړه وروسته بېرته راغله چې یوسف کمربند غلا کړی دی چې تلاشي یې په کېښې وکړه کمربند د یوسف تر ملا وو د یعقوبي شریعت سره سم غل د شي به په اندازه د قیمت د غلا کړي شي به د مالک سره د مال اوسپړي او د هغه خدمت به کوي، نو یوسف بېرته عمه د پلار څخه بوتی خپل کورته او د پلاره یې جلا کړی تر هغه چې وخت مقرر تېر سو، نو بیې یوسف د پلار یعقوب عليه السلام په لاس ورکړی، نو ره قصه د محبت د یعقوب ﷺ دده سره تېره سوې ده.

قَالَ لَا يَأْتِيكُمَا طَعَامٌ تُرْزَقَانِهِ إِلَّا نَبَّأْتُكُمَا بِتَأْوِيلِهِ قَبْلَ أَنْ يَأْتِيَكُمَا ۚ

"قال" ای یوسف، تاسي ته به نه سي را طعام حسب المعمول چې تاسي خورئ په بندي خانه کې، مګر زه مو خبر کړم په ماهیت د هغه طعام چې څه شی او څومره به وي، او رنګ او خوند به یې څرنګه وي دمخه تر دې چې تاسي ته راځي.

**یوه سه**: چې اراده د یوسف ﷺ دا وه چې دې دوو بندیانو خباز او ساقي ته د توحید دعوت ورکړی لانه اولی و اوجب علیهما تر تعبیر د خوب چې دوی له یوسف ﷺ څخه پوښتنه کړې وه، او هدایت د ایمان یې ورته وکړی او ایمان یې ددوی په زړونو کې ښائسته او زیبا شی ورښکاره کړی، کما هو طریقة الانبیاء والعلماء والصالحین، من الشفقة علی الناس، نو یوسف ﷺ دمخه تر ارشاد ددوی یوه معجزه من الاخبار بالغیب ورښکاره کړه تا چې دده پر صدق په دعوت د توحید او په تعبیر د رؤیا دلالت وکړي.

**سوال**: دې خبر تیا ته یې تأویل څرنګه وواېه او سره ددې چې تأویل بحسب الاستعمال في العربیة تعبیر ته د خوبو وایي؟

**ځواب**: دا اطلاق له قسم څخه د استعارې دی یعني مطلق طعام خو مبهم دی او بندیانو ته چې راځي هغه نوع معین ده، داغه رنګه خوب لیدل یو مبهم ښا

معلومه شي دي او تعبير يې تعين دي.

**بوه سه:** چي دا استثناً مفرغ ده من اعم الاحوال والمعنى لا يأتيكما طعام في حال من الاحوال الا حال ما نبأتكما به.

**بوه سه:** چي "قبل ان يأتيكما" اى قبل ان يصل اليكما.

**فائده:** دا معجزه په مثال د معجزې د عيسى عليه السلام ده چي خلکو ته به يې ويل "وانبئكم بما تاكلون وما تدخرون في بيوتكم.

ذٰلِكُمَا مِمَّا عَلَّمَنِي رَبِّي

دا ښوونه بعض له هغو شيانو څخه چي زما خداى عزوجل ماته ښوونه کړې ده.

**درويش وايي:** چي مظهري خو دعوه کړې ده چي دا تعليم په وحي قطعي اسماني يعني يوسف په دغه وخت کي نبي ؤ. او روح المعاني او روح البيان وايي بالوحي وما يحصل به العلم كما للاولياً اهل الكشف رحمهم الله ويقال له الالهام

**بوه سه:** چي غرض په دې قول کي د يوسف عليه السلام دا ؤ چي ښوونه د غيب له قسمه څخه د کهانت او عرافت نه ده.

إِنِّي تَرَكْتُ مِلَّةَ قَوْمٍ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ

ما پرې ايښى دى دين د هغه خلکو چي ايمان نه راوړي پر خداى پاک، يعني پر توحيد د خداى عزوجل.

**بوه سه:** چي دا جمله استينافيه ده جواب د سوال مقدر ده چي له ماقبل څخه پيدا سو، كانه قيل لماذا علمك ربك تلك العلوم الجليلة الشان. فاجاب اني تركت آه. يعني ما پرې ايښى دى هغه دين چي خلکو په جمع واري کاوه من الشرک وعبادة الاوثان، فبذالک الترک حصل لي تلک المنقبة.

وَهُمْ بِالْآخِرَةِ هُمْ كَافِرُونَ ۝

او دوى په اخيرت سره يعني بعث بعد الموت سره دوى کافران وه يعني منکران وه.

**بوه سه:** چي کلمه د "هم" ثاني تاكيد دى د اول "هم".

د خداى عزوجل حكمت: علماً حقاني وايي چي يوسف عليه السلام خداى پاک مبتلاً

کړی په مریي توب د قطفیر او بیا په بندي خانه کي د زلیخا له لاسه تاچي یوسف ﷺ په اخیر کي عزیز مصر وګرځي پر مریانو به رحم کوي او د بندیانو احوال پرسي به کوي تاچي بغیر حق بندي خو په بندي خانه کي نسته لکه دی چي ناحقه بندي ؤ. او داغه رنګه یې یوسف مبتلاً کړی په حسد د اقرباؤ او حاسدانو چي دده وروڼه وه کمامر قصته. تاچي دی عادت ونسي د حسد او ظلم سره د قریب او بیګانه او برداشت یې کړي. او مبتلاً یې کړی په غربت او مسافری او جلا وطنی تاچي دی په آینده کي د غرباؤ سره مرسته او ښه برتاؤ وکړي، وهکذا ددې حکمت داسي مثال دی لکه په سورة والضحی کي چي خدای پاک و علیه الصلوة والسلام ته خطاب کوي او وایي:

أَلَمۡ يَجِدۡكَ يَتِيمٗا فَـَٔاوَىٰ ۝ وَوَجَدَكَ ضَآلّٗا فَهَدَىٰ ۝ وَوَجَدَكَ عَآئِلٗا فَأَغۡنَىٰ ۝ فَأَمَّا ٱلۡيَتِيمَ فَلَا تَقۡهَرۡ ۝ وَأَمَّا ٱلسَّآئِلَ فَلَا تَنۡهَرۡ ۝ وَأَمَّا بِنِعۡمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثۡ ۝

کما سیأتي تفصیل ذالک في تفسیر السورة المذکورة (سورة الضحی) في هذا التفسیر ان شاالله تعالی.

## وَٱتَّبَعۡتُ مِلَّةَ ءَابَآءِيٓ إِبۡرَٰهِيمَ وَإِسۡحَٰقَ وَيَعۡقُوبَۚ

او ما متابعت مختار کړی د دین او د ملت د خپلو پلرو (په معنا عام سره چي نیکه ته هم شامل سي) چي ابراهیم، اسحاق او یعقوب علیهم السلام وه. له جد ابعد څخه یې شروع وکړه پر پلار یې ودرول تقدیماً للاشرف فالاشرف او تقدیماً للاقدم زماناً فالاقدم زماناً.

**فائده**: یوسف ﷺ چي خپل آباً او اجداد وه فتیانو ته د ملک بیانول له دې سببه چي ددوی ښه وشوق او اعتماد پیدا سي دده پر خبره او تبلیغ.

**پوهسه**: چي مظهري رحمه الله وایي چي د یو عالم مرتبه په علم کي خلګو ته نه وه معلومه او دده اراده دا وه چي خپل (پېژند ګلوي) په خلګو کي نشر کړم نو دده ته جائزه ده چي خپل د ځان او خپل د علم صفت وخلګو ته وکړي تاچي خلګ دده قدر وپېژني او له ده څخه د علم استفاده وکړي.

**سوال**: دا تزكيه د خپل ځان نه ده، چي هغه ناجائزه ده؟

**ځواب**: انما الاعمال بالنيات. حديث صحيح. او انبياء عليهم السلام خو مامور په دغه سره دي. كريمه" وَأَمَّا بِنِعْمَةِ رَبِّكَ فَحَدِّثْ ۝ "

مَا كَانَ لَنَا أَنْ نُشْرِكَ بِاللَّهِ مِنْ شَيْءٍ

او نسته او نه ښايي موږ ډلي لره د انبياؤ چي موږ به شريک نسو خداى پاک لره يو شى له شيانو كه علوي وي او كه سفلي وي.

ذَٰلِكَ مِنْ فَضْلِ اللَّهِ عَلَيْنَا وَعَلَى النَّاسِ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُونَ ۝

دغه توحيد او علم فضل او مهرباني ده يعني په سبب د وحي او يا الهام صحيح كمامر. او پر خلكو باندي يعني په واسطه د تبليغ او وعظ زموږ لكن ډېر خلگ دد غه نعمت د خداى جل جلاله شكر نه وايي بقبول النصح والوعظ وتبليغ الرسل.

يَا صَاحِبَيِ السِّجْنِ أَأَرْبَابٌ مُتَفَرِّقُونَ خَيْرٌ أَمِ اللَّهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ۝

اى دوو ملگرو زما په په بندي خانه كي، آيا خدايان متعدد دي چي په امكان او عجز كي سره يو شى دي، كه هغه بتان وي يا د سرو زرو يا د سپينو زرو يا د وسپني يا د ډبرو او يا غير له بتانو څخه وي لكه ملكي او بشر، نو دغه ښه دي او كه الله عزوجل ښه دى چي واحد دى په جلال الذات او كمال الصفات كي چي دده هيڅ شى مشابه نه په ذات او نه په صفاتو كي او نه په افعالو كي سته.

مَا تَعْبُدُونَ مِنْ دُونِهِ إِلَّا أَسْمَاءً

تاسي عبادت نه كوئ پرته له خداى جل جلاله څخه.

**سوال**: مخاطب د يوسف عليه السلام خو دوه كسان وه يعني فتيان، نو صيغه د جمع په "تعبدون" كي څرنگه راغله؟

**ځواب**: مراد د يوسف عليه السلام كل من كان مثلهما في الشرك.

**پوه سه**: چي مراد له اسماء څخه مسميات دي يعني ستاسي معبودات فقط مسميات دي من اللات والعزى والمنات وغير ذالک چي په هغو كي هيڅ معنا د الوهيت او د استحقاق العبادة من القدرة على الخلق والعلم الكامل والترزيق

والاحيا والاماتة وغير ذالک من صفات المعبود بالحق.

سَمَّيْتُمُوهَا أَنْتُمْ وَآبَاؤُكُمْ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ بِهَا مِنْ سُلْطَانٍ

چي دا نومان تاسي پر ايښي دي او ستاسي نيکه ګانو يعني د ارباب او آلهه نومان مو ورته وضع کړي دي بېله تحقق د معبوديت په دوی کي لکه مثلاً يک ته چي سړی وايي څونوره، چي نه دی نازل کړی خدای ﷻ په هيڅ کتاب د کتب سماويه وو په استحقاق سره ددوی عبادت لره يو حجة او دليل لکه خدای ﷻ خپل پر استحقاق د عبادت براهين قاطعه په ټولو کتابو کي د انبياؤ نازل کړي دي.

إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ أَمَرَ أَلَّا تَعْبُدُوا إِلَّا إِيَّاهُ ذَلِكَ الدِّينُ الْقَيِّمُ

نه دی حکم د معبوديت بالحق مګر خدای پاک لره دی يعني په براهين عقليه وو سره او په دلائلو نقليه وو سره. او هغه خدای امر کړی په واسطه د انبياؤ عليهم السلام او د کتب منزله وو چي تاسي به عبادت مه کوئ مګر نه دده "ذالک دين القيم" يعني انحصار د معبوديت بالحق په الله ﷻ هغه دين دی مستقيم او ثابت کر الازمان ومر الدهور، وفي الدنيا والعقبى وما سوى ذالک کفر وشرک وضلال.

وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ۝

لکن ډېر خلګ چي عبارت دي له مشرکينو او کفره وو څخه علم نه لري چي حق او باطل سره جلا کړي. بيضاوي رحمه الله وايي هذا من التدرج في الدعوة والزام الحجة بين يعني يوسف لهم رجحان التوحيد على اتخاذ الآلهة على طريق الخطاب يعني قوله ياصاحبي السجن آه، ثم برهن على ان ما يسمونها آلهة ويعبدونها لاتستحق العبادة يعني بقوله ماتعبدون الخ، ثم نص على ماهو الحق القديم والدين المستقيم الذي لا يقتضى العقل غيره بقوله ان الحكم الا لله الى قوله ذالک الدين القيم. ثم حکم على اكثر الناس بعدم العلم بما هو الحق وعدم التميز بين الحق الحقيق بالقبول من الضلال المبين.

**درويش وايي:** چي يوسف عليه السلام چي خپل تبليغ د وحدانيت د خدای ﷻ په پوره تفصيل سره صاحبي السجن ته واوراوه، نو شروع يې په ترجمه او تعبير ددوی د خوبو وکړه وقال:

يٰصَاحِبَيِ السِّجْنِ اَمَّآ اَحَدُكُمَا فَيَسْقِيْ رَبَّهٗ خَمْرًا ۚ

اې زما ملګرو په بندي خانه کې يو له تاسي څخه چي صاحب الشراب د ملک مصر دی، ورجوروي خپل ملک ته خمر او شراب، او هغه درې واښکي د انګورو چي ده په خوب ليدلي وه، د هغه تعبير دادی چي درې ورځي به دی په بندي خانه کي پاته وي درې ورځي وروسته به يې ملک ور وغواړي بيرته به يې پر خپلې پخوانی عهدې مقرر کړي.

وَاَمَّا الْاٰخَرُ فَيُصْلَبُ فَتَاْكُلُ الطَّيْرُ مِنْ رَّاْسِهٖ ۚ

او هغه بل چي د ملک اشپز دی هغه به په دار کړل سي درې ورځي وروسته، او ده چي په خوب کي درې څڼځيران ليدلي وه د هغه تعبير دادی چي درې ورځي به په بندي خانه کي وي وروسته به وايستل سي او په دار به سي، نو خوراک به کوي مرغان لکه کارګان ټپوسان وغيره دده د سر له غوښو څخه. له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي فتيانو چي قول او تعبير د يوسف عليه السلام واورېدی دوی وويل چي موږ هيڅ خوب نه دی ليدلی، موږ صرف مسخرې کولې او ستا امتحان مو کاوه قال يوسف عليه السلام.

قُضِيَ الْاَمْرُ الَّذِيْ فِيْهِ تَسْتَفْتِيٰنِ ۝۴۱

قضاء الهي جاري ده په هغه کار کي چي تاسي يې زما څخه فتوی غوښتله يعني تعبير د خوب، يعني ستاسي مرجع د کار هغه ده چي ما درته وويل که مو خوب ليدلی وي او که نه.

**سوال**: ددې دوو فتيانو خو ددوی د خوبو تعبير غوښتلی دی، نو ضمير د "فيه" يې ولې مفرد راوړی؟

**جواب**: افراد يې په تأويل د مايؤل اليه امر کما.

**پوښتنه**: لکه په روايت کي د ابن مسعود رضي الله عنه چي تېره سوه چي خباز او ساقي دواړو له خوب څخه انکار وکړی، د شرابي تعبير خو په زړه پوري دی، نو ده ولې انکار کاوه؟

**ځواب**: نسبت د انکار ودواړو ته له قسمه څخه د بنو فلان قتلوا مع ان القاتل

منهم الواحد. او روح البيان وايي چي انكار د شرابي ليازه د مراعات د خباز ۋ.

تفصيل القصة: ددې دوو كسانو حال هغسي ۋ لكه يوسف ﷺ چي ورته ويلي وه، درې ورځي وروسته ملک صاحب الشراب له بندي خانې وايستى او پر خپله پخوانى وظيفه يې مقرر كړى او د پر احسان يې هم ورسره وكړى. او خلات يې هم وركړى ولي چي ملک ته دا معلومه سوه چي شرابي امين دى. او خباز يې له بندي خانې وايستى كالي يې ځني وكښل او په شلاخو يې وواهه حتى چي قريب الموت سو. ولي چي دده خباثت ملک ته ظاهر سو، او پر دار يې پر لويه لار وځړاوه او په ننس كي يې په نېزه وواهه چي مړ سو د خداى پاک په قدرت تور مرغان پيدا سوه دده د سر غوښې او هډوكي يې خوړل. او دغه ملک مصر اول سړى ۋ چي صلب يې پر كار واچاوه وروسته تر ده فرعون موسى ﷺ هم دا صلب اختيار كړى هغه وخت چي ساحرانو د فرعون پر موسى ﷺ ايمان راوړى. نو فرعون داسي دوى ته وويل "ولاصلبنكم في جزع النخل" كما حكى الله عنه في موضع آخر. روح البيان وايي چي عليه الصلوة والسلام رجوع د بدر له غزا ځخه وكړه د مدينې پر لور. نو د عرق الظبية په مقام كي يې له بنديانو ځخه عقبه بن ابي معيط په دار كړى وهو اول مصلوب من الكفار في الاسلام او دې عقبه په مكه كي آنحضرت ﷺ ډېر ازاراوه. او يوه ورځ يې پر مبارک مخ د عليه الصلوة والسلام ناړې هم توكلي وې والله تعالى اعلم بالصواب.

وَقَالَ لِلَّذِي ظَنَّ أَنَّهُ نَاجٍ مِّنْهُمَا

**يوه سه**: ظن له اضدا ځخه دى يعني هغه تصديق ته هم وايي چي د جانب مخالف احتمال ضعيف پكښې وي كما هو المشهور في المنطق. او هغه تصديق ته هم وايي چي د جانب مخالف احتمال اصلاً نه وي پكښې چي علم او يقين يې بولي. نو كه ضمير د ظن راجع و موصول ته سي نو ظن په معنى اول سره دى او كه ضمير راجع و يوسف ته سي نو ظن په معنى د يقين دى لقوله قضى الامر الذي فيه تستفيان. والمعنى على الثاني وويل يوسف ﷺ وهغه سړي ته چي دده يقين ۋ چي دى به نجات مومي د ملک له غضب ځخه چي شرابي ۋ. وعلى الاول. وويل يوسف ﷺ و هغه سړي ته چي د هغه غالب گمان دا ۋ چي

زه د ملک له عذاب څخه خلاصېږم.

**اذْكُرْنِي عِنْدَ رَبِّكَ**

زما حال بیان کړه ستا ورب ته یعني الملک ته. یعني ورته ووایه چي په سجن کي یو ځوان ظلماً بندي دی چي داسي حال او داسي حال یې دی شاید ملک یې ما له بنده خلاص کړي، قال المولی الجامي رحمه الله:

بگو هست اندران سجن غریبی ......... زعدل شاه دوران بي نصیبی
چنینش بی گنه مه پسند رنجور ......... که هست این از طریق معدلت دور

**فَأَنْسَاهُ الشَّيْطَانُ ذِكْرَ رَبِّهِ**

درویش وایي: چي مشهوره ترجمه ددې آیت داده چي هېر کړی له ساقي څخه شیطان ذکر د یوسف عليه السلام په نیز د رب د ساقي چي ملک مصر ؤ. لکن تحقیق دادی چي ترجمه د آیت داده چي هیر کړی له یوسف عليه السلام څخه شیطان ذکر د خپل خدای، ولي چي ده استعانت له مخلوق څخه وغوښتی چي ساقي ؤ. ویدل علیه الحدیث الذي رواه ابن المنذر وابن ابی حاتم قال رسول الله ﷺ رحم الله اخي یوسف لو لم یقل واذکرني عند ربک لما لبث في السجن طول ما لبث.

**فَلَبِثَ فِي السِّجْنِ بِضْعَ سِنِينَ ﴿٤٢﴾**

نو پاته سو یوسف په بندي خانه کي څو کاله یعني خدای جل جلاله له ساقي څخه د یوسف د حال بیانول هېر کړل، مظهري رحمه الله وایي چي یوسف عليه السلام په بندي خانه کي اووه کاله تېر کړه، او روح البیان او کلبي وایي چي یوسف عليه السلام پینځه کاله دمخه بندي ؤ او چي ساقي ته یې خبره وکړه "اذکرني آه" اووه کاله یې نور په بندي خانه کي تېر کړه چي مجموع دوولس کاله سي بعدد حروف "اذکرني عد ربک" فافهم.

**درویش وایي:** چي مظهري دوولس کاله بند تر تنقید لاندي نیولی دی، لکن دده تنقید بې ځایه دی او دلیل پر هغه یې ببخي ضعیف دی فارجع الی تفسیره وتنقیده وتفکر في دلیله..

**فائده:** کعب الاحبار رضي الله عنه وایي چي یوسف عليه السلام چي استعانت په ساقي سره وغوښتی، نو جبرئیل یوسف عليه السلام ته راغلی او ورته ویې ویل چي خدای پاک

وايي چي ته چا پيدا کړی يې؟ ده ورته وويل الله عزوجل، جبرئيل ورته وويل من حبسک الی ابيک؟ يوسف عليه السلام ورته وويل الله جل جلاله، جبرئيل ورته وويل فمن انجاک من کرب البير؟ قال يوسف الله تعالی. قال فمن علمک تعبير الرؤيا؟ قال الله تعالی. قال فمن صرف عنک السوء والفحشاء يعني کيد د زليخا؟ قال الله تعالی. قال فکيف استشفعت بآدمي مثلک انتهی.

**فائده:** درويش وايي: چي په تفسير بحر العلوم کي وايي چي استعانت په غير الله في کشف الشدائد وان کانت محمودة في الجملة ای في بعض الناس لکن لا تليق بمنصب الانبياء عليهم السلام الذين هم افضل الخلق ومن اهل الترق. نو دا استعانت بغير الله عزوجل ددوی په شان کي صرف ترک الاولی والافضل ده. او په دې کي هيڅ شک نشته چي انبياء عليهم السلام پر ترک الاولي هم عقاب الهي ورته لکه عامو خلګو ته پر کبائرو ګنهو.. ولهذا قيل حسنات الابرار سيئات المقربين کذا في تفسير الکواشي. انتهی ما في بحر العلوم مع زيادة.

حاصل دادی چي اولی په حال کي د يوسف عليه السلام دا وه چي اقتداء يې په خپل جد امجد خليل الرحمن ابراهيم علی نبينا وعليه السلام پسي کړې وای. کما روی ان ابراهيم عليه السلام حين رماه نمرود بالمنجنيق الی النار جائه جبرئيل عليه السلام قبل الوصول الی النار فقال هل لک من حاجة؟ قال ابراهيم عليه السلام اما اليک فلا. جبرئيل ورته وويل فسل ربک ابراهيم عليه السلام ورته وويل حسبه من سوالي علمه بحالي.

د مالک بن دينار رحمه الله څخه روايت دی چي يوسف عليه السلام چي ساقي الشراب ته وويل اذکرني عند ربک اوحی الله تعالی اليه يا يوسف اتخذت من دوني وکيلاً لاطيلن حبسک. نو يوسف عليه السلام وژړل او ويې ويل چي زما زړه د پرو غمو لاندې کړی ؤ. ستا څخه استغاثه مي هېره سوه، او هغه خبره مي ساقي ته وکړه او بيا ورته خبره نه کوم. وفي رواية چي جبرئيل و يوسف عليه السلام ته وويل چي خدای پاک پر تا سلام وايه، ويقول اما استحييت مني زما څخه نه شرمېدلې چي استغاثه دې په غير سره زما وکړه. وعزتي لابعثنک في السجن بضع سنين. قال يوسف يا جبرئيل وهو عني راض؟ قال نعم فقال يوسف عليه السلام اذا لا ابالي. يعني چي خدای پاک راضي وي زه په زيادت د بضع سنين حبس باک نه کوم.

**درويش وايي**: چي څه وخت چي نبږده د قيد او حبس چي د خداى ﷻ له خوا تاکل سوې وه كما ذكرناه من قبل. نو ملک مصر ريان بن الوليد يو خوفناکه خوب وليدى چي اووه بقرات سمان يعني چاغي غواوي له درياى مصر څخه راووتلې، او تر هغه وروسته اووه بقرات هزال في الغاية راووتلې يعني ډېري ډنگري. نو ډنگرو بقراتو هغه اووه چاغي غواوي وخوړلې، او هغه اووه بقرات سمان د اوو بقرات هزال په نس کي داسي ځاى سوې چي پر ډنگرو يې هيڅ اثر نه سو معلوم، او وروسته يې اووه وږي د غنمو وليدل چي پختيا ته نږدې وه، وروسته اووه نور وږي پيدا سوه چي پر اوو وږو خضراتو راوپېچل سول او هغه يې پټ کړه، نو وليد المذكور ساحران د مصر او پوهان او کهنه د مصر يې را غونډ کړل او خپل خوب يې ورته ووايه كما قال الله تعالى:

**وَقَالَ الْمَلِكُ إِنِّي أَرَىٰ سَبْعَ بَقَرَاتٍ سِمَانٍ يَأْكُلُهُنَّ سَبْعٌ عِجَافٌ**

وويل ملک يعني الوليد و راجمع کړل سوو کسانو ته چي ما وليدى يعني په خوب کي اووه بقرات چاغي چي وخوړلې دغه اوو نورو ډنگرو اوو بقراتو.

**وَسَبْعَ سُنبُلَاتٍ خُضْرٍ وَأُخَرَ يَابِسَاتٍ**

او اووه د غنمو شنه وږي او اووه نور وچ.

**فائده**: ملک د دې وږو حال نه کړى بيان يعني چي وچ پر شنو راوپېچل سول او شنه وږي يې پټ کړل كمامر قياساً على حال البقرات السمان والهزل.

**يَا أَيُّهَا الْمَلَأُ أَفْتُونِي فِي رُؤْيَايَ إِن كُنتُمْ لِلرُّؤْيَا تَعْبُرُونَ ﴿٤٣﴾**

اې جماعته د اشرافو د مصر ماته فتوى راکړئ زما په دغه خوب کي يعني تعبير يې راته وکړئ که ستاسي د خوبونو تعبير زده دى يعني چي انتقال د صور مثاليه څخه د خوب وصور التعبير ته وکړئ.

**قَالُوا أَضْغَاثُ أَحْلَامٍ**

**پوهه سه**: چي "احلام" جمع د حلم ده په معنى د خوب. او اضغاث جمع د ضغث ده په اصل کي يو غېږي ته د وښو وايي چي گډوډ وي فاستعير للرؤيا الكاذبة.

**ترجمه**: ملاء مذكور وملک ته وويل چي دا كاذبه او گډوډ خوبونه دي.

وَمَا نَحْنُ بِتَأْوِيلِ الْأَحْلَامِ بِعَالِمِينَ ﴿٤٤﴾

او موږ نه یو په تعبیر د ورته خوبونو عالمان.

**یوه سه:** چي له "احلامو" څخه دلته باطل خوبونه مراد دي که څه هم لفظ د حلم عام دی کما مر. ددوی مراد دا ؤ چي موږ د صادقو خوبونو تعبیرونه کولای سو. نـ د باطلو خوبونو. گویا ملک مصر ته دوی وویل چي دا ستا خوبونه کاذب او باطل دي.

**درویش وایي:** چي تعبیر الرؤیا یو ساده کار نه دی. او نه هر ملا یا امام بلکې ډېر غایت لوړ علمه ملایان هم نه په پوهېږي. نو تعبیر د خوبونو یوه ملکه الهي په بل تعبیر الهام دی د خدای پاک له خوا څخه.

ع .......... انجیر خوردن نه کار هر مرغی است

چناچه د ملک مصر ریان د خوب چي تعبیر یوسف صدیق ﷺ ورته وکړی لکه عنقریب چي به په قرآن مجید کي به راسي د هر عقل کار نه ؤ. بلکې دا تعبیر د کریم ابن الکریم ابن الکریم یوسف بن یعقوب بن اسحاق بن ابراهیم علیهم السلام د پاک او رنج دیده عقل کار ؤ. د تعبیر الرؤیا لپاره علماؤ رسالې او کتابونه جوړ کړي دي بعض رشتیا بعض دروانغ. په دې باره کي د اطمنان وړ کتابونه د علامه ابن سیرین او د علامه ابن شاهین او د علامه عبد الغني نابلسي رحمهم الله دي چي دا درې سره کتابونه په یوه مجلد ضخیم کي سره جمع دي او هم دا اوس په کتب فروشانو کي دستیاب کېږي.

**درویش وایي:** چي بعض خوبونه د رائي په عقل ډېر بد معلومېږي لکن په حقیقت کي هغه ډېر ښه خوب وي. او بعض خوبونه د رائي په فکر ډېر ښه خوب وي لکن في الواقع هغه ډېر بد خوب وي. د مثال په توگه که یو سړی خوب وویني چي ما پر قرآن مبارک بولي وکړې په دې خوب رائي ډېر خوابدی وي، لکن معبران یې دا تعبیر کوي چي رائي ته به خدای پاک زوی ورکړي چي حافظ د قرآن به وي. یا سړی داسي خوب وویني چي ما ته سره یا سپین زر یو چا راکړي دي، نو دی ډېر په خوشاله وي چي زه به غني سم. لکن معبران یې دا ترجمه کوي چي په اندازه د هغو زرو به رائي ته غمونه پېښېږي.

**حکایت**: یوه سړي په دهلي "ډلی هندوستان" کې خوب لیدلی ؤ چې زما د ماینې پر فرج د دوو سپو سره حملې وې، چې ویښ سو ډېر فرېشانه سو، دده په خیال کې دا ور وګرځېدله چې زما په ماینه لکه چې دوه خلګ به په زنی اخته وي، نو دی شاه ولي الله رحمه الله ته د دهلي ورغلی، نو هغه ورته وویل چې دا پرېشاني خوب نه دی. بلکې ددې خوب تعبیر دادی چې ستاسي ماینې د صفا کولو د موضع خاص په وخت کې د سر چاره په لاس ورنه غله، نو د تلوار له کبله یې د غچي څخه کار واخستی.

**حکایت**: راوي وایي چې ابن سرین رحمه الله ته چې د خپل وخت مقبول او منل سوی معبر ؤ داسي وخت چې ده ډېوډۍ خوړله یوه ښځه ورغله چې ما خوب لیدی چې سپو ږمی په پېروني کې پټه سوه، د ابن سرین رحمه الله ګوله له لاسه ولوېدله او مخ یې تک ژېړ سو، او وه یې ویل چې زما اته ورځي: عمر پاته دي یعني خپل ځان یې سپوږمی د علم وبلل او پېروني چې اته ستوري دي د خپل عمر یې وباله. له دې څخه ده فهمول چې هغې ښځي ته په خوب کې چا ویلي وه چې ورسه د ابن سیرین څخه ددې خوب تعبیر وغواړه. هغه ؤ چې ابن سیرین رحمه الله خپل د مرګ په کاروبار او وصیت بخت سو. او اته ورځي وروسته وفات سو رحمه الله.

**حکایت**: یو سړی چې ډېر صالح او پرهېزګار سړی ؤ، خوب یې ولیدی چې ما رسول الله ﷺ په چپلاخه وواهه چې راویښ ؤ ډېر فزع ؤ او د غم په دریاب کې ډوب سو مع جلالة النبي ﷺ في قلبه، نو دا سړی د تعبیر د خوب لپاره یو شیخ ته چې معبر تــه ورغلـی او د خـوب قصـه یـې ورتـه وکـړه. نـو شـیخ ورتـه وویـل چـې آنحضرت ﷺ اعظم دی تر دې چې ستا لاس یا د غیر لاس دي پر ده ومښلي. او دا خوب چې تا لیدلی دی دلالت پر دې کوي چې تا اخلاص کړی دی په یو حکم کې د احکامو د شریعت نبوي ﷺ وکون اللطعم في وجه النبي ﷺ یدل على انک ارتکبت محرماً من الکبائر، نو رائي چې هر څه فکر وواهه په ځان کې ې کبیره ګناه نه ولیدله. ولې چې دی لوی دیندار سړی ؤ. او شیخ هم په تعبیر کې پر خطأ په خیال نه ورتلی. ولې چې دده یقین ؤ چې دی صالح معبر دی. نو کورته ډېر غمجن ولاړی، ماینې یې پوښتنه ځني وکړه چې ولې دومره مغموم یې. نو ده ټوله قصه ورته وکړه، ماینې ورته وویل چې دا خوب رشتیا دی او دې تبت الى الله وویل. چې

تا یو وخت قسم واخستی چي که ته زما د فلاني اشنای کور ته ورغلې پر ما طلاقه یې، نو زه یوه ورځ ستا د هغه اشنای د کور سره تېرېدم، د کور ښځو او لونړو یې ډېري زارۍ راته وکړې چي کور ته به را سره ځې زه د دوی له الحاح څخه وشرمېدلم او کور ته ورغلم، او زه په دې پوه سوم چي پر ما طلاق واقع سو، لکن له تا څخه بېرېدم دا حال مي نه درته وواېه، نو د دغه وروسته خو ستا جماع زما سره زنی وه، فتاب الرجل وتضرع الى الحق واعتدت المرئة وتجدد بينهما النكاح.

**حکایت:** امام تقي الدين ابن خلد رحمه الله خوب لیدلی وُ چي علیه الصلوة والسلام ماته شیدې راکړې او ما وڅیښلې.

**درویش وایي:** چي امام تقي الدين صاحب او مصنف د مسند کتاب دی په حدیثو کي، نو چي راوينئ سو بیا هم خطاوتی چي د حقیقت ددې خوب معلوم وُ او په ستونې گوتې چخ کړې شیدې یې قی کړې، او که تعبیر ددې خوب یا یې په ځپله یا یې له بل څخه پوښتلی وای، شیدې په خوب کي علم دی خصوصاً من یده عليه السلام فحرمه الله علماً كثيراً بسبب ماقاً من اللبن. او که ده دا قول د عليه الصلوة والسلام مد نظر گرځولی وای، نو هم به د دغه مصیبته د حرمان العلم الكثير به محفوظ وای. قال رسول الله ﷺ من رانی في المنام فقد رآني في اليقضة" معنا داده چي دا خوب دروغ نه دی، گویا زه یې په ویښه ولیدم. قال عليه الصلوة والسلام فان الشيطان لا يمثل على صورتي.

**درویش وایي:** چي سبب د تعبیر د شیدو په علم سره دادی چي اول غذا د طفل چي له مور څخه جلا سي یعني وزېږي شیدې دي، نو شیدې سبب عادي دی دده د ژوند او حیات دی. او جهل چي لکه موت دی چي سړی عالم سي لکه ژوندی چي سو ......... بیت:

این سخن پایان ندارد باز گرد ......... درپی تفسیر قرآن باز گرد

**وَقَالَ الَّذِي نَجَا مِنْهُمَا وَادَّكَرَ بَعْدَ أُمَّةٍ أَنَا أُنَبِّئُكُم بِتَأْوِيلِهِ فَأَرْسِلُونِ**

او وویل هغه سړي چي نجات یې پیدا کړی د بندي خانې څخه وهو الساقي د هغو دوو کسانو چي د یوسف عليه السلام سره بندیان وه، د "وادکر" اصل اذ تکر وُ تا یې په دال واړول او په دال کي یې مدغمه کړه یعني وریاد سو ساقي ته یوسف، او

هغه خبري چي يوسف ﷺ وده ته كړي وي يعني اذكرني عند ربك كمامر "بعد امة" وروسته تر جماعت د زماني يعني تر ډېري زماني وروسته چي اووه كاله وه.

**پوه سه:** چي جمله د "وادكر" بعد امة جمله معترضه ده بين فعل قال ومفعوله يعني "انا انبئكم آه" بغوي رحمه الله وايي چي ساقي پر زنګنو وحضور ته د ملك ودرېدى او ورته ويې ويل چي په بندي خاني كي يو بندي دى چي هغه په تعبير الرؤيا كي ډېر ماهر دى. نو ما ور واستوه و هغه ته چي زه تعبير د خوب د ملك له هغه څخه وكړم. نو ملك ورته وويل ورسه. نو ساقي بندي خاني ته ورغلى او د يوسف ﷺ سره يې پرسان حال وكړى او داسي يې ورته وويل.

**يُوسُفُ أَيُّهَا الصِّدِّيقُ أَفْتِنَا فِي سَبْعِ بَقَرَاتٍ سِمَانٍ يَأْكُلُهُنَّ سَبْعٌ عِجَافٌ وَسَبْعِ سُنْبُلَاتٍ خُضْرٍ وَأُخَرَ يَابِسَاتٍ**

يعني يا يوسف چي مبالغ په صدق كي يې ولي ساقي ته د يوسف ﷺ صدق معلوم سوى ؤ په تعبير كي د رؤيا دده او د رؤيا د صاحب دده چي خباز ؤ كمامر قصة رؤياهما. موږ ته فتوى راكړه يعني تعبير راوښيې د خوب د ملك مصر چي مذكور خوب يې ليدلى دى. او كاهنان ساحران او پوهان د مجلس يې له تعبير څخه تږله پاته راغله. نو ما چي ستا ذكر ورته وكړى. نو كه يې تاته را واستولم.

**لَعَلِّي أَرْجِعُ إِلَى النَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿٤٦﴾**

شايد زه به ورسم خلګو ته يعني الملك ومن عنده من اكابر مملكته. او ستا فتوى او تعبير الرؤيا به وور ورسوم.

**سوال:** ساقي ولي كلمه د "لعلي" وويل او قطعي خبره يې ونه كړه چي زه به ستا تعبير ور ورسوم؟

**ځواب:** چونكه ملك ډېر خوف زده ؤ، ددې خوب او د ساحرانو او كاهنانو وغيرهم له تعبير څخه باد درمشت ؤ، نو ساقي ته دا متيقن نه وه چي يوسف ﷺ به دلخواه تعبير د ملك د خوب راته وكړي "لعلهم تعلمون" يعني شايد خلګ يعني ملك ومن معه به وپوهېږي ستا په قدر او منزلت سره.

**پوښتنه:** دلته ولي "لعل" راوړل سو؟

**ځواب**: له دې سببه چي ګاهې متحیرین او متکبرین په سبب د ډېر غفلت د دوی په فضل د اهل علم نه پوهېږي او غوږ نه ورته ونسي، لکه عزیز مصر ته په فضل د یوسف ﷺ بعد ما رأی من الآیات نه سو پوه حتی چي بندي یې کړی کمامر مفصلاً.

## قَالَ

یوسف ﷺ وساقي ته وویل چي بقرات السمان او سنبلات خضر اووه کاله دي چي په هغو کي به ښه بارانونه پر وخت واوري، او خلګ به ښه ښه حاصلات تر لاسه کوي او ډېر ښه آباد کلونه به وي، او بقرات عجاف او وچ سنبلات عبارت دی له اوو کالو کاختی څخه.

**درویش وایي**: چي د ملک د خوب خو هغه تعبیر وُچي موږ ذکر کړی، او دا وروسته د یوسف ﷺ له خوا مصلحت او مشوره وه و ملک ته.

## تَزْرَعُوْنَ سَبْعَ سِنِيْنَ دَاَبًا ۚ

تاسي به کښت کوئ اووه کاله دابًا "دابًا" عادت ته وایي منصوب دی علی الحالیة بمعنی دائبین ای علی عادتکم، وقیل معناه بجد او اجتهاد، او بعض مفسران وایي چي تزرعون مضارع په معنی د امر ده مبالغةً في النفع.

## فَمَا حَصَدْتُّمْ فَذَرُوْهُ فِيْ سُنْۢبُلِهٖۤ اِلَّا قَلِيْلًا مِّمَّا تَاْكُلُوْنَ ۝

پس هغه چي تاسي لو کړه یعني غنم وغیره، نو تاسي هغه پرېږدئ په وږو کي تاچي شیږي ونه کړي مګر لږ هغه قدر چي تاسي یې خورئ یعني هر کال دومره پرېږدئ چي تاسي یې په دغه کال کي خورئ.

**پوه سه**: چي دا مشوره وه چي په تعبیر الرؤیا پوري اړه نه لري.

## ثُمَّ يَاْتِيْ مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ سَبْعٌ شِدَادٌ يَّاْكُلْنَ مَا قَدَّمْتُمْ لَهُنَّ اِلَّا قَلِيْلًا مِّمَّا تُحْصِنُوْنَ ۝

وروسته به راسي اوه کاله سخت یعني د کاختی چي دا کلونه به وخوري هغه خوراکي مواد چي تاسي دمخه ذخیره کړي وه د دې کلو دپاره مګر لږ وه هغه غلو او دانو څخهچي تاسي خوندي کړي وي یعني دپاره د تخم.

**پوه سه**: چي اسناد د اکل يې وکلو ته وکړي او سره د دې چي اکل خو د خلکو کار دی مجازا د پاره د مطابقت د ظاهر سره د رؤيا کما لا يخفی.

ثُمَّ يَأْتِي مِنْۢ بَعْدِ ذَٰلِكَ عَامٌ فِيهِ يُغَاثُ ٱلنَّاسُ وَفِيهِ يَعْصِرُونَ ﴿٤٩﴾

وروسته به راسي يعني وروسته تر سبع شداد يو کال چي په هغه کي به بارانونه کېږي پر خلکو باندي چي په هغه کال کي به خلکو ته ميوې لکه انګور او زيتون او کنجد ونحو ذالک ډېري وي چي دوی د هغو څخه شيره باسي د پاره د څښلو او خوراک مقصد دا دی چي بشه کلې به ډېره وي او نعمتونه به فراوان وي" او ابو عبده وايي چي د دې آيت معنا دا ده يعصرون ای ينجون من الکرب والجدب او د عصر معنا ده ځای د نجاة کرې ده" قاضي بيضاوي رحمه الله وايي چي امکان لري چي يوسف عليه السلام ته دي آخيري زيرى په وحي معلوم سوی وي او يا په عقل نوراني خپل چي عدت د خدای جل جلاله دا دی چي پر بندګانو فراخي جوړه وي وروسته تر ضيق او تنګی، کريمه: "فَإِنَّ مَعَ ٱلْعُسْرِ يُسْرًا ﴿٥﴾ إِنَّ مَعَ ٱلْعُسْرِ يُسْرًا ﴿٦﴾" والله اعلم.

وَقَالَ ٱلْمَلِكُ ٱئْتُونِي بِهِۦ ۖ فَلَمَّا جَآءَهُ ٱلرَّسُولُ

راوي وايې چي ساقي چي ملک ته راغلی او تعبير د يوسف عليه السلام د ملک د خوب يې ده ته بيان کړی ملک قانع سو په فضل د يوسف عليه السلام او پر دې يې يقين سو چي دا اوضاع د خصب او جدب به خا مخا راځي. نو يې وويل چي. دغه سړی د بندي خانې رها شده ماته راولی، څه وخت چي راغلی يوسف عليه السلام ته رسول د ملک وقاله اجب الملک قبلونه وکړه د غوښتني د ملک يعني د بنده خلاص سوې او ملک غوښتني ته يوسف عليه السلام منع وکړه د اجابة الملک څخه تر هغو چي ملک ته ښکاره کېږي زما برائة د تهمت څخه د امرئة العزيز چي پر ما يې ولګاوه چي يوسف عليه السلام زما څخه زنی غوښته او د هغه د کبله تر اوسه ممتد زمانه زه په بند کي پاته يم.

قَالَ ٱرْجِعْ إِلَىٰ رَبِّكَ فَسْـَٔلْهُ مَا بَالُ ٱلنِّسْوَةِ ٱلَّٰتِي قَطَّعْنَ أَيْدِيَهُنَّ ۚ

يوسف عليه السلام ورسول الملک ته وويل چي ولاړ سه وسيد ته خپل يعني الملک او ده ته ووايه چي ته پوښتنه وکړه چي څه حال د هغو ښځو چي پرې يې کړل خپل لاسونه.

**فائده:** یوسف ﷺ په دې خبره کې پټه اشاره وکړه وضعف ته د سلطنت د ملک یعني چې دونه زمانه ده په حبس کې ظلما تېره کړه تا هېڅ احوال پرسي دبندیانو نه وکړه او بې ګناه او ګناه کاره دې وځان ته نه کړه معلوم.

**درویش وایي:** چې وه دغه تعریض ته یوسف ﷺ پر ملک باندې جامي قدس سره په دې خوږو ابیاتو کې اشاره ورته کړې ده.

بگفتا من چه ایم سوی شاهي ....... که چون من بیکسي را بگناهي
بزندان سالها محبوس کردست ....... ز آثار کرم مایوس کردست
اگر خواهد که من بیرون نهم پای ....... ازین غم خانه گو اول بفرمای
که آنا ني که چون بدیدند . . . زخیرت در رحم کفها بریدند
که جرم من چه بود از من چه دیدند ...... چرا زحتم سوی زندان کشیدند
بود کین سود بر شاه روشن . . . که پاکست از خیانت دامن
مرا به گر زنم ثقب خزائن . . . . که باشم در فراش خانه خائن

**پوه سه:** چې یوسف ذکر د زلیخا او مکر د دې نه وکړی د پاره د احترام د حق د خدمت د دې واحترازا عن افشا مکرها.

**فائده:** په منع کې یوسف ﷺ دلیل دی پر دې چې سړی په دفع کې د تهمت د ځانه ځخه دېر کوشش لا سیما من یقتدي به بخاري روایت کړی دی چې په میاشت کې د روژې په اعتکاف کې وو او دشپې د ازواج مطهراتو ځخه د ده زیارة ته راغلې دوه کسه د اصحابو ﷺ ځخه تېریدله چې د علیه الصلوة والسلام سره ښځه ولیدل چابک تېر سوله. نو علیه الصلوة والسلام ناره پر وکړه چې ودرېږئ دا فلانة ده یعني د مطهرة ﷺ نوم یې واخستی هغو د دوو کسانو وویل سبحان الله یعني د تعجب د پاره یعني چې موږ به نو توهم کاوه علیه الصلوة والسلام ورته وویل چې ان الشیطان یجري مجری الدم.

**درویش وایي:** چې دا خبره علیه الصلوة والسلام صرف د پاره د دفع د تهمت وکړه د خپل ځانه" ولهذا قال رسول الله ﷺ اتقوا من مواقع التهم" وفي روایة من کان یؤمن بالله والیوم الاخر فلا یقعن مواقع التهم.

**درویش وایي:** چې ابن اسحاق رحمه الله او طبراني رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما ځخه

داسي حديث نقل کړی دی چي عليه الصلوة والسلام وويل عجبت بطراخي يوسف ﷺ وکرمه" والله يغفر له" حيث اليه يستفتي فی الرؤيا ولو کنت انا لم افعل" يعني چي ملک تعبير د رؤيا د ده څخه وغوښتی او ده هم فتوی او تعبير د خوب ورته بيان کړی او که زه وای ماښي تعبير د خوب نه وای ورته بيان کړی جزا لظلمهم عليه" وعجبت لصبره وکرمه والله يغفر له ده ملک دخوا سړی ورته راغلی چي د بندي خانې را ووزه، نو دی نه ورسره ووتی حتی خپل عذر يې ورته ووايه ولو کنت انا لبادرت الباب.

عليه الصلوة والسلام وايي که زه (۱۲) کاله ناحقه بندي وای ما به تلوار کړی وای و دروازې ته چي د بنده ووځم طيبي په شرح کي د مشکوة وايې چي دا حديث محمول پر غايت تواضع د عليه الصلوة والسلام دی وبيان مدح يوسف فی الصبر والاناة فی الامور. د دې سببه نه دی چي عليه الصلوة والسلام په خپلو کارو کي مستعجل وو او صبر يې نه درلودی او په تواضع سره صغير کبير نه ګرځي او نه کښته کيږي رتبه د کبير، بلکه تواضع د متواضع قدر بلند کوي.

تواضع ز ګردن فرازان نکوست ........ ګدا ګر تواضع کند خوی اوست.

إِنَّ رَبِّي بِكَيْدِهِنَّ عَلِيمٌ ۝

په تحقيق خدای زما په کيد سره د دوی ښه خبر دی "اشاره وهغو خبروته چي د امرائة العزيز ميلمنې وې چي دوی داسي ورته وويل يوسف ته اطع مولاتک او دوی ورته وويل چي موږ هم درته تيارې يو يعني د هغو د کار دپاره" راوي وايي چي رسول بيرته وملک ته ورغلی او ده يو واړاندېز ورته بيان کړی، نو ملک امرئة العزيز او هغه نوري ښځي راوغوښتې.

قَالَ مَا خَطْبُكُنَّ إِذْ رَاوَدتُّنَّ يُوسُفَ عَن نَّفْسِهِۦ

څه حال وو ستاسي، يعني په يوسف کي ميل د زنی ويوې ته ستاسي ولېدی او که څرنګه.

**پوښتنه:** چي خطاب د جمع يې راوړی ولي چي دوی ټولو يوسف ته وويل اطع مولاتک او يا د دې سببه چي په شمول د امرئة العزيز ټولو دعوت د زنی يوسف ﷺ ته ورکړی وو.

قُلْنَ حَاشَ لِلّٰهِ مَا عَلِمْنَا عَلَيْهِ مِنْ سُوْٓءٍ

پناه په خدای ده او تعجب دی وقدرة د خدای ﷻ چي داسي پاک نفس لکه یوسف ﷺ چي پیدا کړی دی زموږ علم نه دی راغلی پر یوسف ﷺ د هیڅ گناه او خیانت د زنی.

قَالَتِ امْرَاَتُ الْعَزِيْزِ الْـٰٔنَ حَصْحَصَ الْحَقُّ اَنَا رَاوَدْتُّهٗ عَنْ نَّفْسِهٖ

وویل ماینې د عزیز چي اوس ښکاره او ثابت سو حق، چي ما د ده څخه یوسف طلب د زنی وکړی او په دې باره کي مي ډېري حیلې پر کار اچولي وې کما عرفت في ابتدا القصة.

وَاِنَّهٗ لَمِنَ الصّٰدِقِيْنَ۝

او په تحقیق دی د رشتیا ویونکو څخه دی چي د په مخ کي د عزیز وویل: هي راودتني عن نفسي کما مر" یوسف چي دا شاهدې د امرئة العزیز واورېده پر برائة د یوسف او پر ملامتیا د خپل ځان نو یې وویل.

ذٰلِكَ لِيَعْلَمَ اَنِّيْ لَمْ اَخُنْهُ بِالْغَيْبِ

دغه چي ما رسول د ملک رد کړی تر څو چي زما برائت ښکاره سوی نه وي، چي خبر سي عزیز مصر زوج زلیخا، چي ما خیانت نه دی کړی یعني په ماینه کي د ده چي طلب د زنی مي څندي کړی دی، په غیاب کي د ده کما ادعت امرئة العزیز علی ذالک.

وَاَنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِيْ كَيْدَ الْخَآئِنِيْنَ۝

او په تحقیق خدای ﷻ نه کامیابه کوي چم د خائنانو" بل یظهر الحق ولو بعد حین کما اظهر الحق ههنا بعد مدة یوسف فی السجن (۱۲) کاله.

**درپش وایي:** چي په فضل او توفیق د خدای ﷻ پای ته ورسېدی تفسیر د (۱۲) جزء په ورځ د شنبې ساعت (۱۱) بجې په میاست کي د جمادي الاول من شهور سنه (۱۴۲۹).

قال المولی الجامي قدس سره السامي:

درین دهر کهن رسمیست دیرین ........ کي بې تلخي نباشد عیش شیرین
خورد نه ماند طفلی دررحم خون ........ که آید بارخ چون ماه پروین

**درویش وایي:** چي د اخیري آیت څخه یعني "وان الله لا یهدي اه" څخه دا ښکاره سوه چي خیانت له بدو صفاتو څخه دی. لکه امانت داري چي له ښو صفاتو څخه ده.

**حکایت:** یو ځوان ؤ ډېر خوشبویه بدن او جامې یې وې د همیشه لپاره. یو چا پوښتنه ځنې وکړه چي پر دې خوشبویي ستا ډېر مصرف کېږي، ځوان ورته وویل هذا عطا من الله تعالی. ده وویل چي ما "نوکرزي" خرڅولې د ښار په یوه کوڅه کي روان وم چي یوې ښځي په حیله زه سرای ته بوتلم او د زنا دعوت یې راکړی ما قبول نه کړی دې ډېر الحاح وکړه، نو ما په تښتي کي ځان په خپل نجاست ککړ کړی، نو دې د لېوني په ګمان زه خوشي کړم، زه یوه نژدې مسجد ته ورغلم مخ او کالي مي له نجاست څخه پرېوله. فاعطاني الله تلک الرائحة الطیبة عوض تلک النجاسة. ځوان وویل چي ما د شپې یوسف صدیق ﷺ په خوب ولیدی او ما ورته وویل طوبی لک حیث خلصک الله تعالی من کید امرئة العزیز. نو یوسف ﷺ راته وویل طوبی لک حیث خلصک الله من کید تلک المرئة بدون وجود الهم فیک.

**درویش وایي:** چي یوسف ﷺ اشاره مضمون ته د هغه حدیث وکړه "ولقد همت به وهم بها کمامر تفصیله.

## خاتمه

**درویش وایي:** چي دا دومره لویه وظیفه یعني تفسیر د قرآن عزیز وما عمر رسیده ته. کهن سال جهول زمانه عطا د خدای ﷻ ده.

ع ........... ورنه این خیال بود ومحال بود وجنون "لکن یفعل الله تعالی مایشا . ع....... خاص کند بنده منفعت عام را.

وقد ورد في الحدیث الصحیح النبوي ان الله قد یؤید هذا الدین بالرجل الفاجر. واظن انا اکون ذالک الرجل.

ع: ............ ما نیز حاضر مي شویم تفسیر قرآن دربغل

اللهم اغفر لمؤلفه ولکاتبه ولجمیع المؤمنین والمؤمنات، آمین

## د تفسیر ابوبي حنفي د مضامینو فهرست


| شمېر | مضمون | مخ | شمېر | مضمون | مخ |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | سریزه | ۳ | ۲۶ | ښهانه فائده | ۹۵ |
| ۲ | د "یعتذرون" تفسیر | ۵ | ۲۷ | د "یایها الذین آمنوا قاتلوا" | |
| ۳ | تنبیه | ٦ | ۲۸ | تفسیر | ۱۰۹ |
| ۴ | د "یحلفون لکم" تفسیر | ۷ | ۲۹ | درویش وایي | ۱۱۵ |
| ۵ | حکایت | ۸ | ۳۰ | فوائد شتي | ۱۲۰ |
| ٦ | د "والسٰبقون الاولون" تفسیر | ۱۲ | ۳۱ | د سورة یونس پیل | ۱۲۵ |
| ۷ | درویش وایي | ۲۰ | ۳۲ | درویش وایي | ۱۳۵ |
| ۸ | د "لاتقم فیه ابداً" تفسیر | ۳۱ | ۳۳ | فائده | ۱۵٦ |
| ۹ | تمهیل | ۳۲ | ۳۴ | ښهانه فائده | ۱٦۸ |
| ۱۰ | درویش وایي | ۳٦ | ۳۵ | حکایت | ۱۷۳ |
| ۱۱ | د "لایزال بنیانهم" تفسیر | ۴۰ | ۳٦ | درویش وایي | ۱۹۰ |
| ۱۲ | زېری | ۴۱ | ۳۷ | د "ولکل امة رسول" تفسیر | ۱۹۳ |
| ۱۳ | فائده سنیه | ۴۸ | ۳۸ | سوال او ځواب | ۲۰۸ |
| ۱۴ | د "التائبون العٰبدون" تفسیر | ۴۹ | ۳۹ | پوه سه | ۲۱۰ |
| ۱۵ | درویش وایي | ۵۸ | ۴۰ | فائده | ۲۴۲ |
| | د "ماکان للنبي والذین آمنوا" | | ۴۱ | درویش وایي | ۲۴۵ |
| ۱٦ | تفسیر | ٦۰ | ۴۲ | د سورة هود پیل | ۲۵۷ |
| ۱۷ | شان نزول | ٦۱ | ۴۳ | د دوولسمې پارې پیل | ۲٦۳ |
| ۱۸ | د "وماکان الله لیضل قوماً بعد | | ۴۴ | د "ومامن دابة" تفسیر | ۲٦۴ |
| | اذ هدٰهم" تفسیر | ٦٦ | ۴۵ | پوښتنه او ځواب | ۲٦۷ |
| ۱۹ | د "ان الله له ملک السمٰوٰت | | ۴٦ | واقعه | ۲۷۲ |
| | والارض" تفسیر | ٦۸ | ۴۷ | پوه سه | ۲۷۹ |
| ۲۰ | پوه سه | ۷۳ | ۴۸ | درویش وایي | ۲۸۷ |
| ۲۱ | درویش وایي | ۷٦ | ۴۹ | د "ام یقولون افترىٰ" تفسیر | ۲۹۹ |
| ۲۲ | د "وعلی الثلٰثة الذین خلفوا" | | ۵۰ | حکایت | ۳۰۱ |
| | تفسیر | ۷۷ | ۵۱ | درویش وایي | ۳۲۱ |
| ۲۳ | پوه سه | ۸۱ | ۵۲ | مسئله | ۳۲۷ |
| ۲۴ | سوال او ځواب | ۸۷ | ۵۳ | نکته | ۳۴۰ |
| ۲۵ | درویش وایي | ۹۱ | ۵۴ | درویش وایي | ۳۵۳ |

| | | |
|---|---|---|
| ۵۵ | د "ويقوم اوفوا المكيال" تفسير | ۳۵۵ |
| ۵۶ | حکايت | ۳۵۷ |
| ۵۷ | فوائد | ۳۶۰ |
| ۵۸ | تفريع | ۳۷۱ |
| ۵۹ | فوائد | ۳۷۴ |
| ۶۰ | پوه سه | ۳۷۷ |
| ۶۱ | پوښتنه او ځواب | ۳۷۹ |
| ۶۲ | د "فلا تک في مرية" تفسير | ۳۸۰ |
| ۶۳ | پوښتنه او ځواب | ۳۸۱ |
| ۶۴ | درويش وايي | ۳۸۴ |
| ۶۵ | د "واقم الصلوة طرفي النهار وزلفا من اليل" تفسير | ۳۸۸ |
| ۶۶ | د "ولوشآء ربک لجعل الناس امة واحدة" تفسير | ۳۹۳ |
| ۶۷ | فائده | ۳۹۵ |
| ۶۸ | درويش وايي | ۳۹۷ |
| ۶۹ | د سورة يوسف عليه السلام پيل | ۳۹۹ |
| ۷۰ | شان نزول | ۳۹۹ |
| ۷۱ | درويش وايي | ۴۰۰ |
| ۷۲ | مسئله | ۴۰۵ |
| ۷۳ | پوښتنه او ځواب | ۴۰۸ |
| ۷۴ | درويش وايي | ۴۱۲ |
| ۷۵ | تفريع | ۴۱۴ |
| ۷۶ | تنبيه | ۴۲۰ |
| ۷۷ | د "وشروه بثمن بخس" تفسير | ۴۳۳ |
| ۷۸ | حکايت | ۴۳۷ |
| ۷۹ | پوه سه | ۴۴۲ |
| ۸۰ | ښيانه فائده | ۴۴۶ |
| ۸۱ | درويش وايي | ۴۴۸ |
| ۸۲ | حکايت | ۴۵۶ |
| ۸۳ | د "قالت فذلكن الذي" تفسير | ۴۵۷ |
| ۸۴ | درويش وايي | ۴۵۷ |
| ۸۵ | د "وقال رب السجن احب الي | |
| ۸۶ | مما يدعونني اليه" تفسير | ۴۵۸ |
| | حکايت | ۴۵۹ |
| ۸۷ | د "فستجاب له ربه" تفسير | ۴۵۹ |
| ۸۸ | د "ثم بدالهم من بعد" تفسير | ۴۶۰ |
| ۸۹ | د "ودخل معه السجن فتين" | |
| | تفسير | ۴۶۲ |
| ۹۰ | سوال او ځواب | ۴۶۳ |
| ۹۱ | درويش وايي | ۴۶۵ |
| ۹۲ | پوه سه | ۴۷۲ |
| ۹۳ | فائده | ۴۷۴ |
| ۹۴ | د "قالوا اضغاث احلام" تفسير | ۴۷۵ |
| ۹۵ | درويش وايي | ۴۷۶ |
| ۹۶ | حکايات | ۴۷۷ |
| ۹۷ | پوه سه | ۴۸۲ |
| ۹۸ | د "قال ما خطبكن" تفسير | ۴۸۳ |
| ۹۹ | پوه سه | ۴۸۳ |
| ۱۰۰ | د "ذالک ليعلم اني لم اخنه بالغيب" تفسير | ۴۸۴ |
| ۱۰۱ | درويش وايي | ۴۸۴ |
| ۱۰۲ | حکايت | ۴۸۵ |
| ۱۰۳ | خاتمه | ۴۸۵ |

و ټولو دینې دوستو ورونو ته خبر ورکول کېږي چې د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه پر مذهب باندي لیکل سوی کتاب چې له عربي څخه پښتو ته زمونږ د اداري له خوا ژباړل سوی دی په ډېره روانه او سلیسه پښتو سره چې د عباداتو تر څنګ د معاملاتو مسائل هم پکښې دي یعني

# المفید في العبادات والمعاملات

## علی مذهب امام ابو حنیفه رحمة الله علیه

ډېر ژر به زمونږ د اداري له خوا وچاپ ته ورسېږي ان شا الله تعالی، ددې کتاب خصوصیات دادي چې د پوښتني او ځواب په شکل کي ټوله مسائل راوړل سوي دي. په دې کتاب کي څلور کتابونه دي یعني کتاب الصلوة، کتاب النکاح، کتاب البیوع او کتاب الشفع.

الناشر

مکتبة القراءة والتجوید

کاسي روډ کوټه بلوچستان

تفسیر ایوبي حنفي۹ ټوک

د نصیراحمد احمدي لخوا

سکین او pdf سو.

تاریخ. ۱۳۹۸-۱۱-۲۳

واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

د دعـا محتـاج احـمـدي!